
فسئلوا اهل الذكر ان كنتم لا تعلمون
فتاوىٰ دیوبند پاکستان
المعروف بہ
فتاویٰ فریدیہ
افادات
محدث کبیر فقیہ العصر مفتی اعظم عارف باللہ مولانا مفتی محمد فرید رحمہ اللہ
جامعہ دارالعلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک
تخریج و ترتیب
مفتی محمد وہاب منگلوری مدرس دارالعلوم صدیقیہ زروبی
مکتبہ رشیدیہ
جی ٹی روڈ سردار پلازہ اکوڑہ خٹک





بسم اللہ الرحمن الرحیم

فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ

فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاوی فریدیہ

دویم جلد

**افادات**
محدث کبیر فقیہ العصر مفتی اعظم عارف باللہ
مولانا مفتی **محمد فرید** رحمۃ اللہ علیہ
جامعہ دار العلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک

**تخریج و ترتیب**
مفتی محمد وھاب منگلوری
مدرس دار العلوم صدیقیہ زروبی

**ترجمہ و کمپوزنگ**
**دار الترجمہ وکمپوزنگ سنٹر**
عبد الغنی پلازہ محلہ جنگی پشاور

**زیر سرپرستی**
مولانا حافظ **حسین احمد صدیقی** نقشبندی
مہتمم دار العلوم صدیقیہ زروبی ضلع صوابی


**ناشر**
مکتبہ رشیدیہ اکوڑہ خٹک

**دکتاب نوم** فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (دویم جلد)

**افادات** محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله مولانا
مفتی محمد فرید مجددی زروبوی رحمة الله علیه
شیخ الحدیث وصدر دارالافتاء جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

**ترتیب و تخریج** مولانا مفتی محمد وهاب منګلوری نقشبندی
دارالافتاء دارالعلوم صدیقیه

**معاون** مولانا مفتی عصمت الله حقانی

**مترجمین** مولانا محمد منظر مردانی فاضل جامعه امداد العلوم صدر
برهان الدین صدیقی فاضل جامعه دارالعلوم کراچی
ایم اے پشاور یونیورستی (فون: ۰۳۴۴_۹۱۲۹۰۲۳)

**مصحح** مولانا لطف الرحمٰن صاحب مدرس ونګران قاسم العلوم شبقدر

**کمپوزنګ** دارالترجمه وکمپوزنګ سنټر عبدالغنی پلازه محله جنګی پشاور

**ضخامت** ۷۱۲ صفحات

**ړومبی چهاپ** اکتوبر ۲۰۱۱ء ............ شوال ۱۴۳۲هـ

**زیر سرپرستی** مولانا حافظ حسین احمد صدیقی نقشبندی
مهتمم دارالعلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی (پاکستان)

**ناشر:** مکتبه رشیدیه سردار پلازه اکوړه خټک نوشهره
رابطه نمبر: ۰۳۴۴-۹۰۸۴۶۹۳

# فهرست مضامین

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |


## الباب الثانی فی الغسل

| | |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## الباب السابع في الانجاس

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## الباب الثامن فی الاستنجاء



## کتاب الصلوٰة



## باب المواقیت وما یتصل بها

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|



**باب الاذان والاقامة**

| مضمون | صفحه |
|---|---|
| په اذان او اقامت کښې فرق | ۲۰۴ |
| د غروب نه پس د ينځه پاوه نه مخکښې د ماسخوتن اذان کول نه دي پکار | ۲۰۵ |
| د صبح صادق نه مخکښې اذان | ۲۰۵ |
| د وخت نه مخکښې اذان کول | ۲۰۶ |
| د اذان په وخت کښې په اوچت آواز سره د ريډيو لګولو والا حکم | ۲۰۶ |
| اقامت کول سنت موکده دي | ۲۰۷ |
| په اذان کښې به په اشهد ان محمدا رسول الله کښې محمداً منصوب وئيلې | ۲۰۸ |
| د اذان د پاره د نبي او ګس طرف ته تخصيص نشته | ۲۰۸ |
| د صوفي جاهل په نسبت د عام فاسق اذان بهتر دي | ۲۰۹ |
| په جيل کښې د قيديانو د پاره د اذان مسئله | ۲۱۰ |
| د خطبې اذان کوم ځائې کښې کول پکار دي | ۲۱۰ |
| په کوم جمات کښې چه امام او مؤذن مقررنه وي نو راتلونکو | |
| د پاره اذان او اقامت افضل دي | ۲۱۱ |
| په اذان کښې د تکبير کلمات دوه دوه يوځائې وئيل پکار دي | ۲۱۱ |
| د ډيره خرنيلى د اذان اعاده کښې احتياط دي | ۲۱۲ |
| د ډيره خريونکي اذان مکروه دي | ۲۱۳ |
| بي اودسه اذان کولو سره د قوم خوار کيدل او ذليله کيدل موضوعي دي | ۲۱۳ |

## باب شروط الصلوة واركانها

| مضمون | صفحه |
|---|---|
| په جيب کښې نسوار يا سګريټو سره مونځ کول | ۲۱۵ |
| د مړي دلامبولو د پاره په استعمال شوې پاکه تخته باندې مونځ صحيح دي | ۲۱۵ |
| د دويمې سجدې د هيروالي په صورت کښې د سلام نه ورستو اداکول | ۲۱۶ |
| په کوټ پتلون او ټائى کښې مونځ کول | ۲۱۷ |
| په سجده کښې خپې اوچتول | ۲۱۷ |
| د زنانو په نرئ لوپټه او د مړوند نه بره لستوڼړو په حالت کښې مونځ | ۲۱۸ |
| د علم په اعتبار سره د مونځ ګزارو قسمونه او د عالمګيري | |
| په عبارت کښې د فيه د ضمير مرجع | ۲۱۸ |
| د ګډې بيزې د څرمنې نه د جوړې شوې مصلې کيښودلو طريقه | ۲۱۹ |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## باب سُنن الصلوة

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

**باب تسوية الصفوف**



**باب الامامة : فصل في الجماعة**

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## فصل فی الاحق بالامامة

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## فصل في من تصح امامته ومن لا تصح

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب القراءة فی الصلوٰة

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## باب ما یفسد الصلوة

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب احکام المساجد

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



**باب الوتر والقنوت**

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| صفحه | مضمون |
|---|---|

## فصل فی التهجد وصلاة التسبیح



## باب التراویح

| مضمون | صفحه |
|---|---|



**باب قضاء الفوائت**

| صفحه | مضمون |
|---|---|



**باب الاستسقاء**

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب سجود السهو

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

بسم الله الرحمن الرحيم

فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (دویم جلد)

**الحمد لله وکفی وسلام علی عبادہ الذین اصطفی امابعد!**

د الله تعالی لاکهه لاکهه شکردې چه په خپل بې انتهار رحمت اوکرم سره ئې د دویم جلد د تکمیل توفیق راکړو. په دسمبر ۲۰۰۳ء کښې مکمل شو اود کتاب مراحل شروع شو. ددې جلد په ترتیب او تبویب او تخریج کښې هم دهغې ټولو امورو خصوصیت سره خیال ساتلې شوې دې. د کوم تفصیل چه په ړومبی جلد کښې راغلې دې. په بعضې مسئلو کښې د عنوان په لحاظ سره په ظاهره تکرار ښکاری. لیکن په معنو کښې بین فرق. د بعضې مسئلو اهمیت. د سوالاتو مختلف نوعیت او د حضرت سیدی وسندی و مولائی حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم د بعضې علمی تدقیقاتو د اضافو په وجه حذف نه کړې شو. اول اراده وه چه ټول ,,کتاب الصلوة،، یوجلد کښې راشی خود زیات ضخامت په وجه د کتاب الصلوة باقی ابواب به په دریم جلد کښې ان شاء الله شاملیږی.

د الله تعالی د ټولو نه لوئې نعمت دادې چه حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم هرباب او فصل لفظ به لفظ مطالعه کولوسره تصحیح کړې دې. او یو لفظ هم دحضرت صاحب د مسلک او مزاج خلاف په دې کښې شامل نه دې. او بنده د خپلې رائې په ټوله فتاوی کښې چرته هم زره برابر اضافه نه ده کړې. په بنده باندې د الله تعالی دا مهربانی ده. چه دحضرت شیخی وسندی و مولائی حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم سرپرستی. دحضرت سیدی واستاذی مولانا مفتی سیف الله حقانی مدظله العالی نګرانی اود مولانا حافظ حسین احمد صدیقی مدظله سعی او اهتمام راته حاصل دې.

په آخرکښې عرض دې چه د بشری غلطئ نه هیڅوک هم محفوظ نه دې چرته کښې خوغلطی او کوتاهی یقینی ده. اګرچه د بنده نه څومره محنت او کوشش کیدې شو په هغې کښې ئې هیڅ کوتاهی نه ده کړې. په تخریجی امورو کښې د مولانا عصمت الله حقانی معاونت. د اردو ګرائمر او محاورې تصحیح او پروف کښې د جناب سلطان فریدی صاحب کوشش. اوپه کمپوزنګ کښې د حافظ ولی الرحمن صدیقی د ډیرزیات محنت او کوشش ډیر زیات مشکوریم. الله تعالی دې ددوی محنت اوکوشش قبول کړی. اود حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم سورې دې په مونږ قائم اوساتی. اوددوی علم دې د سلف نه خلف ته منتقل کړی. اود فقیر دا خدمت دې د علماؤ په نظرکښې ډیر خوښ اود عوامو دپاره زیات نه زیات د استفادې لائق جوړکړی. او زمونږ استاذانو اومشائخو اود مورپلار دپاره دې په دنیا او آخرت کښې د فلاح او نجات ذریعه ثابته کړی. **ربنا تقبل منا انك انت السميع العليم**

طالب دعا..... محمد وهاب منګلوری عفی عنه

دارالافتاء دارالعلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِذَا قُمۡتُمۡ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغۡسِلُوۡا وُجُوۡهَكُمۡ وَاَيۡدِيَكُمۡ اِلَى الۡمَرَافِقِ وَامۡسَحُوۡا بِرُءُوۡسِكُمۡ وَاَرۡجُلَكُمۡ اِلَى الۡكَعۡبَيۡنِ ؕ وَاِنۡ كُنۡتُمۡ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوۡا ؕ وَاِنۡ كُنۡتُمۡ مَّرۡضٰۤى اَوۡ عَلٰى سَفَرٍ اَوۡ جَآءَ اَحَدٌ مِّنۡكُمۡ مِّنَ الۡغَآئِطِ اَوۡ لٰمَسۡتُمُ النِّسَآءَ فَلَمۡ تَجِدُوۡا مَآءً فَتَيَمَّمُوۡا صَعِيۡدًا طَيِّبًا فَامۡسَحُوۡا بِوُجُوۡهِكُمۡ وَاَيۡدِيۡكُمۡ مِّنۡهُ ؕ

(سورة المائدة)

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه دویم جلد

# کتاب الطهارة



بسم الله الرحمٰن الرحيم

# كتاب الطهارة

# الباب الاول فی الوضوء

## د ریل گاډی په بیت الخلاء کښ اودس کول صحیح دی

**سوال:** علمائي دین په دې مسئله کښې څه فرمائی چه د سفرپه دوران کښ د ریل گاړی په بیت الخلاء کښې اودس کول صحیح دی یا نه؟بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحمید مډل سکول درازنده ډی آئی خان... ۱۹۷۲ء۱۲۱۵

**الجواب:** صحیح دی. (۱) وهو الموفق

## د غټ اودس ماتی په ځائې باندې چینجی وتلوسره اودس ماتیږی

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښ څه فرمائی چه یو سړې د قضائې حاجت نه فارغ شی اود غټ اودس ماتی ځائې سخت خارخت شروع کړی او کله کله ترینه یو چینجې وغیره سر بهرته راوباسی اوکله ئې واپس دننه کړی نو آیا ددې چینجی سر راویستل او دننه کول اودس ماتونکې دې؟ او دداسې سړی پسې امامت صحیح دې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نعمت الله صاحب دارالعلوم اسلامیه لکی مروت

(۱) قال العلامه الحصكفی: ومن آداب الوضوء الجلوس فی مكان مرتفع تحرزا عن الماء المستعمل وعبارة الكمال وحفظ ثيابه من التقاطر وهی اشمل. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۹۴ جلد ۱ كتاب الطهارة)

**الجواب**: که دا حقیقت وی او مشاهده وی چه ددغه ځائي نه چینجي سر رابهر کوی او واپس ئي دننه کوی نودي سره اودس ماتیږی او ددي سړی امامت صحیح نه دي.فی الدرالمختار وخروج غیر نجس مثل ریح او دودة او حصاة من دبر.(١) وهو الموفق

## بغیر آواز نه هوا وتلوسره هم اودس ماتیږی

**سوال**: علمائي دین دي مسئلي باره کښ څه فرمائی چه بغیر د آوازنه د هوا وتلو څه حکم دي؟ اودس ورسره ماتیږی که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب**: اودس ماتیږی.(٢) وهوالموفق

## په جمات کښ د اودس کولوحکم

**سوال**: علمائي دین دي مسئلي باره کښ څه فرمائی چه په جمات کښ اودس کول جائزدی که نه؟ که نه وی جائز نو همیشه په جمات کښ اودس کولو والا به فاسق وی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ثناء الله...... ٧٢\٦\٧

**الجواب**: که د اول نه د اودس دپاره ځائي نه وی جوړکړي نو اودس کول به جائز نه وی.لما فی الهندیه ص١١٦ جلد ١ وتکره المضمضة والوضوء فی المسجد الا ان یکون ثمه موضع اعد لذلک.(٣) وهو الموفق

---

﴿١﴾(الدر المختارعلی هامش ردالمحتار ص١٠٠ جلد١ مطلب نواقض الوضوء کتاب الطهارة)

﴿٢﴾قال العلامة الشامی:(قوله مثل ریح) فانها تنقض لانها منبعثة عن محل النجاسة لا لان عینها نجسة لان الصحیح ان عینها طاهرة حتی لو لبس سراویل مبتلة او ابتل من الیتیة الموضع الذی تمربه الریح فخرج الریح لا ینجس وهو قول العامة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص١٠٠ جلد١ مطلب نواقض الوضوء کتاب الطهارة)

﴿٣﴾(فتاویٰ عالمگیریه ص١١٠ جلد١ فصل کره غلق باب المسجد)

## که په مونځ کښې اودس مات شو نو بیا به اودس کوی او مونځ به پوره کوی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې مونځ کوی او د مونځ په دوران کښې ئې اودس مات شی نو ده لره مونځ ختمول پکاردی یا ئې دا مونځ اوشو؟

المستفتی: معتبرشاه آف کوټکی..... ۱۹۷۳ء\۱\۱۲\۱۴

**الجواب**: ده دپاره ضروری دی چه دغه وخت اودس ته روان شی او باقاعده مونځ پوره کړی.(۱) وهوالموفق

## په ولاړه باندې اودس کول جائز او د ادب نه خلاف دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په دې زمانه کښې په بعضې ځایونو مثلاً هوټلونو وغیره کښې "بیسن" وغیره جوړکړې شوې وی چه په هغې کښې په ولاړې باندې مخ لاس وینځلې کیږی نو آیا په هغې کښې اودس (چاراندام) کول جائزدی یا نه؟ بینوا وتوجروا

المستفتی: نامعلوم.......

**الجواب**:اودس کول جائزدی خو خلاف الادب دی:

**وفی الکبیری ومن الاداب ان یجلس المتوضی مستقبل القبلة عند غسل سائر الاعضاء ومن الاداب ان یکون جلوسه علی مکان مرتفع﴿۲﴾. وهوالموفق**

## مسواک د سرو او ښځو دپاره یوشان سنت دې

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مسواک استعمال

﴿۱﴾قال العلامه ابن نجیم : قوله من سبقه الحدث توضأ وبنیٰ واستخلف لو اماما الخ. (البحر الرائق ص ۳۸۹جلد ۱ باب الحدث فی الصلاة)

﴿۲﴾(غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص ۳۰ باب اداب الوضوء)

صرف د سرو دپاره سنت دي یا د ښځو دپاره هم.د مسئلې وضاحت په دلیل سره اوکړئ او اجرحاصل کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی محمدعمر امام مسجد معیارمردان..... ۱۴ رمضان ۱۴۰۹ھ

**الجواب**: دښځو دپاره هم سنت دي دعائشه صدیقه رضی الله عنها نه د مسواک استعمال کول روایت شوی دی.﴿ ۱ ﴾

## د اوښ غوښې خوړلو سره اودس نه ماتیږی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښ څه فرمائی چه د اوښ غوښې خوړلو سره اودس ماتیږی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی:حضرت شیرمحطة الملاح خمیس مشط سعودی عرب... ۲۱۷۱ء۱۹۸۲

**الجواب**: په دې اودس نه ماتیږی مګر اودس کول بهتردی چه بالکل د اختلاف نه سرې بچ شی.﴿ ۲ ﴾ وهوالموفق

---

**﴿۱﴾عن عائشة رضی الله عنها قالت کان النبیﷺ یستاک فیعطینی السواک لا غسله فابدأبه فاستاک ثم اغسله وادفعه الیه رواه ابو داوٗد.**

**(مشکواة المصابیح ص۴۵جلد ۱ باب السواک)**

**ویدل علیه مافی الدرالمختار تقوم الخرقه الخشنه او الاصبع مقامه کما یقوم العلک مقامه للمرأة مع القدرة علیه قال ابن عابدین کما یقوم العلک مقامه ای فی الثواب اذا وجدت النیه وذلک ان المواظبة علیه تضعف اسنانها فیستحب لها فعله بحر.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۸۵ جلد ۱ مطلب فی منافع السواک)**

**﴿۲﴾قال العلامه محمد فرید: ذهب احمد بن حنبل الی وجوب الوضوء من لحم الابل مطبوخا کان او نیاوله فیما سوی اللحم من الکبد والطحال والکرش وغیره قولان وقال ای احمد فی الوضوء من لحوم الابل حدیثان صحیحان عن النبیﷺ حدیث البراء وحدیث جابر بن سمرة کذا فی المغنی. وقال الشاه ولی الله السرفی ایجاب الوضوء منها انها کانت محرمة فی التوراة فلما اباحها الله لنا شرع.....** باقی حاشیه په راروانه صفحه باندے

**د فالج والا د اودس حکم چه په اودس او تیمم باندې قادر نه وی**

**سوال:** یو سړې مفلوج دې بالکل معذوردې نه پخپله خوراک کولې شی نه ځان صفاکولې شی آیا هغه بغیر د اودس نه مونځ کولې شی؟ بینوا توجروا
المستفتی: غیاث بیګ میرپورخاص..... ۲۳\۱ رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که دا سړې پخپله هم اودس یا تیمم نه شی کولې او بل څوک هم اودس یا تیمم کولو والا نه وی نو بغیر د طهارت (پاکئ، اودس) نه مونځ کولې شی او نورو عبادتونو کښې هم مشغول کیدې شی.(ماخوذ از ردالمحتار وکبیری) وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) الوضوء لنا شکراً لما انعم علینا وعلاجا لما عسی ان یختلج فی بعض الصدور من اباحتها بعد ما حرمها الانبیاء وذهب الجمهور الیٰ عدم وجوب الوضوء من لحم الابل لحدیث الوضوء مما خرج ولیس مما دخل رواه الطبرانی فی الکبیر ولان لحم الابل من الطیبات فلا یتوضأ منه الا تریٰ ان ابیا واباطلحة انکرا علی انس بن مالک رضی الله عنهم حین اراد الوضوء من الخبز واللحم وقالا اتتوضأ من الطیبات لم یتوضأ منه من هو خیر منک رواه احمد والجواب عن حدیث توضؤوا منها ان جمهور الصحابة والتابعین اعرضوا عن الاخذ بظاهره فهی قرینة قویة علیٰ ان المراد منه الوضوء اللغوی ای غسل الید والفم ، وثبت الوضوء اللغوی فی عرف الشرع ولسان الحدیث کما فی حدیث عکراش رواه الترمذی بسند ضعیف وکما فی حدیث ابی امامة اذا کان احدکم علی وضوء فاکل طعاما فلا یتوضأ الا ان یکون لبن الابل اذا شربتموه فتمضمضوا بالماء رواه فی کنزالعمال وکما فی حدیث معاذبن جبل قال نسمی غسل الفم والید وضوء ولیس بواجب وکما فی حدیث عبد الله بن مسعود انه غسل یدیه من طعام ثم مسح وجهه وقال هذا وضوء من لم یحدث اخرجها الزیلعی فی نصب الرایة والحکمة فیه ان له دسما وزهومة ولو سلم ان المراد منه المعنی الشرعی فیکون منسوخا لعموم قوله علیه الصلاة والسلام کان اخرالامرین ترک الوضوء مما غیرت النار ایاها وکذا لشمول الطیبات ایاها.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۱۹۸،۱۹۹ جلد۱ باب الوضوء من لحوم الابل)

﴿۱﴾ قال العلامه الحصکفی: والمحصور فاقد......(باقی حاشیه په راروانه صفحه باندې)

## په تماکو او شراب څکلو سره اودس ماتیږی یا نه؟

**سوال:** په سګریټ، چلم اونسوار او شراب څکلو سره اودس ماتیږی یا نه؟ دغه رنګې که په سګریټ، چلم، نسوار او شرابوکښ څه فرق وی نوهغه واضح کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: حنیف الله ګرین مارکیټ مردان......... ١١٠ فروری ١٩٧٥ء

**الجواب:** (١) تماکو نه د نشې خیزدې اونه مفتر اومحذردې لهذا ددې په استعمال سره به اودس نه ماتیږی.

**(یدل علیه مافی ردالمحتار ص ٣٠٦ جلد٥) فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولا اضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت الاصل فی الاشیاء الاباحة﴿١﴾.**

(٢) که په شرابو څکلو سره لږه شان نشه پیداشوې وه نود اودس د ماتیدلو حکم به کیږی ګنی نود نشې نه پیداکیدلو په وخت کښ اودس کول ضروری نه دی.(ماخوذ از شامی وغیره) ﴿٢﴾ وهوالموفق

## د غټ اودس ماتی په ځائې باندې لوندوالې موجودیدلو سره اودس ماتیږی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو کس ته د دوه کالو

---

**(بقیه حاشیه) ای الماء والتراب...... وکذا العاجز عنهما لمرض یؤخر هاعنده وقالا یتشبه بالمصلین وجوباً...... وبه یفتیٰ والیه صح رجوعه ای الامام کما فی الفیض وفیه ایضاً مقطوع الیدین والرجلین اذا کان بوجهه جراحة یصلی بغیر طهارة ولا تیمم ولا یعید علی الاصح.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص١٨٥ جلد ١ باب التیمم)**

**﴿١﴾( ردالمحتار هامش الدرالمختار کتاب الاشربة ص ٣٥٩ جلد٥)**

**﴿٢﴾ قال العلامه حصکفی وینقضه اغماء ومنه الغشی وجنون وسکر بان یدخل فی مشیه تمایل ولو باکل الحشیشة، قال ابن عابدین قوله وسکر وهو حالة تعرض للانسان من امتلاء دماغه من الا بخرة المتصاعدة من الخمر ونحوه فیتعطل معه العقل الممیز بین الامور الحسنة والقبیحة اسمعیل عن البرجندی.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ١٠١ جلد١ بعد مطلب نوم الانبیاء غیر ناقض)**

نه یو تکلیف دې چه مخکښې ورته نه وو، هغه داچه دغټ اودس ماتی په
ځائې باندې ,,لوندوالې،، محسوس کوی او دا لوندوالې بهیږی نه، لیکن
په ګوتې سره محسوسیږی او کله کله د ناستې په حالت کښې په جامو باندې
هم ښکاری نو آیا دې سره اودس ماتیږی؟

**نوټ**: دا لوندوالې د ,,لاړو،، په شان وی د وینې او پیپ پشان نه وی او
پکښې څه قسم درد اوزخم نشته. خو زیات تکلیف د مونځ د وجې نه دې؟

بینوا توجروا

المستفتی: محمد زمان کوټ...... ۲۵\۱ فروری ۱۹۷۵ء

**الجواب**: دغټ اودس ماتی دځائې نه چه کومې اوبه راوځی هغه اګرکه اونه
بهیږی خو اودس پرې ماتیږی. (کمافی الدرالمختار) او دغه څیزپاک هم وی نو
اودس ماتیږی لکه هوا، چینجې او کاڼړې وغیره.

**والمراد بالخروج من السبیلین مجرد الظهور وفی غیرهماعین السیلان فلیراجع﴿۱﴾**
**هذا جواب علی زعم المستفتی والا فهو نجس کما لا یخفیٰ. وهوالموفق**

## نشې والا دوایانې اودس ماتوی که نه؟

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د نشې والا دوایانو
سره اودس ماتیږی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......

---

**﴿۱﴾قال العلامه حصکفی ثم المراد بالخروج من السبیلین مجرد الظهور وفی غیرهما عین السیلان ولو بالقوة لما قالوا لو مسح الدم کلما خرج ولو ترکه لسال نقض والا لا کما لو سال فی باطن عین او جرح او ذکر...... وخروج غیر نجس مثل ریح او دودة او حصاة من دبر لا خروج ذلک من جرح ولا خروج ریح من قبل...... لان خروج الدودة والحصاة منهما ناقض اجماعاً کما فی الجوهرة.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۹۵،۹۲ جلد۱ مطلب نواقض الوضوء)**

**الجواب**: دوائی پخپله اودس ماتونکې نه ده خوچه دنشې د وجې نه بې هوشی راشی نواودس باقی نه پاتې کیږی اوبغیرنشې نه په اودس باندې څه اثرنهٔغورزیږی.
وفی الدرالمختار وینقضه اغماء ومنه الغشی ص ۱۴۴ جلد ا ﴿۱﴾ . وهوالموفق

## د گرمئ په موسم کښې د وړو وړو دانو ماتیدوسره د اودس مسئله

**سوال**: دګرمئ په موسم کښې چه دانسان په بدن باندې وړې وړې دانې راوځی هغې ته غورمکې یا ګرمکې یا ننکئ وائی نوددې په ماتیدو سره اودس ماتیږی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمن لکی مروت..... ۱۹۷۷ء\۷\۳۰

**الجواب**: که ددې دانو نه اوبه نه اوځی نو بیا دهغې ماتیدل اودس نه ماتوی﴿۲﴾ وهوالموفق

## د اودس متعلق د دریو مسئلو تطبیق

**سوال**: علمائې دین لاندینئ دریومسئلو کښې د تطبیق څه صورت ښائی چه څما په نزد باندې د یوبل متضاد دی؟ بینوا توجروا

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۱۰۶ جلد ا کتاب الطهارة)
﴿۲﴾قال الطحطاوی وعن الحسن ان ماء النفطة لا ینقض قال الحلوانی وفیه توسعة لمن به جرب او جدری او مجل بالجیم وهو ما یکون بین الجلد واللحم وفی الجوهرة عن الینا بیع الماء الصافی اذا خرج من النفطة لاینقض...... قال العارف بالله سیدی عبدالغنی النابلسی وینبغی ان یحکم بروایة عدم النقض بالصافی الذی یخرج من النفطة فی کی الحمصة وان ما یخرج منها لا ینقض وان تجاوز الیٰ محل یلحقه حکم التطهیر اذا کان ماء صافیاً اما غیر الصافی بان کان مخلوطاً بدم او قیح او صدید فانه ناقض اذا وجد السیلان بان تجاوز العصابة والا لم ینقض مادامت الورقة فی موضع الکی معصبة بالعصابة الخ.
(الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص۴۸ جلد ا فصل فیما ینقض الوضو)

**مسئله**:(الف) که په جامو یابدن باندې نجاست اولږی او یاد نه وی او غالب ګمان په یو ځائې باندې هم نه وی نوچه دجامو یا بدن کوم ځائې هم اووينځي ټول به پاک ګڼړلې کيږی.

**مسئله**:(ب) د اودس په مينځ کښ يا د اودس نه پس ديو ځائې باره کښ د نه وينځلو شک پيداشی اوهغه اندام معلوم نه وی نوپه غالب ګمان سره چه کوم يو اندام راياد شو هغه اووينځه ګنی نوبيا اودس اوکړه.

**مسئله**:(ج) که داودس په دوران کښ د يو اندام په وينځلو اونه وينځلو کښ شک پيداشی نوکه داشک ئې په اول ځل وی اوعادت ئې نه وی نوهغه اندام دې اووينځی دکوم باره کښ چه شک شوې دې اوکه داسې ئې عادت وی نو دهغې پرواه مه کوئ ترڅو چه غالب ګمان نه وی.(ردالمحتار)

**الجواب**: اولنۍ مسئله په درمختار ص١٠٣ جلد اول کښ مذکورده(١) او ددې حکم محمل دادې چه يقين يا غالب ګمان وی چه دلته نجاست دې ليکن معين ځائې معلوم نه وی او دويمه او دريمه مسئله په درمختارص١١١ جلد اول کښ ليکلې شوې ده.(٢) چه د فتاوی تاتارخانيه نه منقول ده او ددې محمل شک او تردد دې. يقين او غالب ګمان نه دې.والفرق بين الشک والظن واضح (٣). فقط

---

﴿١﴾ قال العلامة الحصكفی رحمه الله:(وغسل طرف ثوب) او بدن (اصابت نجاسة محلامنه ونسی) المحل (مطهر له وان) وقع الغسل (بغير تحر) وهو المختار.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ٢٣٠ جلد ١ باب الانجاس)

﴿٢﴾ قال ابن عابدين رحمه الله: (قوله شک فی بعض وضوئه) ای شک فی ترک عضو من اعضائه (قوله والا لا) ای وان لم يکن فی خلاله بل کان بعد الفراغ منه وان کان اول ماعرض له الشک او کان الشک عادة له وان کان فی خلاله فلا يعيد شيأ قطعا للوسوسة عنه کما فی التاترخانية وغيرها. (ردالمحتار ص ١١١ جلد ١ مطلب فی ابحاث الغسل)

﴿٣﴾ قال ابن عابدين: (قوله ظنا قويا) ای غالبا قال فی البحر عن اصول اللامشی ان احد الطرفين اذا قوی وترجح علی الآخر ولم ياخذ القلب ما ترجح به ولم يطرح الآخر فهو الظن واذا عقد القلب علی احدهما وترک الآخر فهو اکبر الظن وغالب الرأی.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ١٨١ جلد ١ مطلب فی الفرق بين الظن وغلب الظن)

## ماشوم ته پئ ورکولوسره اودس نه ماتیږی

**سوال**: ایا د موربچی ته پئ ورکول اودس ماتونکی دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم....۱۸ رمضان المبارک ۱۳۸۸ھ

**الجواب**: بچی ته پئ ورکول اودس ماتونکې نه دی.﴿۱﴾ وهوالموفق

## مسواک چوپل

**سوال**: د مسواک چوپلو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فدا محمد اچهریان مانسهره..۱۹۷۵ء\۱\ ۲۸\۸

**الجواب**: د مسواک چوپل منع دی.﴿۲﴾ کما فی الدرالمختار ولا یمصفه فانه یورث العمی ﴿۳﴾ وهوالموفق

---

**﴿۱﴾ قال الحصکفی وینقضه خروج کل خارج نجس منه...... لا ینقض لو خرج من اذنه ونحوها کعینه ولدیه قیح ونحوه کصدید وماء سرة وعین. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۹۳،۱۰۴ جلد ۱ ملطب نواقض الوضوء)**

**قال العلامه ابن عابدین وفی المحیط ان خرج اللبن فسدت(ای صلاة) لانه یکون ارضاعاً والا فلا ولم یقیده بعد دوصححه فی المعراج حلیه وبحر.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۶۴ جلد ۱ باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)**

**(وهکذا فی امداد الفتاوٰی ص۱۴ جلد ۱)**

﴿۲﴾ پس معلومه شوه چه مسواک چوپل دنظرقوت کموی په دې وجه فقهاؤ منع فرمائیلې ده البته دمسواک نرمولو اونری کولودپاره په غابنونوکنبې جوئیل جائزدی.

**کمافی البخاری عن عائشة رضی الله عنها...... فاخذت السواک فقضمته ونفضته وطیبته ثم دفعته النبیﷺ.**

**(صحیح البخاری ص۶۳۸ جلد ۲ باب وفات النبیﷺ) (ازمرتب)**

**﴿۳﴾(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص۷۸ جلد ۱)**

## د ځونډو نه په صفا اوبو وتلو سره اودس نه ماتیږی

**سوال**: علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی که چرته د ځونډونه صفا اوبه اوځی چه وینه یا پیپ وغیره پکښي نه وی نوآیا دا اوبه اودس ماتونکي دی؟ بینوا توجروا

المستفتی پیرمحمد جندری کرک.....یکم شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب**: که بالکل صفا اوبه وتل یقیني وی نودې سره اودس نه ماتیږی.

کمافی المراقی الفلاح﴿۱﴾. والله اعلم

## د معذور د اودس حکم اوطریقه

**سوال**: مفتیان دشرع متین په دې مسئلي کښي څه فرمائی چه بنده دګیس په بیمارئ کښي اخته دي چه دهغي په وجي سره په خیټه کښي ګیس پیدا کیږی.

(۱) کله کله دغټ اودس ماتی نه فارغ شم اودس کوم خو دغه وخت کښي هم په خیټه کښي د ګیس د وجې نه دهوا د وتلو خطره پیداشی ډیرپه مشکل سره هغه راتینګه کړم نوآیا په دویم ځل هوا وتلوسره اودس کول پکاردی؟ یا هم دغه اودس سره مونځ کول پکاردی؟ او آیا دا د معذورپه حکم کښي راځی که نه؟

(۲) ځه د هر مونځ په وخت کښي خپل کوشش کوم. هوا اوباسم بیا اودس اوکړم او مونځ کووم. لیکن دهوا زور بیاهم نه کمیږی اوپه مونځ کښي شک راځی چه اودس مي مات شو.نودې حالاتو کښي زه د معذور په حکم کښي راځم؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اقبال صرافه بازار ایبټ آباد

﴿۱﴾قال العلامة الطحطاوی ان ماء النفطة لا ینقض...... وفی الجوهره عن الینا بیع الماء الصافی اذا خرج من النفطة لا ینقض.

(الطحطاوی علی المراقی الفلاح ص۴۸ فصل فی ماینقض الوضوء)

**الجواب:** (۱) ته د بیماریٔ د زورپه وخت کښې اودس پسې سمدستی یواځې مونځ کود او که ته شرعی معذور ئې نود وخت داخلیدلو نه پس اودس کوه اود وخت وتلو پورې به دې اودس باندې مونځونه کود په دې بیماریٔ سره اودس نه ماتیږی.

(۲) شرعی معذورهغه دې چه د فرض مونځ وخت تیرشی اود سرې دومره وخت هم اونه مومی چه دې کښې مختصر اودس اومونځ اوکړی. دې ته د عذر ابتداء او شروع وئیلې شی.《۱》 وهوالموفق

## په خُله کښې د نسوارو سره سره د اودس او ذکر لسانی مسئله

**سوال:** آیا په نسوارو سره اودس ماتیږی؟ که اودس نه ماتیږی نوآیا د مونځ دپاره په اوبو باندې خُله صفاکول پکاردی؟ دغه شان که په خُله کښې نسوار وی نو ذکرکول جائزدی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدحسین نیوسوات قاری ایجنسی....۱۹۸۸ء/۵/۹

**الجواب:** تماکونه مُسکردې اونه مُفتردې نوددې استعمال د اودس ماتونکې نه دې.《۲》 اوپه دې کښې چونکه بدبوئی شته نوددې د استعمال په وخت کښې په ژبې سره د ذکرکولو نه پرهیزکول پکاردی.《۳》 وهو الموفق

---

《۱》 قال العلامه الحصکفی: وصاحب عذر من به سلس بول لا یمکنه امساکه او استطلاق بطن او انفلات ریح او استحاضة او بعینه رمد...... ان استوعب عذره تمام وقت صلاة مفروضة بان لا یجد فی جمیع وقتها زمنا یتوضأ ویصلی فیه خالیا عن الحدث ولو حکماً...... ثم یصلی به فیه فرضاً ونفلاً فدخل الواجب بالاولیٰ فاذا خرج الوقت بطل ای ظهر حدثه السابق.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۲۱۲، ۲۱۳ جلد۱ مطلب فی احکام المعذور)

《۲》 قال العلامه ابن عابدین: فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولا اضراره بل ثبت له منافع الخ (ردالمحتار علی الدرالمختار کتاب الاشربة ص۴۵۹ جلد۵)

《۳》 قال الشیخ محمد بن عبد الله النقشبندی: وآداب الذکر...... الثانی الغسل للذکر او الوضوء وکان ابویزید قدس سره یتوضأ ویغسل فمه بماء ورد کلما اراد الذکر.
(البهجة السنیة فی اداب النقشبندیه ص۵۰ آداب الذکر)

## د ناخن پالش سره د اودس حکم

**سوال:** زنانه د نوکونو رنګ (ناخن پالش) استعمالوی نو دهغوی دپاره د اودس اوغسل څه حکم دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن تربیله ډیم.....۱۵جمادی الثانی ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** که د نوکونو رنګ د چاقو وغیره نه بغیر نه لرې کیدلو نو بیا به د حرج د وجې نه د اودس او غُسل نه مانع نه وی.

ونظیره مافی شرح التنویر ولا یمنع ما علی ظفر صباغ ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د اودس ماتی نه پس سمدستی اودس کول ضروری نه دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله اودس ماتی ته لاړلو نومابه ورته اوبه کیښودې په هغې سره به ئې طهارت حاصل کړو اوبیا به ئې لاس په خاوره باندې راښکلو. بیابه مې دویم لوښې راوړو په هغې باندې به ئې اودس اوکړو (سنن ابی داؤد) ددې مطلب دادې چه پیغمبر علیه السلام به په لوټې سره د استنجاء کولو نه پس په اوبو سره طهارت حاصلولو. په سنن ابی داؤد کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها په روایت کښې داهم دی چه یوځل رسول الله صلی الله علیه وسلم د اودس ماتی نه فارغ شو نوحضرت عمر رضی الله عنه اوبه راخستلې وې او ولاړ وو نو پیغمبر علیه السلام اووئیل، عمره! دا څه دی؟ اوبه دې ولې راخستې دی او ولاړئې؟ حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل د اودس دپاره مې اوبه راخستې دی.نو پیغمبر علیه السلام اوفرمائیل چه ماته ددې حکم نه دې شوې چه کله هم متیازې اوکړم نو خامخا به اودس کووم،اوکه څه په داسې پابندئ باندې همیشوالې اوکړم نود امت دپاره به یو دستور جوړشی.(معارف الحدیث)

﴿۱﴾قال العلامة حصکفی: ویجب ای یفرض غسل کل ما یمکن من البدن بلاحرج مرة...... ولا یمنع ما علی ظفر صباغ ولا طعام بین اسنانه او فی سنه المجوف به یفتیٰ وقیل ان صلبا منع وهو الاصح.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۵۲، ۱۵۳ جلد ۱ مطلب ابحاث الغسل)

نودا عبارت چه ,,ماته ددي حکم نه دي شوي. .نوآیا پیغمبر علیه السلام تـه د متیازو نه پس د اودس کولوحکم نه وو شوي؟ بینوا توجروا

المستفتی:تاج محمد ،عابدمحمدراوالپنډی کینټ... ۱۱\ربیع الثانی۱۴۰۴ھ

**الجواب**: پیغمبر علیه السلام او ټول امت ته دوجوب په طریقي سره ددي حکم نه دي شوي چه دمتیازو او نورو بي اودسونه پس سمد ستی چار اندام اوکړی.《۱》 وهو الموفق

## د اودس د نیت نه بغیرپه اوبوکښي لاس وهلو سره اوبه مستعمل نه ګرځی

**سوال**: علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی که یو سړي بغیر د اودس د نیت نه چرته د اوبو په ټیم کښي لاس وردننه کړی نو آیا دا اوبه به مستعمل شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اصلاح الدین بنوں...... یکم ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب**: دا اوبه مستعمل نه دی.

**لعدم ازالة الحدث به ولعدم التقرب عنده (شامی) 《۲》. وهوالموفق**

## د ناخن پالش په لري کولوکښي احتیاط دي

**سوال**: علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه کله دنوکونو رنګ لري کیږی نه. نوپه دي سره د اودس اوغسل جنابت د فریضي نه د انسان ذمه فارغه کیږی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: وزیرمحمد چارباغ جنګل خیل کوهاټ

《۱》 وفی الهندیه: الاجماع علی انه لا یجب الوضوء علی المحدث والغسل علی الجنب والحائض والنفساء قبل وجوب الصلوٰة او ارادة ما لا یحل الا به کذا فی البحر الرائق. (فتاویٰ عالمگیریه ص۱۶ جلد۱ قبیل الباب الثالث فی المیاه)

《۲》 قال العلامه حصکفی : او بماء استعمل لاجل قربة ای ثواب و لو مع رفع حدث او من ممیز او حائض لعادة عبادة او غسل میت او ید لاکل او منه بنیة السنة او لاجل رفع حدث ولو مع قربة کوضوء محدث ولو للتبرد فلو توضأ متوضئ لتبرد او تعلیم او لطین بیده لم یصر مستعملا اتفاقاً الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۱۳۸،۱۳۹ جلد۱ مبحث الماء المستعمل)

**الجواب:** په لرې کولو کښې احتیاط دې البته دباقی پاتې کیدلو په صورت کښې هم څه ناڅه گنجائش شته.

**يدل عليه مافى شرح التنوير ولا يمنع على ظفرصباغ هامش ردالمحتار ص١٤٣ جلد١ ﴿١﴾ قلت وجه الدلالة واضح لانه لا يمكن ازالته الا بكلفة فيلراجع الى امداد الفتاوىٰ ص١٩ جلد١ ﴿٢﴾. وهوالموفق**

## د اودس په وخت کښې د ږيرې وينځلو مسئله

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د اودس په وخت کښې پوره ږيره وينځل ضروری دی که بعضې ږيره؟ بينوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......

**الجواب:** ږيره په دوه قسمه ده. گنړه او رنگئ... که د ويښتونه د ننه د مخ پوستکې ښکاريدلو نو دا رنگئ ږيره ده. اوپه کومه ږيره کښې چه دمخ پوستکې بالکل پټ وی نوهغې ته گنړ ږيره وائی. د رنگئ ږيرې په صورت کښې ږيره اوپه نظر راتلونکې دمخ پوستکې د دواړو وينځل فرض دی. اوپه گنړه گيره کښې دمخ په حدودو کښې چه کومه ږيره وی دهغې وينځل فرض دی په مسترسل (رازورنده) ږيره کښې صرف مسح کافی ده.

وفی الدرالمختار ثم لا خلاف ان المسترسل لا يجب غسله ولا مسحه بل يسن و ان

﴿١﴾ قال العلامه حصكفى ويجب اى يفرض غسل كل مايمكن من البدن بلاحرج مرة...... ولا يمنع ما على ظفر صباغ ولا طعام بين اسنانه او فى سنه المجوف به يفتىٰ وقيل ان صلبا منع وهو الاصح. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص١٥٢،١٥٣ جلد١ مطلب ابحاث الغسل)

قال الشيخ اشرف على التهانوى رحمه الله: په دې مسئله کښې يوقيد دې هغه داچه که په آسانئ سره لرې کول ممکن وی نوهله اوکه په لرې کولو کښې تکليف وی نو بغير د لرې کولونه هم صحيح دی. فى الدرالمختار ولا يمنع الطهارة ونيم. په چونه کښې هم دغه تفصيل دې که په آسانئ سره چونه راويستلې کيږی نو راويستل ئې واجب دی کنی معاف دی. (امداد الفتاوی ص٢٠ جلد١ كتاب الطهارت)

**الخفيفة التي ترىٰ بشرتها يجب غسل ما تحتها (ص ۱۰۰ جلد ۱) ﴿۱﴾. وهو الموفق**

## که ټول وخت په مرض ريح کښې تيريږي نو د هروخت د پاره به اودس کوی

**سوال:** څه معذوريم هروخت مې هوا اوځی نوآيا يو اودس دټولو عبادتونو دپاره کافی دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: ايم اے بيگ پاک پی ډبليو ډی بنوں چهاؤنی۲۸\ربيع الاول ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** که واقعی ستا ټول وخت په دې مرض ريح کښې اوځی نوته دهر وخت دپاره اودس کوه اوپه هغې سره مونځ او تلاوت کوه. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## په ګرمو اوبوسره اودس جائزدې خو بهتر نه دې

**سوال:** په ګرمو اوبوسره اودس کول څنګه دی؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالحميد ايس وی جنوبی وزيرستان ډی آئی خان

**الجواب:** په ګرمواوبوسره اودس کول جائزدی خوبهتر نه دی. ﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۷۴ جلد۱ کتاب الطهارة)

﴿۲﴾ وفی الهنديه: المستحاضة ومن به سلس البول او استطلاق البطن او انفلات الريح او رعاف دائم او جرح لا يرقا يتوضؤن لوقت كل صلاة ويصلون بذلك الوضوء فی الوقت ما شاؤا من الفرائض والنوافل هكذا فی البحر الرائق. ۱۲

(فتاوىٰ هنديه ص ۴۱ جلد۱ الفصل الرابع فی احکام الحيض والنفاس والاستحاضة)

﴿۳﴾ قال العلامه طحطاوی: ومن الادب انه لا يتوضأ بماء مشمس لا نه يورث البرص لقوله عليه السلام لعائشة حين سخنت الماء: لا تفعلی يا حميراء فانه يورث البرص. (حاشيه الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص۷۸ فصل فی اداب الوضوء)

اخرجه البيهقی فی السنن الكبرىٰ كتاب الطهارة باب كراهة التطهير بالماء المشمس (ص۶ جلد۱) والدار قطنی باب الماء المسخن (ص۳۸ جلد۱) والزيلعی فی نصب الراية كتاب الطهارة باب ما ورد فی الماء المشمس (ص ۱۰۲ جلد۱).

## په سربانديې د مسح کولو سنت طريقه

**سوال:** سنت طريقې سره دمسح کولو څه طريقه ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمدصادق مهاجر کيمپ هزاره.... ۲۴\جمادی الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دواړه وَرغوی اوګوتې به په سرکيدې اوشا طرفته به ئې بوځې.﴿ ۱ ﴾

**وانكر ابن الهمام والزيلعي على التجافی، وفی الشاميه ص۱۱۴ جلد ۱ والاظهر ان يضع كفيه واصابعه على مقدم راسه ويمدهما الى القفا على وجه يستوعب جميع الرأس ثم يمسح اذنيه باصبعيه﴿۲﴾. وهوالموفق**

## د سټ مسح د حديث نه ثابت ده

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په اودس کښې د سټ مسح چرته حديث نه ثابت ده که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: حبيب الحق حضرو اټک.... ۱۹۸۲ء

---

﴿۱﴾ دسره په مسح کولو کښې فقهائې کرامودمختلفو طريقو تصحيح کړې چه په عينی کښې ذکردی اوعلامه سديد الدين کاشغری رحمه الله چه دمحيط په حوالې سره کومه طريقه ذکرکړې چه دمسح په وخت کښې به مسواکه او غټه ګوته جدا اوساتی چه په دې سره به دغوږونومسح کيږی اوشاته بوتلووخت کښې به تلی (وَرغوی) جدا ساتې چه واپسئ کښې پرې د سر دواړه طرفونه مسح شی. نوپه دې طريقه باندې ابن الهمام په فتح القدير کښې اعتراض کړې دې چه په سنت کښې ددې هيڅ اصل نشته.

**لان الاستعمال لا يثبت قبل الانفصال والاذنان من الرأس حتى جاز اتحاد بلتهما ولان احدا ممن حكى وضوء رسول الله ﷺ لم يوثر عنه ذاك فلو كان من الكيفيات المسنونة وهم شارعون فی حكايتها لترتكب وهی غير متبادرة لنصوا عليها وكذا رد عليها الزيلعی. والتفصيل فی منهاج السنن شرح جامع السنن فليراجع. (وهاب)**

**﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدين: (قوله مستوعبة)...... وما قيل من انه يجافی المسبحتين والابهامين ليمسح بهما الاذنين والكفين ليمسح بهما جانبی الرأس خشية الاستعمال فقال فی الفتح لا اصل له فی السنة لان الاستعمال لا يثبت قبل الانفصال والاذنان معزيا)**

**الجواب:** روی ابو عبید والدیلمی وتاریخ اصفهان عن ابن عمر مرفوعاً وموقوفاً انه امان من الغل یوم القیامة وتمام الکلام فی منهاج السنن ص۱۲۸ جلد ۱ ﴿۱﴾. وهو الموفق

## د متیازو په ښکاره کیدلو سره اودس ماتیږی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د مخصوص اندام په سرکښې کوم سورې دې که انسان دا کولاوهی نو کلاویږی نودا سورې داخل دې که خارج دې، دغه شان که دې سُوری ته متیازې راشی او بهرته اونه ځی نوپه دې صورت کښې اودس ماتیږی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی:محمد ابراهیم بلامبټ تیمرګره ضلع دیر....۲۵\۱شوال ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** ترڅو پورې چه متیازې ښکاره شوې نه وی اودس نه ماتیږی. اوچه کله په سُوری کښې اوکتلې شی نو اودس ماتیږی اګرکه نه وی بهیدلې.
(شامی ص۱۲۵.۱۲۴ جلد ۱) ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال المفتی الاعظم محمد فرید: ان مسح العنق مستحب عندنا وعند احمد رحمه الله وقال به الامام الشافعی رحمه الله فی روایة والحجة علی مشروعیته ما رواه ابو عبید والدیلمی وتاریخ اصفهان عن ابن عمر مرفوعاً وموقوفاً انه امان من الغل ومن توضأ ومسح عنقه وقی الغل یوم القیمة وکذاما رواه ابو داؤد مرفوعاً یمسح رأسه حتی لمغ القذال وهو اول القفا وجه الدلالة ان بلوغ منتهی الید الی القذال یستلزم مسح العنق وقال مسدد مسح رأسه من مقدمه الی مؤخره حتی اخرج یدیه تحت اذنیه وهو واضح الدلالة.

(ف) واعلم انه لم یرو ان العنق من الرأس وکذالم یثبت اخذالماء الجدید له فالانسب ان یمسح ببلة ظهور الکفین بعد الاذنین.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ص۱۲۸ جلد ۱ باب ماجاء ان الاذنین من الرأس)

﴿۲﴾ قال العلامه حصکفی : ثم المراد بالخروج من السبیلین مجردالظهور وفی غیرهما عین السیلان، قال ابن عابدین ای الظهور المجرد عن السیلان فلو نزل البول الی قصبة الذکر لا ینقض لعدم ظهوره بخلاف القلفة فانه نزوله الیها ینقض الوضو.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۹۹،۱۰۰ جلد ۱ مطلب فی نواقض الوضوء)

## د اودس دعاګانې مروی دی وئیل ئې مستحب دی

**سوال:** د اودس دعاګانې وئیل واجب دی که سنت؟ دا رنګې دا چرته په حدیث کښې راغلې دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی اکرام الحق راوالپنډی...... ۲۴\۳\۱۹۷۲ء

**الجواب:** د اودس د دعاګانو لوستل مستحب دی ځکه چه د دې متعلق روایات راغلې دی «رواه ابن حبان وغیره»﴿۱﴾ او که بالفرض ثابت هم نه وی نو دا اذکار فقهائې کرامو خوښ کړی دی.

**وما رأه المؤمنون حسناً فهو عند الله حسن، رفعه الامام محمد فی موطاه﴿۲﴾. وهو الموفق**

---

﴿۱﴾ قال العلامه حصکفی: والتسمیة کما مرعند غسل کل عضو وکذالممسوح والدعاء بالوارد عنده ای عند کل عضو وقد رواه ابن حبان وغیره عنه علیه الصلاة والسلام من طرق قال محقق الشافعیة الرملی فیعمل به فی فضائل الاعمال وان انکره النووی.

قال العلامه ابن عابدین: قوله(والتسمیة کامر) ای من الصیغة الواردة وهی بسم الله العظیم والحمدلله علی دین الاسلام وزاد فی المنیة التشهد هنا ایضاً تبعا للمحیط ، وشرح الجامع لقاضیخان قال فی الحلیة ومن البراء بن عازب عن النبی ﷺ قال ما من عبد یقول حین یتوضا بسم الله ثم یقول بکل عضو اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریک له واشهد ان محمداً عبده ورسوله ثم یقول حین یفرغ اللهم اجعلنی من التوابین واجعلنی من المتطهرین الا فتحت له ثمانیة ابواب الجنة یدخل من ایها شآء فان قام الخ، وقال حدیث حسن. (قوله والدعا بالوارد) فیقول بعد التسمیة عند المضمضة اللهم اعنی علی تلاوة القرآن وذکرک وشکرک ...... کما فی الامداد والدرر وغیرهما وثم روایات اخر ذکر ها فی الحلیة وغیرها...... لکن رأیت فی الحلیة عن المختارات ویدعو بالوارد وبا وفی البواقی فلیراجع. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۹۴ جلد ۱ مطلب فی بیان ارتقاء الحدیث الضعیف الی مرتبة الحسن مندوبات الوضو)

﴿۲﴾ قال العلامه ناصر الدین البانی: حسن موقوفا اخرجه الطیالسی واحمد وغیرها بسند حسن وصححه الحاکم ووافقه الذهبی (وجعله الامام محمد مرفوعا فی بلاغاته). (شرح العقیدة الطحاویة ص ۵۳۱ نحب اصحاب رسول الله من غیر افراط)

## نسوار اودس نه ماتوی

**سوال**: بعضي خلق داودس نه پس خُله کښي نسوار اچوی اود مونځ په وخت کښي نسوار اوغورځوی اوصرف خُله صفاکړی نوآیا دې سره اودس نه ماتیږی؟ یا صرف خُله وینځل کافی دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل ولی گهړی کپوره.....۲۷\۸\۱۹۷۸ء

**الجواب**: چونکه تماکو نه مُسکردې اونه مُفتر. لهذا په دې سره د اودس ماتیدلو حکم کول غلط دی.

قال العلامة الشامی فی ردالمحتار ص۳۰۵ جلد۵ فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولا اضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل فی الاشیاء الاباحة، البته که دې سره اغماء حاصله شی نو اغما سره اودس ماتیږی(۱)

وهوالموفق

## په ږیره باندې وسمه لګولوسره اودس جائزدې

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کومې ږیرې ته وسمه ورکړې شی نوهغې سره په اودس باندې اثر غورزیږی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......

**الجواب**: وسمې لګولوسره په ویښتو باندې څۀ پوستکې نه جوړیږی نوددې وجې نه ئې په اودس اوغسل باندې څه اثر نه غورځیږی.

وفی الدرالمختار: ولا یمنع ما علی ظفر صباغ ولاطعام بین اسنانه او فی

---

﴿۱﴾ قال العلامه حصکفی: وینقضه اغماء ومنه الغشی وجنون وسکر بان یدخل فی مشیه تمایل ولو باکل الحشیشة قال ابن عابدین قوله وسکر وهو حالة تعرض للانسان من امتلاء دماغه من الابخرة المتصاعدة من الخمر ونحوه فیتعطل معه العقل الممیز بین الامور الحسنة والقبیحة اسمعیل عن البرجندی.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۱۰۱ جلد۱ بعد مطلب نوم الانبیاء غیر ناقض)

سنه المجوف (ص ١٥٤ جلدا) البته د پوستکی جوړیدلو په صورت کښې چه د اوبو رسیدل ممکن نه وی نو بیا اودس صحیح نه دی.
لمافی الهندیه: **والخضاب اذا تجسد ویبس یمنع تمام الوضوء والغسل (ص ۴ جلد ١)**
﴿۲﴾. وهوالموفق

## په مسواک سره د مونځ ثواب اویا چنده کیږی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مسواک اوکړی او مونځ اوکړی نو ثواب کښې څومره زیاتوالې کیږی اوبغیر مسواک نه څومره نقصان کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی قطب الدین منډی بهاؤالدین گجرات

**الجواب:** اویا (۷۰) چنده ثواب به ورکولې شی.الحدیث﴿۳﴾ وهوالموفق

## که صرف بوټ اووینځلې شی اوښپې نه. نو آیا اودس کیږی؟

**سوال:** علمائې دین مسئلې باره کښې څه فرمائی که فوجی یا مجاهد صرف بوټ اووینځی اوښپې اونه وینځی نوآیا په دې سره اودس صحیح کیږی؟ بینوا توجروا...

المستفتی: محمد ازرم تبوک سعودی عرب.....۱۴۰۱\۷\۱۷ه

**الجواب:** که په موزو باندې دمسح کولو شرائط ﴿۴﴾ پکښې موجود نه وی نو د ښپو وینځل ضروری دی.وهوالموفق

---

﴿١﴾(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۴۱ جلد ١ قبیل مطلب سنن الغسل)
﴿۲﴾( فتاویٰ عالمگیریه ص ۴ جلد ١ کتاب الطهارة)
﴿۳﴾ وعن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ تفضل الصلوٰة التی یستاک لها علی الصلوٰة التی لا یستاک لها سبعین ضعفا رواه البیهقی فی شعب الایمان.
(مشکواة المصابیح ص۴۵ جلد ١ باب السواک)
﴿۴﴾ قال العلامه حصکفی: شرط مسحه ثلاثة امور الاول کونه ساتر القدم مع الکعب او یکون نقصانه اقل من الخرق المانع فیجوز علی...... (بقیه په بل مخ)

## په اودس کښې مضمضه کول سنت دی

**سوال**: علمائې دین په دې مسئله کښې څه فرمائی که څه د روژې په حالت کښې د اودس په وخت په خُله کښې اوبه وانه چوم نوپه دې سره په مونځ کښې څه فرق راځی که نه؟ ځکه چه په خُله کښې اوبه اچولوسره ماته د روژې د ماتیدلو شک راځی؟ بینوا توجروا

المستفتی: یوسف شاه صدربازار رسالپورکینټ نوشهره...۲۷\رمضان ۱۴۱۰ھ

**الجواب**: تـه هیـڅ فکرمـه کـوه.او خُلـه کـښې اوبـه اچـوه.البتـه پـه اودس کـښې مضمضه کول سنت دی.﴿ ۱﴾ ددې په پریخودلو سره اودس ته نقصان نه رسی اوپه ثواب کښې کمې راځی.وهوالموفق

## نسوار، چیلم او سګریټ اودس ماتونکی نه دی

**سوال**: علمائې دین شرع متین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه نسوار، حقه او سګریټ څکل حرام دی که مکروه؟ اوپه دې سره اودس ماتیږی اوکه نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: معتبرشاه کوټکی........۱۹۸۳ء\۲۱\۱۴

---

(بقیه حاشیه) الزربول لو مشدوداً...... والثانی کونه مشغولاً بالرجل لیمنع سرایة الحدث...... والثالث کونه ممایمکن متابعة المشئ المعتاد فیه فرسخاً فاکثر، قال ابن عابدین (قوله لو مشدوداً) لان شدة بمنزلة الخیاطة وهو مستمسک بنفسه بعد الشد کالخف المخیط بعضه ببعض فافهم وفی البحر عن المعراج ویجوز علی الجاروق المشقوق علی ظهر القدم وله ازراریشدها علیه تسده لانه کغیر المشقوق وان ظهر من ظهر القدم شئ فهو کخروق الخف.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۱۸۲،۱۸۳ جلد ۱ باب المسح علی الخفین)

﴿۱﴾ قال الحصکفی وغسل الفم ای استیعابه ولذا عبر بالغسل او للاختصار بمیاه ثلاثه والانف...... وهما سنتان مؤکدتان، قال ابن عابدین فلو ترکهما اثم علی الصحیح سراج قال فی الحلیة لعله محمول علی ما اذاجعل الترک عادة له من غیر عذر.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۸۲ جلد ۱ سنن الوضوء)

**الجواب**: دنسوار، سگریټ وغیره څیزونو استعمال مباح دي چه د فضولیاتو دپاره نه وی او د نشې د نشتوالی په وجه باندې په دې سره او دس نه ماتیږی.(۱) وهو الموفق

**(۱)** قال العلامه ابن عابدین: فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولا اضراره بل ثبت له منافع الخ. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۴۵۹ جلد ۵ کتاب الاشربة)

# الباب الثانی فی الغسل

## د غسل په شروع کښې اودس سنت دي

**سوال**: دغسل نه مخکښې اودس کول سنت دي که مستحب؟ که یوسړې دجنابت نه غُسل اوکړی اونه په اول کښې اودس اوکړی اونه په آخرکښې، نو مونځ ئې جائزدې که نه؟ اوچه کله ئې اودس نه وی کړې نود غُسل نه پس اودس لازم دي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد فائق باجوړ ایجنسی عنایت کلې......۱۵مئ ۱۹۸۲ء

**الجواب**: دغُسل په شروع کښې اودس کول سنت دی.(شرح التنویر)(۱)
چه کله یوسړې دمضمضې اواستنشاق نه پس په ټول بدن باندې اوبه واچوی نوسره ددې نه چه غُسل ئې خلاف سنت دې خوصحیح دې او دده مونځ هم صحیح دې.(۲) وهوالموفق

## په بربنډه غُسل کول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په کومه غُسل خانه باندې چت وی په هغې کښې په بربنډه غُسل کول جائزدې که نه؟ بینوا! توجروا

المستفتی: محمد ازرم تبوک سعودی عرب.......۱۴۰۰/۱۱/۱۷ھ

---

﴿۱﴾ قال الحصکفی: وسننه...... البداء ة بغسل یدیه وفرجه...... وخبث بدنه ان کان علیه خبث لئلا یشیع ثم یتوضأ...... ثم یفیض الماء علی کل بدنه ثلاثا الخ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۱۰، ۱۱۱ جلد ۱ مطلب سنن الغسل)

﴿۲﴾ وفی الهندیه: الفرائض الغسل وهی ثلاثة المضمضة والاستنشاق وغسل جمیع البدن علی مافی المتون. (فتاویٰ هندیه ص ۱۳ جلد ۱ الباب الثانی فی الغسل)

**الجواب**: په بربنډه غسل کول جائزدی البته لنګ وهل بهتردی.﴿ ١﴾ په عورت باندې نظر غورځیدلو سره اودس نه ماتیږی اودس صحیح دې.﴿٢﴾
وهوالموفق

## په احتلام باندې غسل واجب کیږی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څه دفالج مریض یم. یوه ښپه مې شله ده اوما واده هم کړې دې تقریباً دولس کاله مې اوشو. اوس مسئله داده چه ماته په هفته کښې دوه. درې ځلې احتلام کیږی کله څوک اووینم اوکله هم دغه شان احتلام کیږی. ځما عمر تقریباً ٣٧ کاله دې او تقریباً اته کاله نه مې په پابندئ سره مونځ کول هم شروع کړی دی. نوددې وجې نه هر وخت غسل کول وی. نوتاسو صاحبان فتوی ورکړئ چه په دې احتلامونو سره په ما باندې غُسل واجب کیږی اوکه نه؟ بینوا توجروا
المستفتی: ماسټرخان ګړهی سخاکوټ......یکم اپریل ١٩٧٥ء

**الجواب**: محترم المقام: السلام علیکم. خبره داده چه په احتلام سره غُسل واجب کیږی.﴿ ٣﴾ ته همت مه بائیله. غُسل کوه الله کریم دې تاته صحت درکړی. فقط

﴿١﴾ قال الحصکفی: وسننه کسنن الوضوء سوی الترتیب وادابه کادابه سوی استقبال القبلة لانه یکون غالباً مع کشف عورة وقال ابن عابدین اقول اوالمراد الکراهة حال الکشف فقط کما افاده التعلیل السابق والظاهر من حاله علیه السلام انه لا یغتسل بلا ساتر( قوله مع کشف عورة) فلو کان متزراً فلا باس به کما فی شرح المنیة والامداد.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ١١٠ جلد ١ مطلب سنن الغسل)

﴿٢﴾ وفی الهندیه: مس الرجل المراة والمراة الرجل لا ینقض الوضوء کذافی المحیط مس ذکره او ذکر غیره لیس بحدث عندنا کذافی الزاد.
(فتاویٰ هندیه ص١٣ قبیل الباب الثانی فی الغسل)

﴿٣﴾ قال العلامه مرغینانی: والمعانی الموجبة للغسل انزال المنی علی وجه الدفق والشهوة من الرجل والمراة حالة النوم والیقظة.
(هدایة علی صدر فتح القدیر ص٥٣ جلد ١ فصل فی الغسل)

## د غیر محرم په بربنډ حالت کښې لیدلو سره غسل نه واجب کیږی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یوه زنانه یوغیرمحرم په بربنډ حالت کښې اووینی نوپه دې باندې غسل واجب دې که نه؟

بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد........٢\١۴\١٩٧۴ء

**الجواب**: غسل نه واجب کیږی(١). وهوالموفق

## د نارینه د بالغ کیدو کمه موده او منی وغیره د پاکولو طریقه

**سوال**: دنارینه دپاره دبالغ کیدو موده څه ده؟ بنده چه کله د دولسو کالو شو نو انزال ئې شوې وو ایاد هغه وخت نه بلوغ شروع کیدې شی؟ دغه شان دمنی ودی او مذی دپاکولو طریقه څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: منظور راوالپنډی.....٢۴\شعبان ١۴٠٣هـ

**الجواب**: دنارینه دپاره دبلوغ کمه موده دولس کاله دې نه چه ددولسو کالو شوې نو بالغ شوې ځکه چه دبلوغ علامت یعنی انزال موجود شوې دې (٢) او چه منی په ګرولواو مږلوسره صفا کیږی اوکه اوچه نه وی نو بیاوینځلو سره(٣) دغه شان مذی اوودی هم وینځلو سره صفا کیږی (۴) وهوالموفق

(١) ځکه چه دا دهغه څیزونو نه نۀ دې کوم چه غسل واجبوی (سیف الله حقانی)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصکفی: بلوغ الغلام بالاحتلام والاحبال والانزال والاصل هو الانزال...... فان لم یوجد فیهما شئ فحتی تتم لکل منهما خمس عشرة سنة به یفتیٰ لقصر اعمار اهل زماننا وادنی مدته له اثنتا عشرة سنة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص١٠٧ جلد۵ فصل بلوغ الغلام کتاب الحجر)

﴿٣﴾وقال فی الهندیه: ومنها الفرک فی المنی اذا اصاب الثوب فان کان رطبا یجب غسله وان جف علی الثوب اجزأ فیه الفرک استحسانا.

(فتاویٰ عالمگیریه ص۴۴جلد١ الباب السابع فی النجاسة)

﴿۴﴾ قال الفقیه طاهر بن عبد الرشید: اذاحت النجاسة......(بقیه حاشیه په بل مخ)

## په لاس باندې مشین سره نوم لیکل داودس او غسل نه مانع نه دی

**سوال:** بنده په ماشوموالی کښې دمشین په ذریعې سره په لاس باندې نوم لیکلې دې اوس خلق وائی چه وران کړه په دې سره اودس اوغسل نه کیږی او حال دا چه هغه نوم اوس بغیر داپریشن نه وارنیږی هم نه نوددې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتی:نارتهـ وزیرستان ایجنسی میران شاه....۱۹۸۸ء\۴۱\۲۸

**الجواب:** داخط دخال او ډک کړی شوې زخم پشان یو اندام دې نه د اودس نه مانع دې او نه دغسل نه ﴿۱﴾ دوا عظانو دسختو او غلطو مسئلو نه مه ویریږئ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) لم یجز الا فی المنی الیابس فان کان رطبا لا یطهر الابالغسل وهو نجس عندنا...... ولکن هذا اذالم یخرج المذی قبل خروج المنی اما اذاخرج المذی ثم خرج المنی لا یطهر الثوب بالفرک.

(خلاصة الفتاویٰ ص ۴۱ جلد ۱ الفصل السادس فی غسل الثوب والدهن)

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: یستفاد مما مر حکم الوشم فی نحو الید وهو انه کالاختضاب اوالصبغ بالمتنجس لانه اذا غرزت الید اوالشفة مثلا بابرة ثم حشی محلها بکحل اونیلة لیخضر تنجس الکحل بالدم فاذاجمد الدم والتأم الجرح بقی محله اخضر فاذاغسل طهر لانه اثر یشق زواله لانه لا یزول الا بسلخ الجلد او جرحه فاذاکان لا یکلف بازالة الاثر الذی یزول بماء حارٍ اوصابون فعدم التکلیف هنا اولیٰ وقد صرح به فی القنیه فقال ولو اتخذ فی یده وشمالا یلزمه السلخ اه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۳۰ جلد ۱ مطلب فی حکم الوشم باب الانجاس)

﴿۲﴾ قال الامام ولی الله الدهلوی: واما المذکر فلا بد...... ان یکون میسراً لا معسراً...... واما الأفات التی تعتری الوعاظ فی زماننا فیها عدم تمیزهم بین الموضوعات وغیرهابل غالب کلامهم الموضوعات المحرفات وذکرهم الصلوات والدعوات التی علها المحدثون من الموضوعات ومنها مبالغتهم فی شیئ من الترغیب والترهیب.

(القول الجمیل ص ۱۷۱ ، ۱۷۲ باب التذکیر والوعظ)

## خناورسره بغیرد انزال نه وطی (بدفعلی) کولو سره غسل نه واجب کیږی

**سوال**: علمائي دين دي منسئلي باره کښي څه فرمائی که یو سړي دخناورسره وطی اوکړی لیکن انزال نه وی شوي نو غسل واجب کیږی که نه؟
بینوا توجزوا
المستفتی: نامعلوم.....

**الجواب**: صرف وردننه کول غسل نه واجب کوی بلکه وردننه کولو (التقاء الختانين) دپاره شهوت والا محل پکار دي او څناور خو دشهوت محل نه دي نوځکه بغير دانزال نه غسل نه واجب کیږی.

**وفی الهندیه (ص۱۵ جلد۱) والايلاج فی البهيمة والميتة والصغيرة التی لا يجامع مثلها لا يوجب الغسل بدون الانزال﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په مټ باندی څه قسم مسالي سره نوم ليکل د اودس او غسل مانع نه دی

**سوال**: يوسړی په خپل مټ باندی نوم ليکي چه دستني په ذريعه سره ئی راکنی او يو قسم رنګداره مساله پکښي اچوی نو دنوم نه لاندي داوبو رسيدل مشکل کیږی نو ايا د داسي سړی غسل وغيره صحيح کیږی؟
بینوا توجروا
المستفتی: حافظ شمس الحق قمرحضر و اتک...۲۷\رمضان۱۴۰۵ھ

**الجواب**: داخط د خال پشان دغسل وغيره نه مانع نه دي

**کمافی ردالمحتار ص ۲۲۰ جلد۱ باب الانجاس، يستفاد مما مرحکم الوشم فی نحو اليد وهو انهٗ کالاختضاب او الصبغ بالمتنجس لانه اذا غرزت اليد او الشفة مثلاً بابرة ثم حشی محلها بکحل او نيلة ليخضر تنجس الکحل بالدم فاذا جمدالدم و التأم الجرح بقی**

---

**﴿۱﴾(فتاویٰ عالمگيريه ص۱۵ جلد۱ الفصل الثالث فی المعانی الموجبة للغسل وهی ثلاثة)**

محله اخضر فاذا غسل طهر لانه اثر یشق زواله لانه لا یزول الابسلخ الجلد او جرحه فاذاکان لا یکلف بازالة الاثر الذی یزول بماءٍ حارٍ او صابون فعدم ا التکلیف هنا اولیٰ......... وفی الفتاوی الخیریه من کتاب الصلاة سئل فی رجل علی یده وشم هل تصح صلوته وامامته معه ام لا اجاب نعم﴿١﴾. وهوالموفق

## وسمه داودس اوغسل نه مانع نه ده

**سوال**: بعضي خلق په سپینه ږیره باندې توره وسمه لګوی نو په ویښتو باندې وسمي لګولو سره ممکن ده چه اوبه دویښتو اصل جسم ته اونه رسیږی لهذا په دې حالت کښې اودس یاغسل کیدې شی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نور رحمان ناوګئ بونیر سوات.... ١٢\١١ګست١٩٨٣ء

**الجواب**: په ویښتو باندې وسمی لګولو سره داخبره ضروری نه ده چه اصل ویښتو ته به اوبه رسوې چه دویښتو په ظاهری سطح باندې اوبه واچولې شی نو د غسل جنابت دپاره کافی ده (شامی) ﴿٢﴾ وهوالموفق

## د غسل په وخت کښې خبرې کول او د دعاګانو ویلو حکم

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دغسل دوران کښې دخبروکوو څه حکم دې؟ اودغه وخت کښې مسنون دعاګانې ویـل جائز دی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......

﴿١﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٢٣٠ جلد ١ مطلب فی حکم الوشم باب الانجاس)

﴿٢﴾ قال العلامه حصکفی: ولا یمنع الطهارة ونیم ای خرء ذباب وبرغوث لم یصل الماء تحته وحناء ولو جرمه به یفتی..... ولا یمنع ما علی ظفر صباغ ولا طعام بین اسنانه او فی سنه المجوف به یفتی وقیل ان صلبا منع وهو الاصح.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ١٠٩ جلد ١ قبیل مطلب سنن الغسل)

**الجواب**: دغسل په وخت کښې چپ او سیدل بهتردی په بربنډ باندې فقهاؤ خبرې کول مکروه لیکلي دي اودمسنون دعاګانو دپاره داوخت مناسب نه دی

**فی ردالمحتار ص۱۵۶ جلد۱ ویستحب ان لا یتکلم بکلام مطلقة اما کلام الناس فلکراهته حال الکشف واما الدعا فلانه فی مصب المستعمل ومحل الاقذار والاوحال﴿۱﴾. وهوالموفق**

## زنانو د پاره په غسل کښې دویښتوویښلو طریقه

**سوال**: که زنانه غسل کوی نو د سرو پشان هغوي لره هم په ټول بدن باندې اوبه اچول ضروری دی اوکه نه؟ اود زنانو دسرپه ویښتو باندې اوبو اچولوطریقه څه ده؟ بعضې زنانه صرف په مسح باندې اکتفاکوی آیا داصحیح دی؟

بینوا توجروا

المستفتی: محمد امین شراوک ملائشیا...۲۵\رمضان المبارک۱۴۰۳ھ

**الجــواب**: پـه زنانـه باندې هم دسرو پشان دټول بدن وینځل فرض دی خودکونځۍ شوې ویښتو اصل ته اوبه رسول کافی دی دټولو وینځل ضروری نه دی اوپه غسل کښی دسرپه ویښتو باندې مسح کول کافی نه ده برابره خبره چه زینت ته نقصان ورکوی اوکه نه خوکه چرته ویښته پرانستي وو.نو دپوره ویښتو وینځل ضروری دی ﴿۲﴾ هوالموفق

## د عمر په لحاظ سره دبلوغ موده

**سوال**: علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دعمر په لحاظ

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۱۱۵ جلد۱ مطلب سنن الغسل کتاب الطهارة)

﴿۲﴾ قال الحصکفی: وکفی بل اصل ضفیرتها ای شعر المرأة المضفور للحرج اما المنقوض فیفرض غسل کله اتفاقا ولو لم یبتل اصلها یجب نقضها مطلقا هو الصحیح ولو ضرها غسل رأسها ترکته وقیل تمسحه.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۱۰۸ جلد۱ مطلب فی ابحاث الغسل)

سره دمذکر او مؤنث بلوغ په څومره موده کښې پورې کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نصر الله صوابی.....۱۹\محرم ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** دعمر په لحاظ سره دمذکر او مؤنث دبلوغ پنځلس (۱۵) کاله دی. کمافی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ص ۱۳۲ جلد۶ **فان لم یوجد فیهما شئ فحتی تمّ فکل منهما خمس عشره سنة به یفتیٰ**﴿۱﴾. وهوالموفق

## داحتلام هیریدلو په صورت کښې د قضاء مونځونو حکم

**سوال:** علماء دین څه فرمائی دې مسئله کښې چه یو سړی ته احتلام شوې وو لیکن هغه نه هیر شوې وو څو ورځې پس ورته یاد شو چه احتلام شوې وو نو چه کوم مونځونه ئې بغیر غسل نه کړی دی دهغه قضاء به څنګه کوی؟

بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم........

**الجواب:** که چاته څو ورځې پس داحتلام پته اولګې چه په فلانکې ورځې باندې ماته احتلام شوې وو نودهغې ورځې نه به دمونځو نو قضاء کوی او که دمعلومې ورځې علم ورته نه وی نو دآخری خوب نه به جنبی شمارلې کیږی نو دهغې نه پس چه ئې څومره مونځونه کړی وی دهغې قضاء به پرې لازم وی (مجموعة الفتاوی ص ۱۲۴ جلد ۱) **(۲)** وهوالموفق

## د مذی په وتلو سره غسل نه واجب کیږی

**سوال:** جناب مفتی صاحب دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک! علمائې دین دې مسئلې

---

﴿۱﴾ **(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص۱۰۷ جلد۵ فصل بلوغ الغلام کتاب الحجر)**

**(۲) قال العلامه عبدالحی لکهنوی** :که داعلم ورته اوشو چه دفلانکئ ورځې نه ماته احتلام شوې وونو هغې ورځې نه به دجنابت حکم جاری شی او که د ورځې دتعین علم نه وی صرف دومره علم وی چه ماته احتلام شوې وو نو داحتلام حکم به هغه آخری خوب نه ورکولې کیږی چه دهغې نه پس نه دې اوده شوې (مجموعة الفتاوی ص ۱۲۵ جلد ۱ کتاب الطهارة)

باره کښې څه فرمائی که چاته شهوت راشی یعنی آله تناسل ئی په آرام وی اوبیا مُنتشر شی او داندام مخصوص په سر باندې لوندوالې راشی اوپته نه وی چه دامنی ده که څۀ بل څه دی نو په دې سره غسل واجب کیږی یانه؟
بینوا توجروا

المستفتی: رحمت نبی ضلع پشاور...... یکم ذی الحجه ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** دامذی ده ددې په وتلو سره غسل نه واجب کیږی ﴿۱﴾ اودمنی په وتلوسره هغه وخت غسل واجب کیږی چه کله په ټوپ اوشهوت سره وی ﴿۲﴾ اوپه ذکر شوې صورت کښې دا شرط نشته دې (هکذا فی جمیع کتب الفقه) وهوالموفق

## د غاښ سوري په مسالې سره بندول دغسل نه مانع نه دي

**سوال:** شق دندان رادا کتر پر کرده ام، بعض مولوی صاحبان درباره غسل فرموده اند، که غسل مے شود وبعضے گفته اند نمیشد، اکنون محترم شمارا هدایت دهید که صحیح خیال چیست؟ بینواتوجروا
المستفتی: عبدالباقی افغانستان......۲۴/شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** غسل بلاشک وشبه جائز است زیرانچه خالی کردن سوراخ دروقت هر غسل حرج عظیم است، که درشرع شریف مرفوع است، نظیره مافی الهندیه ص ۳۳۶ جلد ۵ من شد السن بالذهب

---

﴿۱﴾ قال ابن المنذر حدثنا محمد بن یحیٰ حدثنا ابو حنیفة رحمه الله حدثنا عکرمه عن عبد ربه بن موسیٰ عن امه انها سالت عائشه رضی الله عنها عن المذی فقالت ان کل فحل یمذی وانه المذی والودی والمنی فاما المذی فالرجل یلاعب امرأته فیظهر علی ذکره الشئ فیغسل ذکره وانثیه ویتوضأ ولا یغتسل الخ.
(فتح القدیر ص ۵۳، ۵۴ جلد ۱ فصل فی الغسل)

﴿۲﴾ قال المرغینانی: والمعانی الموجبة للغسل انزال المنی علی وجه الدفق والشهوة من الرجل والمرأة حالة النوم والیقظة.
(هدایه علی صدر فتح القدیر ص ۵۳، ۵۴ جلد ۱ فصل فی الغسل)

والفضة﴿۱﴾ ومافی غسل شرح التنویر وقهب انضم، قلت فهذا اشد حرجاً منه﴿۲﴾. فافهم

## د غسل په وخت کښې د عورت دښکاره کیدلو حکم

**سوال:** علمائي دین دې مسئله باره کښې څه فرمائی چه په اکثر نهرونو او تالابونو کښې خلق په اجتماعی طریقې سره غسل کوی اودنوم نه لاندې او د زنګون نه پورته ځائې په نظر راځی او خاص اندامونه ئې پټ کړی وی نو آیا په داسې ځایونو کښې داسې کول جائزدی؟ او که چرته څوک نه وي نو په بربنډه غسل جائز دې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی نامعلوم

**الجواب:** خبر شئ چه انسان په داسې ځائې کښې غسل کوی کوم ځائې کښې چه څوک وی نو داسې ځائې کښې هم دعورت ښکاره کولو نه احتراز کول پکار دي دضرورت مطابق ورته د عورت ښکاره کولو رخصت دې او که په داسې ځایونو کښې نور خلق هم موجود وی نو په داسې حالت کښې دسړو دپاره دټول عورت (یعنی دنوم نه تر زنګونانو پورې) پټول فرض دی چه دهغې ښکاره کول حرام دی او که یو سړی په داسې طریقې سره غسل اوکړو نو د حرامو دارتکاب سره سره د غسل فریضه ادا کیږی.

فی الکبیری ص ۵۱ وان یغتسل فی موضع لا یراه احد لاحتمال بلؤ العورة حال الاغتسال

---

﴿۱﴾وفی الهندیه: قال محمد رحمه الله فی الجامع الصغیر ولا یشد الاسنان بالذهب ویشدها بالفضة یرید به اذاتحرکت الاسنان وخیف سقوطها فاراد صاحبها ان یشدها یشدها بالفضة ولا یشدها بالذهب وهذا قول ابی حنیفه رحمة الله وقال محمد رحمه الله یشدها بالذهب ایضاً ...... وذکر الحاکم فی المنتقیٰ لو تحرکت سن رجل وخاف سقوطها فشدها بالذهب او بالفضة لم یکن به باس عند ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالیٰ الخ.
(فتاویٰ هندیه ص ۳۳۶ جلد ۵ الباب العاشر فی استعمال الذهب والفضة)

﴿۲﴾قال العلامه الحصکفی: لا یجب غسل مافیه حرج کعین وان اکتحل بکحل نجس وقهب انضم ولا داخل قلفة.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۰۷ جلد ۱ مطلب فی ابحاث الغسل)

**او اللبس ولحديث يعلى بن امية ان النبى ﷺ قال ان الله حى ستير يحب الحياء والستر فاذا اغتسل احدكم فليستتر رواه ابوداؤد ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## غابونو ته د سرو زرو خول اچول د غسل نه مانع نه دي

**سوال:** که چا خپلو غابنونو ته دسروزرو خول دښايست يا دخه بيمارئ دوجي نه واچولو نو آيا اوس به دغسل نه مانع وی که نه؟ دغه شان داخول اچول شرعا څنګه دی؟ بينوا توجروا

المستفتی ډاکټر ګل فراز دندان ساز مانيری ضلع صوابی. ۱۹۸۸ء۱۹/۸/۱

**الجواب:** که داجائز يا ناجائز دسروزرو خول ﴿۲﴾ هر غسل دپاره لرې کول اودغسل نه پس واپس اچول دحرج باعث وی نو دادغسل نه مانع نه دي.

**لان الحرج مدفوع ﴿۳﴾. ويورده فى الاثار ﴿۴﴾ فليراجع الى نصب الرايه ص۲۳۷ جلد۴. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ (غنية المستملى شرح منية المصلى ص ۴۹ فرائض الغسل)

﴿۲﴾ قال العلامه طاهر بن عبد الرشيد البخارى رحمه الله: ويشد الاسنان بالفضة ولا يشدها بالذهب. (خلاصة الفتاوىٰ كتاب الكراهية فى اللبس ص ۳۷۰ جلد۴)

﴿۳﴾ قال ابن عابدين: (قوله وثقب انضم) قال فى شرح المنية وان انضم الثقب بعد نزع القرط وصار بحال ان امر عليه الماء يدخله وان غفل لا فلا بد من امراره ولا يتكلف لغير الامرار من ادخال عود ونحوه فان الحرج مدفوع.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۱۰۷ جلد ۱ مطلب ابحاث الغسل)

وفى الهندية: والصرام والصباغ ما فى ظفرهما يمنع تمام الاغتسال وقيل كل ذلک يجزيهم للحرج والضرورة ومواضع الضرورة مستثناة عن قواعد الشرع كذا فى الظهيرية.

(فتاوىٰ عالمگيری الباب الثانى فى الغسل ص۱۳ جلد ۱)

﴿۴﴾ وفى المنهاج: والاثار تدل على الجواز كما فى نصب الراية عن الطبرانى فى معجمه الاوسط ان النبى ﷺ امر عمروبن العاص ان يشد ثنيته...... (بقيه حاشيه په بل مخ)

## د غاښ سوري په سیسې وغیره سره ډکول دغسل نه مانع نه دی

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دغاښ سوري په قلعی وغیره ډکول دغسل نه مانع دی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم....... ۱۹۸۲ء\۹\۲۹

**الجواب:** الحمد لله وسلام على عباده الذين اصطفى. امابعد: داخبره دې معلومه وی چه کله دغاښ سوري د قلعی نه ډک شی او اوبه ورته نه داخلیږی نو دحرج وجې نه دغسل جنابت نه مانع نه دې.

**كما يشير اليه مافى ردالمحتار ص ۱۴۳ جلد ۱ قوله وهو الاصح، صرح به فى شرح المنية وقال لامتناع نفوذالماء مع علم الضرورة والحرج، فافهم﴿۱﴾، ويدل عليه مافى اعلاء السنن جلد۱۷ ص ۲۹۹ ان عثمان بن عفان رضى الله عنه ضبب اسنانه بالذهب اخرجه عبد الله بن احمد بن حنبل فى مسند ابيه، والتضبيب مانع من الوصول، وفى ص۲۹۸ ان انس بن مالك شدد اسنانه بلذهب اخرجه الطبرانى والتشديد مانع من جريان الماء تحته﴿۲﴾. فافهم. وهو الموفق**

---

(بقيه حاشيه) الساقطة بالذهب، وعن معجم الصحابة ان عبد الله بن عبد الله بن ابى سلول امره النبى ﷺ ان يتخذ ثنية من ذهب، وفى مسند احمد ان عثمان بن عفان رضى الله عنه ضبب اسنانه بلذهب، وروى الطبرانى ان سنان انس رضى الله عنه شدت باللذهب.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۲۲ جلد۵ باب ماجاء فى شد الاسنان باللذهب)

﴿۱﴾ قال الحصكفى: ولا يمنع ما على ظفر صباغ ولا طعام بين اسنانه او فى سنه المجوف به يفتىٰ وقيل ان صلبا منع وهو الاصح، وقال ابن عابدين صرح به فى شرح منيه وقال لامتناع نفوذ الماء مع علم الضرورة والحرج.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۱۰۹ جلد ۱ باب فى ابحاث الغسل)

﴿۲﴾وفى المنهاج: والاثار تدل على الجواز كما فى لصب......(بقيه حاشيه په بل مخ)

## په غسل کښې د پوزې د نرمن پورې وینځل فرض دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په غُسل کښې او په پوزه کښې په ګوتې سره وردننه کول پکاردی. که پوزه رانښکلو سره؟ او چه په پوزه رانښکلو سره په دماغو کښې د داخلیدلو په وجه باندې د بیمارو پیدا کیدو خطره هم وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شمشیرخان حاجی زئ شبقدر...۱۹۷۵ء\۱۰\۲۸

**الجواب:** په غُسل کښې ددې نرمئ وینځل فرض دی(۱) .تاته چه څنګه آسان وی هغه شان خپل معمول جوړ کړه .وهو الموفق.

---

**(بقیه حاشیه) الرایة عن الطبرانی فی معجمه الاوسط ان النبی ﷺ امر عمروبن العاص ان یشد ثنیته الساقطة بالذهب، وعن معجم الصحابة ان عبد الله بن عبد الله بن ابی سلول امره النبی ﷺ ان یتخذ ثنیة من ذهب، وفی مسند احمد ان عثمان بن عفان رضی الله عنه ضبب اسنانه بذهب، وروی الطبرانی ان اسنان انس رضی الله عنه شدت بالذهب.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۲۲ جلد۵ باب ماجاء فی شد الاسنان بالذهب)**

**﴿۱﴾ وفی الهندیة: وحد المضمضة استیعاب الماء جمیع الفم وحد الاستنشاق ان یصل الماء الی المارن کذا فی الخلاصة.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ص۶ جلد ۱ الفصل الثانی فی سنن الوضوء)**

# الباب الثالث فی البئر والحوض

## په لوئي حوض کښې ټول کال د ولاړو اوبوحکم

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د اوبو يولوئي حوض دې او دهغې اوږدوالي او پلن والي دلس لس ګزه نه زيات دې په هغې کښې د باران اوبه جمع کولې شي او بيا ټول کال په هغې کښې وی ګيرچاپيره ترينه ګندونه او خزلې هم وی ليکن دحفاظت دوجې نه په هغې کښې غورځيږی نه. اود اوبو رنګ هم صحيح وی نوآيا په دې اوبو سره اودس کول صحيح دی؟

بينوا توجروا

المستفتی: نامعلوم. ۳\۴۱\۷۴ء

**الجواب:** ددې حوض نه د اودس اوغسل نه کيدلو هيڅ وجه نشته. وهو الموفق

## ناپاکه اوبوسره جوړې شوې خښتې وغيره په کوهی کښې لګولوحکم

**سوال:** علمائی دين څه فرمائی دې مسئله کښې چه يو کوهی کنستلې کيدو او په هغه وخت کښې هغه ناپاک شو بيا روستو ددې کوهی جوړول وغيره او دکون په دغې ناپاک اوبو او خاورې او ښختو سره او شو او چه کله کوهی تيار شو نو ټولې اوبه ترينه راويستلې شوې اوس سوال دادې چه داوبو ويستلو سره به داټول کوهی دسره پورې پاک ګڼړلې کيږی يانه؟

بينوا توجروا

المستفتی: هلال احمد طورو مردان.....۱۵نومبر۱۹۷۴ء

**الجواب:** دامسئله صراحةً چرته ملاؤ نه شوه البته دقواعدو په رڼړا کښې به داکوهی پاک وی دغه شان په پاکو اوبو کښې دمنږک وغيره په مړ کيدلو سره په ناپاک کيدلو کښې ديوالونه وغيره هم ناپاک کيږی اودکوهی پاک

کیدلو په وخت کښې به دیوالونه وغیره هم پاک شی ﴿۱﴾ نودلالت په وجه سره د پاکوالی په اراده سره دمخکښې او روستنی یو حکم وی. وهوالموفق

## په مشین والا کوهی کښې د حیوان غورخیدلو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که په یوکوهی کښې مشین وی چه په هغې سره اوبه راوباسلې کیږی نو که به هغې کښې یو ځناور او غورځیږی ددې څه حکم دې؟ بینو اتوجروا

المستفتی: محمود.......

**الجواب:** که دمشین جاری کیدو په وخت کښې په دې کوهی کښې ځناور اوغورځیږی او مړ شی نودا معاف دی (لکون النزح کالجریان کمافی البحر ص۸۰ جلد۱) ﴿۲﴾ ګنی بیا کوهی نجس اوپلیت دې. وهوالموفق

---

**﴿۱﴾قال الشرنبلالی: وکان ذلک المنزوح طهارة للبئر والدلو والرشاء والبکرة ویدالمستقی، روی ذلک عن ابی یوسف والحسن لان نجاسة هذه الاشیاء کانت بنجاسة الماء فتکون طهارتهابطهارته نفیا للحرج.**

**(حاشیه الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص۳۸ فصل فی مسائل الآبار)**

**﴿۲﴾ قال ابن نجیم: ومنهم المصنف فی المستصفی ان المراد بنزح البئر نزح مائها اطلاقا لاسم المحل علی الحال کقولهم جری المیزاب وسال الوادی واکل القدر والمراد ماحل فیها للمبالغة فی اخراج جمیع الماء والمراد بالبئر هنا هی التی لم تکن عشرافی عشر اما اذا کانت عشرا فی عشر...... وابی یوسف البئر لا تنجس کالماء الجاری البئر اذالم تکن عریضة وکان عمق مائها عشرة اذرع فصاعدا فوقعت النجاسة فیها لا یحکم بنجاستها فی اصح الاقاویل...... ای ونزح ماء البئر لکن هذا انما یستقیم فیما اذا کانت البئر معینها لاخرج واخرج منها النقدار المعروف اما اذا کانت غیر معین فانه لا بد من اخراجها لوجوب نزح جمیع الماء...... والماء ینبع شیافشیا واما ان لا تنجس اسقاطا لحکم النجاسة حیث تعذر الاحتراز او التطهیر کما نقل عن محمد انه قال اجتمع رائ ورأی ابی یوسف ان ماء البئر فی حکم الجاری لانه ینبع من اسفله ویؤخذ من اعلاه فلا یتنجس کحوض الحمام الخ.**

**(بحر الرائق ص۱۱۰، ۱۱۱ جلد۱ کتاب الطهارة)**

## په لوئي حوض کښې استنجاء اوغسل کول منع نه دی

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو حوض دی اوږدوالې او پلن والې ئی دموجوده زمانې په ګزونو (درې فټه ګزوالا) باندې اتلس (۱۸) اتلس ګزه دې اودا حوض صرف داودس دپاره دې او مستعمل او به دې حوض ته غورځیږی دبهر تللوڅه لاره نشته اوداستنجاء اوغسل دپاره بل ځائی هم شته نوبغیر دڅه عذرنه ددې حوض نه استنجاء او غسل کول څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فقیرمحمدمعصوم سرائې نورنګ بنوں....۲۳\شعبان ۱۳۹۷ھ

**الجواب**: چونکه دا حوض غټ دې لهذا په دې کښې استنجاء او غسل کول منع نه دی، یعنی په دې سره اوبه نه پلیتیږی البته داکار بهترنه دې.

**فلیراجع الی شرح حدیث لا یغسلن احدکم فی الماء الراکد و لا یبولن الحدیث**

**﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په حوض کښې د بال غورځیدل

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو حوض دشرعی مقدار مطابق دې اویو هلک پکښې بال او غورځوو آیا داخوض به پاک ګڼړلې کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......۱۹\مئ ۱۹۸۴ء

---

**﴿۱﴾ وفی منهاج السنن: باب کراهیة البول فی الماء الراکد ای الماء الذی لا یکون جاریا حقیقة ولا حکما یکره فیه البول ویتنجس بخلاف الماء الجاری حقیقة او حکما وهو الماء الکثیر الراکد فانه یکره فیه البول ولاکن لا یتنجس ولعل الامام الترمذی یقصد بذکر هذا الباب ذکر دلیل الحنفیة.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ص ۱۷۱ جلد۱ باب کراهیة البول فی الماء الراکد)**

**وفی الدرالمختار وکذا یجوز براکد کثیر کذلک ای وقع فیه نجس لم یر اثره.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۳۰ جلد۱ باب المیاه)**

**الجواب**: که داخبره یقینی معلومه نه وی چه بال ناپاک وو نودحوض (نجاست) حکم ورکول دقاعدې نه خلاف دی. وهوالموفق

## د کوهی او اوبو د پاکئ او پلیتی عجیبه مسئلې

**سوال**: علمائی دین دې مسئلو باره کښې څه فرمائی (۱) په هدایه (ص۳۲) کښې دی چه کوم ځناور په اوبو کښې اوسیږی. هغه چرته په اوبو کښې مړشی نو اوبه نجس نه وی او دیعیش فی المــاء تعریف ئی داکړې دې چه مایکون معاشه وتوالده فی الماء نو که معیشت ئی په اوبو کښې وو او تولد ئی په اوبوکښې نه وو لکه بطخ چه دهغې معاش په اوبوکښې دې اوتولدئی په اوبو کښې نه دې نو که داسې بطخ او موندلې شی چه دهغې تولدهم په اوبو کښې شوې وی او بیا په اوبو کښې مړه شوه نو ددې څه حکم دې (۲) که په شیشه (بوتل) کښې منږک بند کړې شو اودکوهی په اوبو کښې ئې دا بوتل کیښودو اومنږک په کوهی کښی دشیشې په بوتل کښې مړشو او دری ورځې پس ئی دا شیشه په کوهی کښی ماته کړه او په شیشه کښې منږک پړسیدلې او رژیدلې وو نود څو ورځو د مونځونو اعاده به کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا سیدنصیب علی شاه بنوی ....۱۷\۱دسمبر۱۹۷۴ء

**الجواب**: (۱) که داسې بطخ اوموندلې شوه نو هغه به دمهی په حکم کښې وی لیکن عادةً داسې بطخ ناممکن ده.

(۲) دداسې کوهی ټولې اوبه به راویستلې کیږی (کمــا فی الــدرالمختارعلی هامش ردالمحتارص۱۹۷ ج۱ ولو تفسخه خارجها ثم وقع فیها ذکره الوالی)(۱) نو که دشیشې دماتیدلو وخت معلوم نه وی نو دعلم دوخت نه به د نجاست حکم ورکولې شی (۲) وهوالموفق

---

(۱) قال العلامه الحصکفی ولو تفسخه خارجها ثم وقع فیها ذکره الوالی ینزح کل مائها الذی کان فیها وقت الوقوع ذکره ابن الکمال بعد اخراجه.
(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص۱۵۵ جلد۱ فصل فی البئر)

(۲) قال العلامه الحصکفی ومذ ثلاثة ایام بلیالیها ان انتفخ او تفسخ استحسانا وقال من وقت العلم فلا یلزمهم شئ قبله قیل وبه یفتیٰ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۶۱ جلد۱ مطلب مهم فی تعریف الاستحسان)

## درې کلنه ماشومه په کوهی کښې پریوتله خو مړه اوبه به راوبسلې شی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه درې(۳) کلنه ماشومه په کوهی کښې پریوتله دجمات امام حکم اوکړو چه اویا بوقو راویستلو سره به کوهې پاک شی دامسئله په چرګه باندې قیاس کړې شود اودویم امام صاحب دټولو اوبو دپلیتیدو حکم اوکړو په دی کښې صحیح کوم یو دې؟

بینوا توجروا

المستفتی مولانا فضل مولا فاطمه ضلع مردان.....۱۹۷۲ء\۱\۱۰\۴

**الجواب:** کـ داماشومه ژوندئی راوتلې وی نو کوهی پاک دې او که په کوهی کښې مړه شوې وی نو ټولې اوبه به ترې نه راوباسلې کیږی

**فی الشرح الکبیر وان ماتت فیها شاة او کلب او آدمی نزح جمیع الماء ﴿۱﴾ . وهوالموفق**

## په لوئی حوض کښې د جنابت غسل کول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو حوض پلن والې دود ګزه وې او اوږوالی ئې څلویښت پنځوس ګزه وی آیا دیکښې غسل جنابت جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.....۱۹۷۲ء\۵\۳۰

**الجواب:** جائز دې ﴿۲﴾ وهوالموفق

## که په کوټه کښې د [illegible] خبلو وخت معلوم نه وی نو څه به کوي؟

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې [illegible] فرمائی چه څه عام طور سره په [illegible] کښې اودس کړه او جماعت ته ځم او جماعت [illegible] دې او مقتدیان

---

﴿۱﴾ (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص۱۵۵،۱۵۶ فصل فی البئر)

﴿۲﴾ **قال العلامه الحصکفی وکذا یجوز براکدٍ کثیر کذلک ای وقع فیه نجس لم یر اثره ولو فی موضع وقوع المرئیة به یفتیٰ بحر. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۴۰ جلد۱ مطلب لو ادخل الماء من اعلی الحوض باب المیاه)**

هم مختلف وی امام څه پخپله یم دکور په کوهی کښې یو منږک غورځیدلي وو او پته ئې هله اولګیده چه کله داوبو ذائقه خرابه شوه نوماخو پخپله ددریو ورځو شپو مونځونو را اوګرځول خو دمقتدیانو به څه کیږي؟ اودا کوهی به دکوم وخت نه پلیت شمارلي کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حکیم غلام حسین مانیرئی صوابی.....۲۵\۱۰\۱۹۸۹ء

**الجواب**:دا کوهی به دپته لګیدلونه پلیت شمارلي کیږی او نامعلومه مقتدیانو ته اطلاع ضروری نه ده.

**فی الدرالمختار ویحکم بنجاستها الخ، وقالا من وقت العلم فلا یلزمهم شئ قبله قیل وبه یفتیٰ وفی الشامیه الخ قولهما هو المختار ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## که په کوهی کښې پلیته جامه غائبه شوه نوکوهی به څنګه پاکولې شی؟

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوهی کښې به ګندګئ او میتازو وغیره سره ککړه جامه اودحیض په وینه باندې پلیته شوې جامه اوغورځیږی اوداجامه دری کاله مخکښې غورځیدلي وی اوڅوک موپه کوهی کښې ورکوز کړی هم نه وو البته ددی جامې دغورځیدلونه پس مونږ پنځه سوه تیمه (غوړو والا) راویستلي دی نوآیا داکوهی اوس پاک دې که ناپاک دې؟بینوا توجروا

المستفتی: س،ر،ش زیارت کاکاصاحب.....۲۳\۸\۱۹۸۹ء

**الجواب**: کله چه ددی کوهی نه دومره بوقې [illegible] ویستلي شی په کومو سره چه کوهې پاکیږی (مثلاً دوه سوه ۲۰۰ بوقې) ﴿۲﴾ نو داکوهی او پلیته جامه ټول به پاک شمارلي کیږی.

**کمافی الهندیه ص۲۰ جلد۱ ولو وقعت فی البئر خشبة نجسة او قطعة ثوب نجس وتعذر اخراجها وتغیبت فیها طهرت الخشبة والثوب تبعاً لطهارة البئر کذا فی الظهیر[illegible] ﴿۱﴾. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۱۶۱ جلد۱ مطلب مهم فی تعریف الاستحسان فصل فی البئر)**

**﴿۲﴾ وفی الهندیه: واذا وجب نزح جمیع الماء ولم یمکن فراغها لکونها معینا ینزح مائتادلو کذ افی التبیین.**

**(فتاویٰ هندیه ص ۱۹ جلد۱ الباب الثالث فی المیاه الفصل الاول)**

وتغیبت فیها طهرت الخشبة والعرب تبعاً لطهارة البئر کذا فی الظهیریه ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د کوهی نه دچرګ هډوکی راووتل نو کوهې پاک دې که ناپاک

سوال: علمائے دین دی مسئلی باره کښې څۀ فرمائی چه یو کوهی ته د ۲۲ [illegible] چرګه غورځیدلې [illegible] ناسی چه کور والو دچرګی د رانیولو په کوشش کښې وو په کوهی کښې ئی دبرد نه تماشه هم اوکړه خوڅه په نظر رانغله څلورمیاشتې پس دکنستلو په حالت کښې معلومه شوه چه دا چرګه دې کوهی ته غورځیدلې وه ځکه چه دهغې ټول هډوکی وغیره په کوهی کښې موجود وو او ددی کوهی اوبه تقریباً څلورمیاشتې استعمال شوی دی نو اوس به دمونځونو وغیره څه حکم وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا میرشاهدالله میران شاه شمالی وزیرستان.....۱۹۸۷ء\۱۲\۱۴

**الجواب:** په دی کوهی کښې دچرګې غورځیدل اومړه کیدل نه مشاهد ې نه ثابت دي اونه غالب ګمان نه لهذا داکوهې پاک دې صرف دشک په وجه کوهې نه ناپاکه کیږی.

وقد وقع ههنا شک فی ان هذه العظام عظام هذه الدجاجة او غیرها وفی ان هذه العظام وقعت فیه الیوم او قبل ذلک حین کانت مخلوطة باللحم فافهم ﴿۲﴾. وهوالموفق

## په نسوارو او افیونو غورځیدلو باندې کوهې نه ناپاک کیږی

سوال: علمائی دین دې مسئله باره کښې څه فرمائی چه په یو کوهی کښې نسوار

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ص ۲۰ جلد ۱ الباب الثالث فی المیاه الفصل الاول)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن نجیم: وقالا یحکم بنجاستها وقت العلم بها ولا یلزمهم اعادة شئ من الصلوٰت ولا غسل ما اصابه ماء ها قبل العلم وهو القیاس لان الیقین لا یزول بالشک لانا نتیقن بطهارتها فیما مضی وقد شک فی النجاسة لاحتمال انها ماتت فی غیر البئر ثم القتها الریح العاصف فیها او بعض السفهاء اوالصبیان او بعض الطیور الخ. (البحر الرائق ص ۱۲۴ جلد ۱ باب الانجاس)

اوغورځیدل نو کوهي پاک دي که ناپاک دي؟ دغه شان دافیونو څهٔ مسئله ده؟ بینوا توجروا

المستفتي فضل احد، غلام احد واخوانهما بازار بټخیله ملاکنډ ایجنسي ۱۹۷۰/۵/۲۳

**الجواب:** تماکو او تهول بوټي پاک دي او افیون هم پاک دي نو ددې په غورځیدلو سره کوهي نه پلتیږي.

**فی الدرالمختار ص۲۰۳ جلد۵ ولم نراحداً قال بنجاستها و لا بنجاسة نحو الزعفران﴿۱﴾. فقط**

## د چینه دارکوهی نه داوبو راویستلو په مقدار کښې دفقهاؤ مختلف اقوال او مفتیٰ به قول

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوماشوم دسپی ورکوټي بچې کوهی ته ورغورزار کړو اوهغه په کښې لږساعت پس مړشو دوه (۲) دری (۳) ګهینټی پس پته اولګیدله چه هغه دسپی بچې ئې راویستلې دې اودجماعت دامام نه تپوس کولو نه پس ئی اتیا بوقې هم راویستلې اوکوهی چینه داردې چه څومره اوبه ترنه هم راوباسې خوهغه کمیږی نه بیا وروستو یو بل مولوی صاحب چه داواقعه واوریدله هغه اووئیل چه دفقهې دکتابونو په رڼرا کښې به ددې کوهی تهولې اوبه راویستلې کیږی هله به کوهی صفا کیږی نو دې کښې بحث دومره اوچلیدلو چه اوس به دکوم مولوی صاحب په خبره باندې عمل کیږی بیا خلقو یو بل مولوی صاحب ته رجوع اوکړه هغوی دالیکلي ورکړل چه درې سوه (۳۰۰) بوقې تر نه راوباسئ نو کوهی به بې شکه پاک شی نو درې سوه (۳۰۰) بوقي ترینه اویستلې شوې اوس چه کوم مولوی صاحب دتهولو اوبو راویستلو مسئله خودلې وه هغه اوس هم په خپله خبره کلک دې چه داکوهې اوس هم پلیت دې ددې نه په شرعی طریقه سره تهولې اوبه راوباسئ اوپاک ئی کړې هغه وائې چه دکوهې اوږدوالې اوپلن والې ناپ کړئ او دهغې هومره کنده اوکنئ هغه ددې کوهی د اوبو نه ډکه کړی نو پاک

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: لوکان قلیل البنج اوالزعفران حراما عند محمد لزم کونه نجسا لانه قال ماسکر کثیره فان قلیله حرام نجس ولم یقل احد بنجاسة البنج ونحوه.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۱۷۲ جلد۳ قبیل باب حد القذف)

به شی دویمه خبره هغه دا بیان کړله چه د کوهی ژوروالې تاسو ناپ کړئ او اوبه راویستل شروع کړئ. دهغوی وینا ده چه که دکوهی ژور والې لس (۱۰) لاسه وی او په یوه گهینټه کښې یو لاس لاندې لاړشی نو لس (۱۰) گینټې اوبه راویستلو سره به کوهې پاک شی اویائې داوبو ویستلو والا مشین سره راوباسئ بیا چه مود فقهې کتابونه او کتل(تعلیم الاسلام) حصه دوم مرتبه حضرت مفتی کفایت الله صاحب رحمه الله دهلوی نو په هغې کښې دپوره اوبو راویستلو حکم دې دغه ددیوبندی مسلک کتاب (بهشتی زیور) کښې هم دټولو اوبو راویستلو حکم دې هغې کښې هم د درې سوو(۳۰۰) بوقو څه ذکر نشته په فتاوی رشیدیه کامل مبوب مطبوعه کراچی صفحه ۲۴۳ باندې دی که خپه ئې پلیته وی نو اوبه به راوباسي او که پاکه وی نو هیڅ نشته په هغې کښې هم د درې سوو(۳۰۰) بوقو څه ذکر نشته،صرف فتاوی دارالعلوم دیوبند. مطبوعه کراچی جلد ۱ صفحه ۳۸ او جلد ۲ صفحه ۵۷ باندې په مستعمل کوهی کښې اود چیلۍ د پچو غورزیدو په حکم کښې د چینه دار کوهی نه درې سوو بوقو راویستلو مسئله ده،دارنگې دفقه حنفی معتبر کتاب هدایه اولین مطبوعه مطبع مجتبائی دهلی صفحه نمبر ۲۷ کښې دی:

**وان ماتت فیها شاةٌ او آدمی او کلب نزح جمیع مافیها من الماء لان ابن عباس رضی الله عنه وابن زبیر رضی الله عنه افتیا بنزح الماء کله حین مات زنجی فی بئر زمزم فان انتفخ الحیوان فیها او تفسخ نزح جمیع ما فیها صغر الحیوان او کبر لانتشار البلة فی اجزاء الماء وان کانت البیر معینة بحیث لا یمکن نزحها اخرجوا مقدار ما کان فیها من الماء وطریق معرفته ان تحفر حفر مثل موضع الماء من البئر ویصب فیها ما ینزح منها الی ان تمتلی او ترسل فیها قصبة وتجعل لمبلغ الماء علامته ثم ینزح منها مثلاً عشر دلاء ثم تعاد القصبة فتنظر کم انتقص فینزح لکل قدر منها عشر دلاء وهذان عن ابی یوسف رحمه الله وعن محمد رحمه الله نزح مائتا دلو الی ثلث مائة وکانه بنی قوله علی ما شاهد فی بلده ،**

په دې عبارت کښې د لکیر والا عبارت کښې (وعن محمد رحمه الله) په حاشیه ئی لیکلې دې.(قوله وعن محمد الی آخره والمروی عن ابی حنیفه اذا نزح منها مائة یکتفی وهو بناء علی ابار الکوفة لقلة الماء فیها، دارنگې دریم (۳) نمبر عبارت

(علی ما شاهد) لاندې حاشیه باندې دی (قوله علی ماشاهد..الخ) من غالب میاه ابار بغداد لان ابار بغداد لا تزید علی ثلث مائة دلو، دارنګې درساله رکن الدین صفحه ۵۴ باندې دی دداسی کوهی نسبت چه هغه بالکل خالی کیږی نه بعضی علماؤ ددری سو (۳۰۰) بوقو راویستلو فتوی ورکړې ده داولې دی ددې سوال په جواب کښې یې لیکلې دی چه دا فتوئ په ضعیف قول باندې ده او ددې اصل دادې چه امام محمد رحمه الله دافتوی دبغداد شریف کوهیانو سره مخصوص کړیده کله چه هغوی اولیدل چه دبغداد په کویانو کښې ۳۰۰ دری سوه بوقونه زیاتې اوبه نشته نو په دې قول سره هم ټولې اوبه واویستل ثابت شو اودا چرته کیدې شی چه امام محمد رحمه الله دټولې دنیا په کوهیانوباندې دیو مخصوص شمیرفتوٰی ورکوله! وحال داچه دفقهاء صحابه رضی الله عنهم دپلیتی په سبب سره دټولو اوبو راویستل یو جاری عمل وی لکه دحضرت عبدالله بن عباس اود عبدالله ابن الزبیر رضی الله عنهما ددې مخالف منقول دی دهغه علماؤ ډیره غټه غلطی ده چه داقول امام محمد رحمه الله ته منسوب کړو اودټولې دنیا په ټولو کوهیانو باندې فتوی ورکوی حال دادې چه امام محمد رحمه الله کوم ځای کښې دافتوی ورکړې ده نو په یو مخصوص شمار سره ئی دټولو اوبو راویستلو فتوی هم ورکړې ده لکه چه ثابته شوه (ازشامی) صحیح مسئله څۀ ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سیدجماعت علی شاه صاحب ګیلانی مقام خاص مولی پور تحصیل کبیروالا ضلع ملتان

**الجواب**: صحیح حکم دادې چه دموجوده اوبو مقدار راوباسئ مثلاً که کوهې دری (۳) ګزه ډوب وی اوپه یو فټ کښې شپیته (۶۰) بوقی اوبه وی نو چه کله د کوهی نه (۵۴۰) پنځه سوه څلویښت بوقې راوباسلې شی نوپاك بی شی دمقدار معلومولو دپاره چرته یو ماهر کس ته رجوع اوکړئ (۱) فقط

(۱) قال العلامه الحصکفی وان تعذر نزح کلها لکونها معینا فبقدر مافیها وقت ابتداء النزح قاله الحلبی یؤخذ ذلک بقول رجلین عدلین لهما بصارة بالماء وبه یفتیٰ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۱۵۷ جلد ۱ فصل فی البئر)...... وهاب

## په حوض کښې د لس په لس والا شرط مفتی به نه دې

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې دټیوب ویل په ذریعه سره واړه واره تالابونه جوړ کړې شوې دی چه هغه لس په لس والا مقدار نه کم دی اوټیوب ویل هر وخت جاری نه وی اوخلق ددې تالابونونه اوبه وړی نو آیا ددې اوبو په استعمال سره مونځ وغیره کیږی نه؟ دارنګې د لس په لس مقدار ماخذ دقران حدیث اوفقې نه دې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد زمان سرائې نورنګ بنوں.... ۲۷\شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** محققینو احنافو تصریح کړې ده چه داوبو دلږوالی اوډیر والې دارومدار پخپله هغې مسئلې کښې د اخته سړی په رائی باندې ده.د عشراً فی عشر باندې نه ده (۱) نو که ددی حوضونو متعلق داستعمال والو رائې داوی چه که دې کښې نجاست اوغورځیږی نود اودس کولو په وخت کښې سمدستی بل طرفته نه رسیږی نو دابیا غټ حوضونه دی اوکه داسې نه وی نو واړه دی وهوالموفق

## د حوض په مقدار کښې مفتٰی به قولونه

**سوال:** محترم ومکرم عزیز القدر صاحب حضرت مفتی صاحب السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څمونږ په ملک.کښې دحکومت دطرفه تالابو نه منظور شوې دی چه په هغې کښې بعضی

﴿۱﴾ قال العلامه الحصکفی رحمه الله: والمعتبر فی مقدار الراکد اکبر رأی المبتلیٰ به فیه فان غلب علی ظنه عدم خلوص ای وصول النجاسة الی الجانب الآخر جاز والا لا هذا ظاهر الروایة عن الامام والیه رجع محمد وهو الاصح کما فی الغایة وغیرها وحقق فی البحر انه المذهب وبه العمل . (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۴۱ جلد ۱ باب المیاه) وان التقدیر عشراًبعشر لا یرجع الی اصل یعتمد علیه. (ایضاً)

ګول دي لیکن دشرعی حدنه کم دی چه هغه عشراً فی عشر دي او اوبه دیو طرفته راځی اوتالاب کښې جمع کیږی او بل طرفته نه اوځی او خلق په بالتو او تیمانو سره دا اوبه دتالاب نه اوباسی نو که په دې تالاب کښې څه پلیتی او غورځیږی نوداتالاب به پاک وی که پلیت؟ اوددې حکم به (کالماء الجاری) وی که نه؟ څمونږ ځائی کښې بعضې مولایان وائی چه دا (عموم بلوی) ده او څوک ورته د (کالماء الجاری) حکم ورکوی دغه شان د(منیة المصلی) صفحه ۲۴ عبارت هم دې.

**حوض صغیر یدخل الماء فیه من جانب ویخرج من جانب آخر فتوضأ فیه الانسان فوقعت غسالة فیه ان کان الحوض اربعاً فی اربع یجوز وضوء ه لان الماء المستعمل لایستقر فی مثله بل یدور حوله ویخرج وان کان الحوض اکبر من ذلک لا یجوز لان الماء المستعمل یستقر فی مثله،**

ددې عبارت تشریح هم واضحه کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماسټرسید غلام سرائې نورنګ ضلع وتحصیل بنون...۱۹۶۹ء۵/۱۷

**الجواب:** (۱) که ددې تالاب غټوالې دومره وی چه یو طرف کښې پلیتی غورځیدلو سره دویم طرفته دپلیتئ اثر رسیږی نو داتالاب (کالماء الجاری) نه دې اوپلیتیږی او که دنجاست اثر بل طرفته نه رسیږی نو بیا (کالماء الجاری) دې اود اوصافو د بدلون نه بغیر نه نجس کیږی اوهم داظاهر الروایة دې.

**فی الدرالمختار: والمعتبر فی مقدار الراکد اکبر رأی المبتلیٰ به فیه فان غلب علی ظنه عدم خلوص النجاسة الی الجانب الاخر جاز والا فلا، هذا ظاهرالروایة عن الامام والیه رجع محمد وهو الاصح (هامش ردالمحتار ص۱۷۷ جلد۱)**

اودا عشراً فی عشر قول داعتماد لائق نه دې.

**لمافی الدرالمختار وان التقدیر بعشر فی عشر لا یرجع الی اصل یعتمد علیه ﴿۱﴾**

او که بالفرض ددې مراد ثابت شی نو بیا ترې شرعی ګزونه مراد دی چه هغه نهه بنده دې نو په دې وجه که په انګریزی ګزونو سره طول اوعرض ساتی

﴿۱﴾ **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۱۴۱ جلد۱ باب المیاه)**

نو داحوض غټ دې او (كالماء الجارى) هم دې.

(اى فى غير ظاهر المذهب واختاره فى النهر الفائق)﴿۱﴾.

۲ په منيه کښې قاضى خان (ددې عبارت نه پس) داعبارت نقل دې.

**والاصح ان هذا التقدير غير لازم فان خرج الماء المستعمل من ساعة لكثرة الماء وقوته يجوز والا فلا﴿۲﴾ قال العلامة الشامى ص۱۷٦ جلد۱ واقره الشارحان...... واجاب ركن الاسلام السغدى بالجواز مطلقاً لانه ماء جار والجارى يجوز التوضأ به وعليه الفتوىٰ﴿۳﴾**

ددې عبارت نه معلومه شوه چه کوم حکم تادمنيه والا نقل کړې دې (غير صحيح)او غير مفتى به دې. فقط

## د شرعى گز اندازه اوتحقيق

**سوال:** علمائى دين دې مسئله باره کښې څه فرمائى چه په (منحة الخالق على البحر الرائق ص ۱۳۹) کښې دشرعى گز اندازه ليکلې شوې ده.والذراع اربعة وعشرون اصبعاً والاصبع ستة شعرات مرصوصة بالعرض،،

ددې عبارت نه معلوميږى چه داسې شکل کښې به کيښودې شى (۱۱۱۱۱۱) بيايى لاندې ليکلې دى (فظهرشعرة منها الى بطن الاخرىٰ توضع،، چه دهغې شکل ځما په ذهن کښې داسې راځى (- - -) دشرى گزناپ داولنى شکل مطابق دې که ددويم شکل مطابق داولنى شکل په وجه باندې دشرعى گزاندازه ډيره کمه راځى اوددويم شکل په وجهې سره د انگريزى گز دو چنده جوړيږى ددې جواب راکړئ؟ بينوا توجروا

المستفتى: شفيع اكبرملک آباد علاقه گدون.... ۱۹۸۲ء\۷\۱۵

**الجواب:** په سعايه وغيره کښې دى چه شرعى گزه يونيم فټ دې.(وهومختارصاحب

---

﴿۱﴾ (غنية المستملى شرح منية المصلى ص۹۹ فصل فى احكام الحياض)

﴿۲﴾ (وهكذا فى منحة الخالق هامش البحر الرائق ص۷۳ جلد۱ كتاب الطهارة)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۱۴۰ جلد۱ مطلب لو ادخل الماء من اعلى الحوض وخرج الخ)

الهدایــه والاکثــرین، البته قاضی خان وغیره ددرې نیم فتهو مقدار والا گز معتبرکړیدي دې او صاحب د بزازیه د هرې زمانې اوعلاقې خپل مروجه عام گز معتبر کړې دې ﴿۱﴾ (فلیر اجع الی ابواب المیاه.) وهوالموفق

﴿۱﴾ وفی منهاج السنن: واختلفوا فی تحدید الذراع علی ثلثة اقوال، الاول ان المعتبر ذراع المساحة وهو سبع قبضات فوق کل قبضة اصبع ای الابهام قائمة (درے نیم فٹه ۳۲ انچه) افتیٰ به قاضی خان وغیره، والثانی ان المعتبر ذراع الکرباس وهو ست قبضات من دون قیام الاصبع (اتلس انچه یونیم فٹ) واختاره صاب الهدایه والاکثرون القول الثالث ان المعتبر ذراع کل زمان ومکان واختاره صاحب البزازیه.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۶۰ جلد ۱ باب ماجاء ان الماء لا ینجسه شیء)

# الباب الرابع فی التیمم

## فالج والا د خادم او نوکر په نه موجودګئ کښې تیمم کولې شی

**سوال:** علماء کرام په دې مسئلې کښې څه فرمائی چه زید په لاس، غوږ او سترګو سره بالکل روغ رمټ دې لیکن په خپو فالج وهلې دې چه ګرزیدې نه شی داسړی په وخت کښې دننه داودس کولو انتظام نشی کولې ځکه چه پخپله داوبو تلاش نشی کولې او وخت هم تیریږی که دې د تیمم په ذریعه سره مونځ ادا کړی نو دا جائز دې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......۱۳۹۷ھ

**الجواب:** داسړی د خادم او نوکر په عدم موجودګئ کښې تیمم کولې شی.

**کمافی شرح التنویر اولم یجد من یوضئه فان وجد ولو باجرة مثل وله ذلک لا یتیمم فی ظاهر المذهب کما فی البحر (هامش ردالمحتار ۲۱۵ جلد ۱)﴿۱﴾ وبمعناه فی الهندیه ص۲۸ جلد ۱ ﴿۲﴾ وفتاویٰ دارالعلوم دیوبند ص ۲۴۴ جلد ۱ فلیراجع. وهو الموفق**

## د مرګی د مریض د پاره د غسل په ځای باندې د تیمم حکم

**سوال:** څه د مرګی مریض یم یو ځل مې دغسل اراده اوکړه نو دغسل په وخت

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱۷۱ جلد ۱ باب التیمم)

﴿۲﴾ وفی الهندیه او کان لا یجد من یوضیه ولا یقدر بنفسه فان وجد خادما او مایستأجربه اجیراً او عنده من لو استعان به اعانه فعلیٰ ظاهر المذهب انه لا یتیمم لانه قادر کذافی فتح القدیر. (عالمګیریه ص۲۸ جلد ۱ الباب الرابع فی التیمم الفصل الاول)

کښې راباندې دوره راغله او تندې مې په تیره ګټه باندې اولګیدو او زخمی شو او تقریبا یو میاشت پورې زخم وو نو داسې حالت کښې به ماته دغسل نه کولو اجازت وی که نه غسل کول به ضروری وی؟ یا څه بله طریقه اوښایئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمن بنوں..... ۲۰\۱نومبر۱۹۷۴ء

**الجواب**: که اسانه وی نود صبا راختلو نه مخکښې غسل کوه اوباقی مسئله داده که په غسل کولو سره دوره راتلل یقینی وی یاغالب ګمان وی نوبیا تیمم کولې شې.

**کمافی الهندیه ص۲۸ جلد ا ویعرف ذلک الخوف اما بغلبة الظن عن امارة اوتجربة اواخبار طبیب حاذق مسلم غیر ظاهر الفسق کذا فی شرح منیة المصلی لابراهیم الحلبی﴿ا﴾. وهوالموفق**

## د اوبو ضرری کیدلو په وخت کښې تیمم جائز دی

**سوال**: یو سړې مخ لاس وینځی خله کښې اوبه اچوی استنجاء هم اوبو سره کوې اوبیا استنجاء اولاس وینځلو نه پس دمونځ دپاره تیمم کوی نو آیا داتیمم کیدی شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدامین فرتوپه اټک.... ۱۹۹۱ء\۱۱\۸

**الجواب**: که داسړی بیمار وی غسل او اودس ده ته ضرر ورکوی نوده دپاره تیمم جائز دې ﴿۲﴾ وهوالموفق

## اودس ماتیدلو سره جنابت د پاره کړی تیمم باندې څه اثر نه غورځیږی

**سوال**: علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو سړې دجنابت دپاره

﴿ا﴾ (فتاویٰ هندیه ص۲۸ جلد ا باب التیمم الفصل الاول)

﴿۲﴾ فی الهندیه ولوکان یجد الماء الا انه مریض یخاف ان استعمل الماء اشتد مرضه او ابطأ برؤه تیمم...... ویعرف ذلک الخوف اما بغلبة الظن عن امارة او تجربة او اخبار طبیب حاذق مسلم غیر ظاهر الفسق.

(الفتاویٰ العالمگیریه ص۲۸ جلد ا باب التیمم الفصل الاول)

تیمم اوکړی اوپه غسل باندې قادرنه وی اوبیا اودس مات شی نوآیا دجنابت دپاره به په دویم ځل تیمم کوې که هغه مخکښې کافی دې؟ بینوا توجروا
المستفتی: نامعلوم......

**الجواب:** ترځوپورې دغسل کولو عذر باقی وی نو دهغې پورې دجنابت دپاره دایو تیمم کافی دې اوچه کله دغسل اوریدلو باعث په دویم ځل راشی نوپه دویم ځل به تیمم ضروری وی البته داودس ماتیدلو په صورت کښې به باقاعده اودس کول پکار وی.

**وفی الکبیری ص ۸٦ وان کان الماء یکفی للوضوء ولا یکفی للمعة یتوضأ به ولا ینتقض تیمم الجنابة لان الماء فی حق اللمعة کالمعدوم لعدم کفایته لها ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په یو لاس باندې دشل سرې اودس او تیمم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که دچا لاس نه وی نو دې سړې دپاره داوبو په عدم موجودګئ کښې تتمم فرض دې یانه؟ او که فرض وی نو تیمم به څنګه کوی؟ بینوا توجروا
المستفتی: محمدشفیع موقوف علیه دارالعلوم حقانیه....یکم صفر ۱۴۱۱ھ

**الجواب:** یو لاس والا کس اودس هم کولې شی او تیمم هم کولې شې په یو (ضرب) دې مخ مسح کړی او لاس دې په خاورې وغیره پورې راکاږی اودغه شان دخادم په ذریعې سره هم اودس اوتیمم جائز دې.

**فلیراجع الی ردالمحتار وغیره ﴿۲﴾. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾ (غنیة المستملی ص ۸۳ فصل فی التیمم)**

**﴿۲﴾ قال ابن عابدین رحمه الله (قوله کمافی البحر) حاصل مافیه انه ان وجد خادما ای من تلزمه طاعته کعبده وولده واجیره لا یتیمم اتفاقاً وان وجد غیره ممن لو استعان به اعانه ولوزوجته فظاهر المذهب انه لا یتیمم ایضاً الخ.**
**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۱۷۱ جلد ۱ باب التیمم)**
**وقال ایضا وفی التاتارخانیه الرجل المریض اذالم...... (باقی په بل مخ)**

## د خلقوپه مخکښې د عورت ښکاره کیدلو

## په وجه دغسل په ځای تیمم کول

**سوال:** که یو سړی داسې ځای کښې مقیم وی چه هلته دغسل انتظام نه وی مطلب داکه غسل کوی نو دخلقو په مخکښې دعورت ښکاره کیدلو پوره یقین دې نو داسې حالت کښې دا سړی په تیمم سره مونځ کولې شی یانه؟ اونور خلقو ته امامت کولې شې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: علی عباس خان مدرسه قاضی حسام الدین کوهاټ... یکم ذی الحجه ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** که دخلقو په مخکښې دعورت ښکاره کیدلو نه بغیرغسل ممکن نه وی نوددې سړی په تیمم کښې اختلاف دې امام حلبی جواز طرفته مائل دې کمافی شرح الکبیر ص ۵۰ وبالجملة فلا ضرورة فی کشف العورة للغسل عندمن لا یجوز نظره الیها لان له خلفا بخلاف الختان ونحوه (۱) او زیات احتیاط په دې کښې دې چه امامت دې نه کوی اوکه امامت ئی کړې وی نود خط په ذریعې سره دې مقتدیانو ته دمونځ راګرځولو خبرورکړی.

**کما فی شرح التنویر کما یلزم الامام اخبارالقوم اذا امهم وهو محدث او جنب بالقدر الممکن بلسانه او بکتاب او رسول علی الاصح لو معینین والا لا یلزمه وفی ردالمحتار ص۵۵۴ جلد ۱ وقال ان تعین بعضهم لزمه اخباره ﴿۲﴾. وهو الموفق**

---

**(بقیه حاشیه) تکن له امرأة ولا امة وله ابن اواخ وهو لا یقدر علی الوضوء قال یوضئه ابنه او اخوه غیر الاستنجاء فانه لا یمس فرجه ویسقط عنه والمرأة المریضة اذالم یکن لها زوج وهی لاتقدر علی الوضوء ولها بنت او اخت توضئها ویسقط عنها الاستنجاء اه، ولا یخفیٰ ان هذالتفصیل یجری فیمن شلت یداه لانه فی حکم المریض.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۵۰ جلد ۱ باب الاستنجاء)**

**﴿۱﴾ (غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص ۵۰ بحث الغسل)**

**﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ص۴۳۸ جلد ۱ مطلب المواضع التی تفسد صلاة الامام دون المؤتم)**

## د اوبو په یومیل کښې کم فاصله باندې تیمم صحیح نه دې

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څمونږ خلق ددوه (۲) غرونو نه اوبې پریکوی او راوړی چه د کلی نه لرې دی بعضې علماؤ پخوا زمانه کښې په دې غرباندې جمات جوړ کړې وو آیادغه ځاې په تیمم سره مونځ صحیح دې حال داچه ددې غرنه دمیل په دریمه حصه فاصله کښې څه آبادی هم شته لیکن هغوی ته هم داوبو تکلیف دې خلق ډیر لرې نه په سرونو باندې اوبه راوړی اودلرګوالا درې څلورسوه کسان جوړیږی چه هغوی ته اوبه ورکول دې کورونو والا دپاره ډیرګران دی نو آیا په داسې ځاې کښې تیمم سره مونځ کول صحیح دې؟ اوحال داچه خلق خپلو خپلو کورنو ته په وخت رسیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: میاں ګل میران شاه وزیرستان..... ۱۹۸۲ء۱۱۱۸

الجواب: کوم ځاې کښې چه په تیمم سره مونځ کولې شی که داځاې داوبو نه یو میل لرې وی (یعنې یو میل پوری داوبو نام ونشان نه وی اویا په کورونو کښې اوبو وې لیکن دبعضی عوارضو په وجه باندې ئې کورونو واله راتلونکو ته نشی ورکولې) نو دا راتلونکی خلق په تیمم سره مونځ کولې شی(۱) اګر که داکسان په وخت کښې دننه خپلو کورونو ته رسیدلې شی اوکه اوبه نزدې وی یادا کورونو والا خلق دوی ته اوبه ورکوی نو په تیمم سره مونځ کول صحیح نه دی (ماخوذ از کبیری وردالمحتار) وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه حصکفی من عجز عن استعمال الماء المطلق الکافی لطهارته...... لبعده ولو مقیماً فی المصر میلاً، قال ابن عابدین (قوله ولومقیماً) لان الشرط هو العدم فاینما تحقق جاز التیمم نص علیه فی الاسرار بحر.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۱۷۰، ۱۷۱ باب التیمم)

(هکذا فی غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص ٦۴ باب التیمم)

# الباب الخامس

# فی المسح علی الخفین وغیرهما

### په خپو باندې د مسحې د پاره د قرانی ایت نه د روافضو دلیل نیول غلط دی

**سوال:** علمائی دین دمفتیان شرعې متین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه شیعه حضرات دسورة المائده دپنځم او شپږم ایت په وجې سره په خپو باندې دمسحې دفرض کیدو قائل دی او په صرفی او نحوی ترکیب سره هم مسحه ثابتوی او غسل رجلین یعنی دخپو وینځلو ته دقران نه خلاف وائی او اعلان کوی چه سنی علماء ترقیامته پورې دغسل رجلین دثابت کولو نه عاجزدی نو هغه کوم نحوی اوصرفی ترکیب دې چه دهغې نه مونږ اهل سنت والجماعت دخپو وینځل ثابتوؤ دغه شان په نورو دلائلو اوبراهینو سره هم مختصر وضاحت اوکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: اهل سنت والجماعة منډی بهاؤالدین ضلع گجرات ۱۹۷۲ء\۱۲\۱۷

**الجواب:** اعلم ان ارجلکم معطوف علی المغسول دون الممسوح یدل علیه القرآن والحدیث والاجماع والعقل، اما الاول فهو قوله تعالیٰ الی الکعبین ولم یقل الی الساقین والکعب غایة الغسل دون المسح واما الثانی فهی الاحادیث المتواترة الواردة فی عمل الغسل وترغیب الغسل والوعید علی ترکه واما الثالث فلان الصحابة رضی الله عنهم حتی علیا وابن عباس ذهبوا الی وظیفة الغسل، واما الرابع فان الرجلین اقرب الیٰ محل الغبار والنجاسة بخلاف الرأس والعجب من اهل التشیع انهم لم یلتفتوا الی قرأة النصب

مع ان العطف بالنصب على المجرور لا يصح الا فى المجرور بالحرف الزائد فافهم وتدبر﴿۱﴾. (وانما كتبت الجواب بالعربية لانها مسئلة معضلة لا يفهمها العوام. فقط

## د سفر په دروان كښې په موزو باندې مسح كولو كښې

## د صاحب هدايه په استدلال باندې د ابن الهمام كلام

۱۵ ربيع الاول ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** ملخص استدلال صاحب الهداية ان كل مسافر يمسح ثلثة ايام فلا بد ان يكون مقدار السفر ثلاثة ايام والا فيصدق نقيض الكلية الاولى، اى بعض المسافرين لا يمسحون ثلاثة ايام فيلزم خلاف الحديث.

ملخص ايراد الامام ابن الهمام انه لو حمل هذا الحديث على الاطلاق لزم صدق نقيضه لان بعض المسافرين لا يمسحون ثلاثة ايام كما اذا بكر المسافر فى .

---

﴿۱﴾قال العلامه ابراهيم الحلبى: والارجل من بين الاعضاء الثلثه المغسولة تغسل يصب الماء عليها فكانت مظنة للاسراف الملموم المنهى عنه فعطف على الممسوح لاالتمسح ولكن لينبه على وجوب الاقتصاد فى صب الماء عليها وقيل الى الكعبين فجئ بالغاية اماطة لظن ظان يحسبها ممسوحة لان المسح لا تضرب له غاية فى الشريعة انتهىٰ وقد ثبت فى الصحيحين من رواية عبد الله بن عمر وابى هريرة رضى الله عنهما ان رسول اللهﷺ راى قوما توضؤا واعقابهم تلوح لم يمسها الماء فقال ويل للاعقاب من النار وفى رواية لابى هريرة رضى الله عنه ويل للعواقيب من النار وفى صحيح مسلم عن جابر رضى الله عنه قال اخبرنى عمر بن الخطاب رضى الله عنه ان رجلاً توضأ فترك موضع ظفر على قدمه فابصره النبىﷺ فقال ارجع فاحسن وضوئك وعن عائشة رضى الله عنها لان تقطعا احب الى من ان امسح على القدمين من غير خفين وعن عطاء ماعلمت ان احداً من اصحاب رسو اللهﷺ مسح على القدمين فهذا اجماع من الصحابة على وجوب الغسل وهو يؤيد الاحاديث الصحيحة فلا عبرة بمن جوز المسح على القدمين من الشيعة ومن شذ (غنية المستملى المعروف بالكبيرى ص۱۵،۱۶ شرائط الصلاة)

الیوم الاول الی وقت الزوال حتی بلغ المرحلة فنزل بها للاستراحة وبات فیها ثم بکر فی الیوم الثانی ومشی الی مابعدالزوال ونزل ثم بکر فی الثالث ومشی الی الزوال فبلغ المقصد، لانه مسافر عند النیة کما صححه السرخسی ولا یمسح ثلاثة ایام، فلا بد من ان یحمل هذا الحدیث علی التقید ای کل مسافر کان سفره ثلاثة ایام فصاعداً یمسح ثلاثة ایام، فلم یصح استدلال صاحب الهدایة بهذا الحدیث ویصح کون قدرالسفر اقل من ثلاثة ایام، وان اجابوا عن هذا الایراد بان بقیة کل یوم ملحقة بالمنقضی منه فلا یلزم کون قدر سفر هذا المسافر اقل من ثلاثة ایام، فهذالجواب لا یدفع هذا الایراد لان بقیة الیوم الثالث لاتصح الحاقها بالمنقضی لعدم السفر فیها حقیقة ولعدم رخصة السفر فیها، فالایراد وارد الآن کما کان ای لزوم کون بعض المسافرین لایمسحون ثلاثة ایام، وهذا لازم باطل لازم من کون المبکر المذکور مسافراً فالملزوم مثله، وبالجملة ان المبکر المذکور غیر مسافر فلا یمسح ثلاثة ایام ولایقصر ایضاً فلایقصر مسافر یوم واحد وان قطع فیه مسیرة ایام.

ولا یبعد ان یجاب عن کلام ابن الهمام ان معنی الحدیث ان کل مسافر اذا خلی وطبعه یمسح ثلاثة ایام مادام مسافراً، فجاز ان لایمسح ثلاثة ایام لمایعرضه کالعجلة فی السیر، والمبکر المذکور لم یبق مسافراً فلذا لم یتمم الیوم الثالث فافهم ولا تعجل فی الرد والقبول. وهوالموفق

## په جرابوباندې د مسح شرطونه

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه نن صبا کومې د نائلون جرابې دی آیا په دې باندې داحنافو په نزد مسح جائز ده که نه؟ دلته

بعضې خلق په دې جرابو باندې په مسح جائز وائی چه داهل ظواهرو په شان دی آیا داصحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: بنده رحمن الدین ضلع دیرملاکنډ ډویژن

**الجواب**: د نائلون په جرابو باندې مسح کول جائزنه دی، ځکه چه په جرابو باندې دمسح دجواز دپاره داشرط دې چه داسې سختې اوغټې به وی چه صرف دا واغوندی نو درې میله پورې په کښې تللې شی اوشلیږی نه اوداشرط دې چه داواچوی او تړلونه بغیر هم غورځیږی نه او که دانه غورځیدل دتنګئ دوجې نه وی نو بیاهم مسحه کول جائز نه دی اودا شرط هم دې چه اوبه تری نه نه اوځی او څلورم شرط دادې چه دننه پکښې څه په نظر نه راځی یعنی چه سترګې پرې اولګوې نو هم څه په نظر نه راځی.

**یدل علیه مافی الدرالمختار اوجوربیه ولو من غزل او شعرالثخینین بحیث یمشی فرسخا ویثبت علی الساق بنفسه ولایری ماتحته ولا یشف آه ﴿۱﴾و فی الشرح الکبیر ص۱۰۸ وینبغی ان یقید بما اذالم یکن ضیقاً فانانشاهد مایکون منه فیق یستمسک علی الساق من غیر شد ولوکان من الکرباس انتهیٰ﴿۲﴾**

او خبر شئ چه دنیلون جرابې دتنګئ دوجې نه نه غورځیږی لهذا په کښې دویم شرط موجودنه دې او اوبه ترینه هم اوځی او چه دومره راکاږی څومره چه خپې ته د اچولو په وخت کښې وی نو دهغې نه بهر والاځیز هم په نظر راځی او دریم اوڅلورم شرط هم په کښې نشته لهذا په دې باندې مسحه کول دمذهب نه خلاف دی ﴿۳﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۶۹ جلد ۱ باب المسح علی الخفین)

﴿۲﴾ (غنیة المستملی ص۱۰۸ فصل فی المسح علی الخفین)

﴿۳﴾ قال ابن نجیم (قوله والجورب المجلد والمنعل والثخین ای یجوز المسح علی الجورب اذا کان مجلداً او منعلاً او ثخیناً...... والثخین ان یقوم علی الساق من غیر شد ولا یسقط ولا یشف وفی التبیین ولا یریٰ ما تحته.

(البحر الرائق ص ۱۸۲ جلد ۱ باب المسح علی الخفین)

## نائلون په جرابو مسح کول جائز نه دی

**سوال**: د نائلون په جرابو مسح جائز ده که ناجائز؟ بینوا توجروا

المستفتی: بهادرسید دروش چترال....۱۳\صفر۱۳۹۷ھ

**الجواب**: ناجائز ده ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د مسح علی الجوربین مسئله

**سوال**: په موزو باندې خومسحه صحیح ده لیکن کومې جرابې چه دبارې (کارخانو) نه راوړلې کیږی او هغه اوبه هم راکاږی نوبغیر عذر نه په دغسې جرابو باندې مسحه کول صحیح دی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حضرت مولانا فضل مولی صاحب سابق شیخ الحدیث
بدارالعلوم حقانیه اکوړه ختك ۱۴| ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب**: دمفتی به قول په بناباندې په جرابو مسحه کول جائز دی لیکن دجواز دپاره څه شرطونه دی چه په (درمختار باب المسح علی الخفین) کښې لیکلې شوې دی (منها ما ذکره (ای اشارالیه) المستفتی) اودنائیلون په جرابو کښې داشرطونه نشته ﴿۲﴾ لهذا په دې باندې مسح جائز نه ده وهوالموفق

﴿۱﴾ خفین دڅرمنې موزو ته وائی اودمسحې په جواز کښې اصل هم خفین دی، غیر مدرک بالقیاس په وجې سره دقیاس تقاضا داده چه په غیر څرمنې والا موزوباندې دې مسح جائز نه وی لیکن داستحسان په بنا باندې هغه غیر څرمنې والاموزې چه په هغې کښې دخفین شرائط موجود وې په هغې به هم جائز وی او په نائیلون یاتار والا جرابو کښې دغه شرطونه نشته نو په هغې باندې به څنګه دخفین (څرمنې والا موزې) پشان مسحه جائز شی (فافهم)

**قال العلامه حصکفی او جوربیه ولو من غزل او شعر الثخینین بحیث یمشی فرسخا ویثبت علی الساق بنفسه ولایریٰ ماتحته ولایشف الا ان ینفذ الی الخف قدر الفرض. (الدرالمختار ص۱۹۷ جلد۱ باب مسح الخفین) ......(ازمرتب)**

**﴿۲﴾ قال العلامه حصکفی اوجوربیه ولو من غزل او شعر......(بقیه حاشیه په بل مخ)**

## په فتاوی عالمګیري کښې د مسئله فرک المنی
## او مسح علی الجبائر په باره کښې تپوس

**سوال:**(۱) د فتاوی عالمګیری په تطهیر الانجاس کښې دی ومنها الفرک فی المنی، فرک الثوب، دفرک معنی ده جامه مږل او فرک عن الثوب څه څیز دجامونه مږل او لرې کول نو دلاندینې عبارت نه مراد به جامې مږل او څنډل وی یا ګرول او مږل.

**ومنها الفرک فی المنی، المنی اذا اصاب الثوب فان کان رطباً یجب غسله وان جف علی الثوب اجزأ فیه الفرک استحساناً( کذافی العنایه) (جلد۱ ص ۴۴)،**

نن صبا ددې مسئلې په حکم کښې څه تبدیلی خونه ده راغلې؟

(۲) په جلد اص ۳۵ المسح علی الجبائر کښې دی:

**(الف) ویکتفی بالمسح علی اکثر الجبیرة (کذافی الهدایه) (ب) رجل باصبعه قرحة فادخل المرارة فی اصبعه او المرهم فجاوز موضع القرحة فتوضأ ومسح علیها جاز اذا استوعب المسح العصابة وکذا فی حق المفتصد وعلیه الفتوٰی**

په دیکښې په جبیره (پټۍ) باندې د مسحې په باره کښې په اکثره جبیره باندې مسحې ته کافی وئیلې شوې دی مګر په عصابه کښې داستیعاب حکم دې دافرق ولې دې؟ که فرق دې دپاره وی چه جبیره دزخم نه زیاتی ځائې نیولې وی لهذا په هغې کښې په اکثر حصه باندې مسحه کافی ده او عصابه صرف په زخم باندې وی نو په هغې کښې استیعاب دې نو په مذکوره صورت کښې فادخل المرارة فی اصبعه والمرهم فجاوز..الخ)کښې په زیاتی ځائی باندې مراره ده په هغې کښې هم په اکثر مراره باندې مسحه کافی کیدل پکار دی وضاحت اوکړئ چه داپریشانی ختمه شی؟ بینو اتوجروا

المستفتی: محمدصادق ناظم مجلس منتظمه اشاعت فتاوی عالمګیریه سهګل جهلم... ۱۹۷۰ء۱۷/۵/۱

**الجواب:** (۱) فی ردالمحتار هوالحک بالید حتی یتفتت بحر(شامی ص۲۲۸ جلد۱)

اومقصود منی لرې کول دی هرې طریقې سره چه وې (ب) ددلائلو او روایات

---

**(بقیه حاشیه ) الشخینین بحیث یمشی فرسخا ویثبت علی الساق بنفسه ولا یریٰ ماتحته ولایشف. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۶۹ جلد ۱ باب المسح علی الخفین)**

فقهیهؤ په وجه باندې حکم کښې څۀ فرق نشته البته په درمختار کښې لیکلې شوې دی چه داستنجاء نه کولو په صورت کښې منی په فرک سره نشی پاکیدې (۱) (هامش ردالمحتار ص۲۸۷ جلدا)(۲) استیعاب والا روایت مؤول دې یا مرجوح دې، یدل علی بعض المرادمافی ردالمحتار(ص۲۵۹ جلد۱)(۲) وهوالموفق

## په کومو شرطونو سره په جرابو باندې مسح جائزده؟

**سوال**: په جرابو باندې مسح جائز ده که نه؟ که جائز وی نو په کومو شرطونو سره؟ بعضې خلق په دې کښې جهګړه کوی او ماپه جرابو باندې مسح جائز وئیلې ده آیا داصحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: بشیراحمد حویلیان ایبټ آباد.... ۲۲\ذی الحجه ۱۳۸۸ھ

**الجواب**: که په جرابو کښې دا یوڅو شرطونه وی نو په هغې باندې مسح جائز ده ګنی نوجائزنه ده(۱) داسی سختې اوغټې وی چه صرف هم هغه واچوې اودرې میله پورې لاړشې او اونه شلیږی (۲) که هغه واچوې اوپه پنډی باندې ئی اونه تړی اوبیاهم نه غورځیږی (۳) چه دهغې نه اوبه نه راوځی (۴) چه دننه تری نه څه په نظر نه راځی (۵) که دپنډئ نه دتنګئ په وجې سره نه غورځیږی هغه هم نا منظوردی داشرطونه په کبیری (۳) او په درمختار (۴)

---

(۱) قال العلامه حصکفی ان طهر راس حشفة کان کان مستنجیا بماء وفی المجتبیٰ اولج فنزع فانزل لم یطهر الا بغسله. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۲۲۸ جلد ۱ باب الانجاس)

(۲) قال ابن عابدین: ویحتمل ان یکون مراد المصنف ان المسح یجب علی کل العصابة ولا یکفی علی اکثرها لکن ینافیه انه سیصرح بانه لا یشترط الاستیعاب فی الاصح فیتناقض کلامه وانه کان الاولیٰ حینئذ تعریف العصابة لان الغالب فی کل عند علم القرینة انها اذا دخلت علی منکر افادت استغراق الافراد واذا دخلت علی معرف افادت استغراق الاجزاء الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲۰۵ جلد۱ مطلب فی لفظ کل اذا دخلت علی منکر)

(۳) (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص۱۰۸ فصل فی المسح علی الخفین)

(۴) الدرالمختار علی هامش ردالمحتارص۲۲۹ جلد ۱ باب المسح علی الخفین

وغیره کښې مذکوردی او واضحه دي وی چه دا شرطونه دنائلون په جرابو کښې بالکل نشته دي لهذا په هغې باندې هم مسحه جائزه نه ده.

## په بوټ باندې مسح جائزده اومونځ پکښې قابل اعتراض دي

**سوال:** که بوټ دګیټونه بره وی یعنې ګیټئ پکښې پټې وی او بنه کلک ئی اوتړې اوڅه شلیدلې ځائی پکښې هم نه وی نوآیا دې باندې مسح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: طلامحمد خان ټل هنګو.... ۱۹۸۶ء\۷\۲۴

**الجواب:** مسح بریں پاپوش قابل اعتراض نیست، لیکن نماز دورے قابل اعتراض است یکے از وجہ نجاست، دوم از وجہ عدم وضع اصابع بر زمین (درحالت سجدہ) نہ حقیقتاً (کماھو واضح) ونہ حکماً از جہت ارتفاع وعدم تابع شدہ پیش طرف وے کہ مضبوط وسخت باشد کما اشار الیه القاری﴿۲﴾. وهو الموفق

## که په بوټ کښې شرطونه وی نو مسح اومونځ دواړه جائزدی

**سوال:** دابوټان چه دمضبوطې څرمنې نه جوړشوې دی اوګیټوپورې رسی یعنې

---

﴿۱﴾وفی منهاج السنن: قال مشائخنا الیوم لا یصلی بالنعال فی المسجد لان دخول المسجد متنعلاً من سوء الادب فی العرف الحادث ولان تلویث المسجد بها واقع لا محالة ولان علة التنعل قد انتهت لان الیهود والنصارىٰ فی زماننا یصلون فی النعال لا یخلعونها.

(ف) اعلم ان النعال اذا لم تکن مانعة من توجیه رؤس الاصابع الی القبلة فجاز الصلوٰة فیها والا فلا، کما یشیر الیه کلام القاری فی المرقاة، فالصلوٰة فی المداس الرائج الیوم لا یجوز اذا کان مقدمه مرتفعاً واسعاً بحیث لا یمتلأ باصابع القدم فافهم.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۲۷۸ جلد ۱ باب ماجاء فی الصلوٰة فی النعال)

په هغې کښې دننه وی او د سجدې په دوران کښې پکښې ګوتې هم خوزی نوآیا په دې باندې مسح اومونځ جائزدې؟ بینوا توجروا

المستفتی: متعلم دارالعلوم حقانیه....۱۹۸۷ء\۱۲\۱۱

**الجواب**: برین پاپوش (بوټان) مسح جائزاست ونماز دروے درست است. لتحقق جمیع شرائط مسح علی الخفین والصلوة(۱) هاں طهارت این پاپوش ضروری است.وهوالموفق

## د نائلون په جرابو باندې د مسح کولو حکم

بعضې د نوې رڼړاوالا خلقو دطرفنه دامسئله را اوچته شوه چه دموزوپشان دنائیلون په جرابو هم مسح جائز کیدل پکاردی نو اکابرعلماؤ دفقهې اوفتاوې په رڼړا کښې ددې مسئلې شرعی حیثیت واضح کړو دحضرت مفتی اعظم دامت برکاتهم او علامه شمس الحق افغانی رحمه الله رائی او تحقیق فتوی ماهنامه الحق شائع کړې ده خودخپل داهمیت په بنیادپه دې فتاوی کښې هم شامل کولې شی (از مرتب)

**فی الدرالمختار او جوربیه ولو من غزل او شعر الثخینین بحیث یمشی فرسخاً ویثبت علی الساق بنفسه ولایری ما تحته ولا یشف الخ، (حلبی کبیر ص ۱۲۱) وحد الجورب الثخینین ان یستمسک ای یثبت ولا ینسدل علی الساق من غیر ان یشد**

(۱) دمونځ دجواز حکم ځکه دې چه په دې کښې دسجدې په دوران کښې ګوتې برابر خوځی اودبوټ اوګوتوپه مینځ کښې څه داسې سختی او خلا نشته چه دمونځ نه مانع اوګرځی (ازمرتب) په منهاج السنن کښې دی.

**اعلم ان النعال اذا لم تکن مانعة من توجیه رفع الاصابع الی القبلة فجاز الصلوٰة فیها والا فلا، کما یشیر الیه کلام القاری فی المراقاة.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۲۷۸ جلد ۱ باب ماجاء فی الصلوٰة فی النعال)**

**بشئ هکذا فسروه کلهم وينبغي ان يقيد بما اذا لم يكن ضيقا فانانشاهد ما يكون فيه ضيق يستمسک على الساق من غير شد ولوكان من الكرباس. انتهیٰ**

د پورته عبارت نه معلومه شوه چه په جرابو باندې په يو څو شرطونو سره مسح کول جائزدی اول دا چه دومره غټې اوډبلې وی چه که يواځې جرابې واغوندې نو کم ازکم درې ميله پکښې تلل اوشی اوتړلې ئی هم نه وی اوبيا هم دپنډئ (زنګون) نه لاندې نه کوزيږی اودويم داچه سمدستی ترینه اوبه نه اوځی کماصرح بهذا القيد فی الشرح الکبيرص ۱۰۸، دريم داچه دننه پکښې څه څيزپه نظر نه راځی يعنی که سترګې پرې او لګولې او اوګورې نو هم څه نه ښکاری څلورم دادپنډئ نه نه غورځيدل دتنګوالې په وجې سره نه وی.

د نائيلون جرابې چه څومره مونږ ليدلې دی په هغې کښې داشرطونه نشته ځکه چه په نائيلون کښې درېږ پشان دغونډيدلو او اوږديدلو خاصيت موجود دې نود اغوستلو نه پس دهغې نۀ غورځيدل دټينګيدلو او تنګئ د وجې نه دی اوکله کله د لږ مزل نه پس هغه دپنډئ نه غورځيږي ,, کمالايخفٰی علی من جرب،، اوکله چه دا جرابې داغوستلو په وخت کښې څومره راښکلې کيږی چه دهغې هومره راښکلې شی اوکتل پکښې اوکړې شی نوهرڅۀ پکښې ښکاری او اوبه ترينه هم سمدستې اوځی اودتاټ په جرابو کښې داسی نه وی نو په دې وجه باندې په دې مسح کول جائز نه دی او که د نائيلون داسې جرابې وی چه په هغې کښې داشرطونه موجود وی نو بيا به دمفتی به قول مطابق په هغې باندې مسح کول جائزوی هذاماعندی ولعل عندغيری احسن من هذا...

(محمدفريد عفی عنه)

## د حضرت العلامه شمس الحق افغانی رحمه الله تحقیق اووضاحت

دثخینین په باره کښې د فقهې په کتابونو کښې (ردالمحتارص ۱۸۸ جلد ۱) عبارت د (ثخینین) لاندې اوګورئ!

**بحیث یمشی فرسخاً ویثبت علی الساق بنفسه ولایری ما تحته ولا ینشف (الدر) وفی الرد وفی بعض الکتب ینشف وفسر فی الخانیه الاول بان لا یشف الجورب الماء الی نفسه کالادیم والصرم وفسر الثانی بان لا یجاوز الماء الی القدم وقال تحت بنفسه ای من غیر شد اه.**

ددې عبارت نه معلومه شوه چه د (جواز مسح علی الثخینین) دپاره سختوالې ضروری دې چه هغه په درې خبرو سره راځی (۱) چه بغیر د څپلونه پکښې سړې شرعی درې (۳) میله یا دهغې نه زیات تللې شی (۲) دترلو نه بغیر دپنډئ پورې انختې وی (۳) او که اوبه پرې واچولې شی نو دننه نه ځی.

دا درې واړه کارونه اوخاص طورسره دریم کار دنائیلون په جرابو کښې بالکل نشته لهذا مسح پرې صحیح نه ده اوپه دیکښې احتیاط ځکه هم ضروری دې چه په قران کښې (غسل الرجلین) راغلې چه قطعی حکم دې او د (مسح علي الخفین) حدیثونه متواتر یا مشهور دی نوددې وجې نه دتخصیص دپاره کافی دی صرف په (مسح علی الجوربین) کښې ځما په نزدداسې (صحیح السند) صریح الدلالة حدیثونه دشهرت په درجه کښې نشته او د (قیاس علی الخفین) دپاره دمضبوط مشاکلت اومشابهت ضرورت دې والله اعلم

(احقر شمس الحق افغانی بهاوالپور)

# الباب السادس

# فی الحیض والنفاس

## د حیض په حالت کښې د ښځې نه د پرتوګ دَ پاسه د فائدې اخستلو حکم

**سوال:** علمائی کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دحیض په حالت کښې دښځې نه دپرتوګ د پاسه دفائدې اخستلو حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحیم..... ۱۲\۱ مارچ ۱۹۸۴ء

**الجواب:** چه کله حائل موجود وی نو ممنوع نه دی ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د حائضې د لاس خوراک خوړل جائز دی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دحائضې دلاسونو خوراک وغیره خوړل جائز دی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سرفرازخان کردکالا باغ میاں والی....۱۹۷۵ء\۱\۱۰\۱۴

**الجواب:** دحائضې په لاسونوسره خوراک پخول او خوړل ټول جائز دی.
لحدیث اصنعوا کل شئ الاالنکاح ﴿۲﴾ ولان نجاستها حکمیه.. وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله یعنی مابین سرة ورکبة) فیجوز الاستمتاع بالسرة ومافوقها والرکبة وماتحتها ولو بلا حائل وکذا بما بینهما بحائل بغیر الوطء.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۱۴ جلد ۱ مطلب فی حکم وطء المستحاضة)

﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۵۶ جلد ۱ الفصل الاول باب الحیض)

## که د زنانه دروژې په حالت کښې حیض شروع شو نو امساک به کوی

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوې زنانه د پشمنی نه پس سحر یاعرمه کښې خپله بیماری (جامې،حیض) شروع شی تو دهغه وخت نه خوراک څکاك جائزدی اوکه نه دماښام پورې به انتظار کوی؟

بینوا توجزوا

المستفتی: فضل واحد باجوړایجنسی ....۱۲\۱۱شوال ۱۴۰۴هـ

**الجواب:** داسی حائضه به امساک کوی (شامی) ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د حیض په حالت کښې داستغفار، درود شریف او تسبیحاتو ونیلو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زنانه دحیض اونفاس په دوران کښې تلاوت خونشی کولې خو (سبحان الله، الحمدلله،استغفار، درود شریف او نورذکرونه وئیلې شی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل واحد پشه سالارزی باجوړ....۱۱\۱۱جولائی۱۹۸۴ء

**الجواب:** داکلمات وئیل جائزدی (شرح التنویر) ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾قال العلامه ابن عابدین:(قوله کمسافر اقام وحائض )......والاصل فی هذه المسائل ان کل من صار فی آخر النهاربصفة لو کان فی اول النهار علیها للزمه الصوم فعلیه الامساک......وکذا کل من وجب علیه الصوم لوجود سبب الوجوب والاهلیة لم تعذر علیه المضی ...... فانه یجب علیه الامساک الخ. (ردالمحتار علی هامش الدرالمختار ص۱۱۲ جلد۲ مطلب فی جواز الافطار بالتحری کتاب الصوم)

﴿۲﴾ قال الحصکفی (ولاباس) لحائض وجنب (بقراءة ادعیة ومسها وحملها وذکر الله تعالیٰ وتسبیح).

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۲۱۵ جلد۱ باب الحیض)

## د حیض د بندیدلو او حمل نه کیدلو دوایانو استعمالولو په صورت کښې د طهر د ورځو حکم

**سوال**: زید دبچونه پیدا کیدلو په وجه سره دوائی استعمالوی آیا داجائز دی که نه؟ اودغه شان دحیض بندؤلو دپاره ګولی هم ورکوی نود طهادت حکم به وی که دحیض؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم ....۱۹\۱۱مارچ۱۹۸۴ء

**الجواب**: دصحیح نیت اومقصدپه بنیاد داسې کول جائز دی (۱) لکه څنګه چه عزل وغیره جائزدی(۲) اودحیض بندولو په وخت کښې به دطهر (پاکئ) احکام جاری کیږی. (۳) وهو الموفق

## د حیض بندولو د پاره علاج کول جائزدی

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څهٔ فرمائی چه بعضې زنانه داغواړی چه په رمضان شریف کښې ټولې روژې اونیسی او دحج په ورځو کښې دحج په

---

(۱) مثلاً دښځې ئی داسې بیماری وی چه دهغې په وجه باندې دماشومانو راوړلو قابله نه وی اوکه ښځه ئی صحتمنده وی بیماره نه وی نو بیا بـه دعارضی وقفې هم اجازت نه وی ځکه چه پـه دې سره دمسلمانانو افرادی قـوت تـه نقصان رسیږی چه دهغې اجازت هیچرې نشی ورکولې (سیف الله حقانی)

(۲) قال العلامه ابن عابدین الشامی (قوله ویکره ان تسقی لاسقاط حملها وجاز لعذر) کالمرضعة اذا ظهر بها الحبل وانقطع لبنها ولیس لابی الصبی مایستاجر به الظئر ویخاف هلاک الولد قالوا یباح لها ان تعالج فی استنزال الدم مادام الحمل مضغة او علقة ولم یخلق له عضو وقدروا تلک المدة بمائة وعشرین یوماً وجاز لانه لیس بآدمی وفیه صیانة الآدمی خانیه. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص۳۰۴، ۳۰۵ جلد ۶ کتاب الحظر والاباحة باب البیوع)

(۳) وفی الهندیه لا یثبت حکم کل منها الا بخروج الدم وظهوره وهذا هو ظاهر مذهب اصحابنا وعلیه عامة مشایخنا وعلیه الفتویٰ وهکذا فی المحیط.
(فتاویٰ هندیه ص۳۸ جلد ۱ فصل فی احکام الحیض والنفاس والاستحاضة)

احکاماتو طواف وغیره کښې هم کمی رانشی ددې مقصد دپاره دانګریزی علاج ټیکه (انجکشن) وهی چه دهغې په وجې سره ئی حیض دمقرر شوې وخت پورې بندشی نوزید ایم بی بی ایس ډاکټر هم دې هغه وائی چه داعلاج مکمل طور سره اثرکونکې دې اوددغې انجکشن لګولو سره حیض دڅهٔ مودې دپاره اودریږی نو دشریعت په رڼاکښې داسی کار کول جائزدې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدمشتاق احمد صوبائی اسمبلی خیبررودپشاور... ۲۱\۵\۱۹۹۱ء

**الجواب**: دحیض بندولو یاشروع کولو دپاره علاج کول مباح دی نه مطلوب شرعی دی اونه ممنوع شرعی دی یدل علیه ﴿۱﴾

## د نفاس په موده کښې استحاض راتلل

**سوال**: علمائےدین دې مسئلې باره کښې څهٔ فرمائی چه دیوې زنانه ماشوم پیداشو نود ۲۸ ورځوپورې ئی وینه راغلې وه یعنی جاری وه بیا دیارلس (۱۳) ورځې بنده شوه بیاپه څوارلسمه (۱۴) ورځ جاری شوه اوس به ددې زنانه نفاس څوورځې وی او دحیض به څه حکم وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمن مروت کرک..... ۲۱\ربیع الثانی ۱۴۰۳هـ

**الجواب**: خبرشه په حیض اونفاس کښې پرله پسې والې ناممکن دې لکه چه ددوو (۲) حیضونو په مینځ کښې پرله پسې والې ناممکن دې په مینځ کښې یی کم نه کم پنځلس (۱۵) ورځې وقفه ضروری ده ﴿۱﴾ (شامی، بحر) نوکه په

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین: قال فی السراج سئل بعض المشائخ عن المرضعة اذا لم ترحیضا فعالجته حتی رءت صفرة فی ایام الحیض قال هو حیض تنقضی به العدة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۰۲ جلد ۱ باب العدة)

﴿۲﴾ قال الحصکفی واقل الطهر بین الحیضتین او النفاس والحیض خمسة عشر یوماً ولیالیها اجماعاً ولاحد لاکثره.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۰۹ جلد ۱ مبحث فی مسائل المتحیره باب الحیض)

دې صورت کښې دا زنانه عادت والانه وی (۲۸+۱۲-۴۰) ورځې دهغې نفاس دې او روستو موده دطهر زمانه ده اوداوینه داستحاض ده (۲) اود عادت نه کیدلو په وجه باندې به د طهر زمانه پنځلس ورځې وی. وهوالموفق

(۱) قال العلامه ابن عابدين اذا وقع فى المبتدأة ...... ونفاسها اربعون ثم عشرون طهرها اذ لا يتوالى نفاس وحيض ثم عشرة حيضها ...... خلافا لما فى الامداد من ان طهرها خمسة عشر والمعتادة ترد الىٰ عادتها فى الطهر ...... وهذا على قول الميدانى الذى عليه الاكثر.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۰۹ جلد ۱ مبحث فى مسائل المتحيره باب الحيض)

# الباب السابع فی الانجاس

## د جنابت، حیض اونفاس د پاره دطهارت حکمیه یعنی تیمم حکم

**سوال:** آیاد جنابت، حیض او نفاس دپاره هم طهارت حکمیه یعنی تیمم جائزدي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محمدخطیب نورانی مسجد فرنتیرکالونی کراچی نمبر۱۲...صفر۱۳۹۲ھ

**الجواب:** طهارت حکمیه یعنی تیمم دحدیث اصغر، حدیث اکبر، حیض اونفاس ټولو دپاره جائزدي هرکله چه ئی په طهارت حقیقیه (غسل اواودس) باندي قدرت نه وی. (۱)

**صرح به فی جمیع کتب الفروع لاحاجة الی نقل عبارات الفقهاء. وهوالموفق**

## د مذی وتلو نه دَ بچ کیدلو تدبیر

**سوال:** کله کله بي اختیاره دفاسد خیالونو راتلو سره دمثانې نه مذی راوځی اوسره دکوشش نه هم په مونځ کښي داسی صورت پیدا کیږی نو آیا مونځ به صحیح وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ممتازاحمد پشاور...۱۹۸۲ء۱۱۲۱

**الجواب:** داسړي دی داستنجاء اود اودس کولو په وخت کښی په اله تناسل (اندام مخصوص) باندي یو پټئ (یونیم انچ پلنه شپږانچ اوږده) معمولی شان اوتړی چه دتکلیف نه محفوظ شی (۲) وهوالموفق

---

(۱) قال الحصکفی: من عجز (مبتدا خبره) تیمم عن استعمال الماء المطلق الکافی لطهارته. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۷۰ جلد ۱ با ب التیمم)

(۲) وفی الهندیه: اذا خاف الرجل خروج البول فحشا احلیله بقطنه ولولا القطنة یخرج من البول فلا باس به ولا ینتقض وضوء ه حتی یظهر البول علی القطنة کذافی فتاویٰ قاضی خان. (فتاویٰ هندیه ص ۱۰ جلد ۱ باب الوضوء فصل نواقض الوضوء)

## په وینه گنده شوې پلستر سره د عذر په وجې مونځ کول صحیح دي

**سوال:** داحقر خپه د اکسیډنټ په وجه باندې دګیټونه بره پورې ماته شوې وه. بیائی زۀ په خیبر هسپتال کښې داخل کړم لیکن وینه بالکل نه وه ښکاره شوې نو بنده به په تیمم سره په ناستې مونځ کولو بیا په خپه کښې څه فرق راغې نو ماته ئی نشه راکړه اوخپه کښې ئی راته دستیلو میخ اولګولو اوپلسترئی کړه او ښه کافی وینه هم اووتله چه پلستر سره اونختله نوبنده په وینې سره دګنده شوی پلستر دوجې نه دمونځ کولو نه معذورشو اوس عرض دادې چه دغه شان کوم مونځونه زمانه قضاء شوې وی نو هغه به جوړیدو او پلستر لرې کولو نه پس قضاء راګرځوم اوکه نه هم دغه شان ئې ددې پلسترسره کوم؟ بینوا توجروا

المستفتی:عبدالواسع بلی ټنګ کوهاټ...۲۱\شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دپلستر اوپټئ سره چه کوم نجاست ونخلی هغه معاف دې ځکه چه دهغې وینځل ناممکن یاتکلیف والا دی باقاعده مونځ کولې شې.(۱) وهوالموفق

## په جاری اوبو کښې دنجاست ملاویدلو حکم

**سوال:** چہ مے فرمایند علماء دین دریں مسئلہ کہ جوئے آب جاری باشد، وبرائے ویں جوئے دیگر ناپاک یعنی بول خلط شدہ باشد، چہ حکم دارند۔ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی سعد الرحمٰن علی زئی کوہاٹ......۶/صفر ۱۴۰۳ھ

---

(۱) قال العلامه ابن عابدين فان ضره الحل والغسل مسح الكل تبعاً والا فلا بل يغسل ماحول الجراحة ويمسح عليها لا على الخرقة ما لم يضره مسحها فيمسح على الخرقة التى عليها ويغسل حواليها وما تحت الخرقة الزائدة لان الثابت بالضرورة يتقدر بقدرها كما اوضحه فى البحر عن المحيط والفتح.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲۰۵ جلد ۱ قبيل باب الحيض) ...... وهاب

**الجواب:** اگربعد ازاختلاط وآميزش آب جوی جاری متغيرشود يعنی درين آب رنگ يا طعم يا بوئې نجاست ظاهرشد، پس اين جوئی نجس باشد ورنه نجس نباشد ﴿۱﴾ (هدايه. شامی، بحر، هنديه)۔ وهوالموفق

## د نابالغه ماشومانوپه اطلاع باندې به په اوبو د نجاست حكم نشی لګولی

**سوال:** علمائی دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائی چه په يو كوهی كښې يو ناپاكه ټپوس اوغورځيدو تقريباً شل (۲۰) ورځې پس وړو هلكانو اقرار اوكړو چه داټپوس مونږ غورزولې وو نواوس به ددې كوهی داوبو څۀ حكم وی اوكوم څيزونه چه په دې سره وينځلې شوې دی اوكوم مونځونه وغيره چه په دې سره شوې دی دهغې به څۀ حكم وی؟ راګرځول ئی لازمی دی كه نه اودځومره ورځو اعاده به كول وی؟ بينوا توجروا

المستفتی: احسان الله هزاروی متعلم دارالعلوم حقانيه ۱۸\۱۱دسمبر۱۹۷۴ء

**الجواب:** دنابالغه بچو خبر وركول نامنظور دی لهذا دا اوبه به دهغه وخت نه ناپاكه ګڼړلې كيږی﴿۲﴾ دكوم وخت نه چه ئی پته اولګی.

**كمافی احكام الصغار الصبی اوالمعتوه اذا اخبر بنجاسة الماء لا تثبت النجاسة بقوله لانه لقلة عقله قد يكذب فلا يترجح صدقه علی كذبه (هامش جامع الفصولين ص۱۴۳ جلد ۱)﴿۳﴾ . وهوالموفق.**

**﴿۱﴾ قال العلامه حصكفی وبتغير احد اوصافه من لون او طعم اوريح ينجس الكثير ولو جارياً اجماعاً. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۱۳۶ جلد ۱ باب المياه)**

**﴿۲﴾ قال العلامه حصكفی ومذ ثلاثة ايام بلياليها ان انتفخ او تفسخ استحسانا وقال من وقت العلم فلا يلزمهم شئ قبله قيل وبه يفتیٰ.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۱۶۱ جلد ۱ مطلب فی تعريف الاستحسان)**

**﴿۳﴾وفی الهنديه: ولو كان المخبر بنجاسة الماء صبيا او معتوهاً يعقلان ما يقولان فالاصح ان خبرهما فی هذا كخبر الذمی(ای لا يقبل) لانه ليس لهما ولاية الالزام هكذا فی فتاویٰ قاضی خان. (فتاویٰ عالمگيريه ص۳۰۹ جلد۵ الباب الاول فی العمل بخبر الواحد)**

## د ناپاکه تیلو د پاکولو طریقه

**سوال:** د شړشمو د تیلو ټیم دې چه په هغې کښې به تقریبا لس (۱۰) سیره تیل وی په یو ټیم کښې منږک (چوها) اوموندلې شو نو آیا اوس داتیل پاک دی که ناپاک؟ اوپه خپله ئې استعمالولې شو که نه؟ اودپاکولو طریقه ئی څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مختاراحمد شوګرملزچارسده....۱۴\جمادی الثانی ۱۴۱۱ھ

**الجواب:** ته داتیل یا غوړی په اته سیره ګرامو اوبو کښې واچوه اوهغې اوبو ته حرکت ورکړه کله چه ښه په قلار شی نو یو بل لوښی ته تری نه داتیل یاغوړی واړوه چه په هغې کښې هم تقریبااته (۸) سیره ګرمې اوبه وی او چه دحرکت ورکولو نه پس په آرام شی نو په بل کښې دغه شان دری (۳) ځلې دې کولو سره په داتیل اوغوړی پاک اوحلال شی (شامی) ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د حلال څناورو د متیازو او سوټو اود چرګې د بولو (غلو) حکم

**سوال:** ټول حلال څناور اودکومو چه مونږ غوښې خورو دهغې متیازې غُل وغیره دچاپه جامویابدن باندې اولګی نو دا غلاظت خفیفه دې که غلیظه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام محمد ډهوک منجوکاجټ کیملپور....۱۹۷۲ء\۲۱\۸

**الجواب:** (۱) دکوموڅناوروغوښه چه حلاله ده دهغوی متیازې نجاست خفیفه دې (کما فی الهدایه والدرالمختار) ﴿۲﴾ اوپه سوټو کښې اختلاف دې.

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین ولو تنجس ...... الدهن یصب علیه الماء فیغلی فیعلوا الدهن الماء فیرفع بشئ هکذا ثلاث مرات، اه . (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۴۵ جلد ۱ مطلب فی تطهیر الدهن والعسل)(ومثله فی الطحطاوی ص ۱۶۰ باب الانجاس)

﴿۲﴾ قال العلامه حصکفی من نجاسة مخففة کبول مأکول ومنه الفرس وطهره محمد. الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲۳۵ جلد ۱ باب الانجاس)

دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد باندې نجاست غلیظه دی لیکن دعموم بلوی دوجې نه نجاست خفیفه کیدل زیات مناسب دی(۱) اوپه دې هم پوهه شی چه په نجاست غلیظه کښې هم دلاس دَ تلی په اندازې سره معاف دی اوپه خفیفه کښې د څلورمې حصې نه کم معاف دی(۲).(۲) دچرګانو غل نجاست غلیظه دی (۳) وهوالموفق

## دسلس البول د مریض د پاره چه کله ګران وی نو جامې وینځل یې ضروری نه دی

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دسلس البول مریض خوبه دهر مونځ دپاره نوې اودس کوی لیکن دجامو سره به څهٔ کوی دهغې دبدلولو ضرورت شته که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالودود کوهاټی تیراه..... ۱۳۱۵۱ء۱۹۷۲

**الجواب**: که ګرانه نه وی نو جامې به وینځی او که ګرانه وی مثلاً دمونځ ختمولو نه مخکښې ئی جامې بیا پلیتیږی نو وینځل ئی ضروری نه دی(۴) (شامی ص۲۸۲جلد۱) وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین:(قوله وطهر هما محمد آخرا ای فی آخر امره حین دخل الری مع الخلیفة ورأی بلوی الناس من امتلاء الطرق والخانات بها وقاس المشائخ علی قوله هذا طین بخاریٰ. (قوله وبه قال مالک) فیه انه یقول ماکل لحمه فبوله ورجیعه طاهر فقط فلا یقول بطهارة روث الحمار.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲۳۵ جلد ۱ باب الانجاس)

﴿۲﴾ قال العلامه الحصکفی: وعفا الشارع عن قدر درهم وان کره تحریما فیجب...... ونجاسة خفیفة ...... وعفی دون ربع جمیع بدن وثوب الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۳۱، ۲۳۵ جلد ۱ باب الانجاس)

﴿۳﴾ قال العلامه الحصکفی: وخمر ...... وخرء کل طیر لا یذرق فی الهواء کبط اهلی ودجاج. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۲۳۴جلد ۱ باب الانجاس)

﴿۴﴾ قال العلامه الحصکفی: وان سال علی ثوبه فوق الدرهم جازله ان لا یغسله ان کان لوغسله تنجس قبل الفراغ منها ای الصلاة والایتنجس قبل فراغه فلا یجوزترک غسله هو المختار للفتویٰ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۲۴ جلد ۱ مطلب فی احکام المعذور)

## که په خټه کښې اوبه یا خاوره پلیته وی نو د مفتیٰ به قول مطابق خټه به پاکه وی

**سوال:** دقاضی خان په صفحه ۱۳ کښې دی.

**التراب الطاهر اذا جعل طينا بالماء النجس او على العكس الصحيح ان الطين نجس ايما كان نجسا**(نورالكشور) اوپهٔ بنایه جلداول ص۲۵۷ نورالکشور کې دی: ان الماء والتراب اذااختلطا وصار طيناً **واحد هما نجس فقيل العبرة فيه للماء وقيل للتراب وقيل للغالب وقيل ايهما كان طاهراً فالمطين طاهر وبه قال الاكثر وقيل ان كان نجسين فالطين طاهر لانه صار شيأ آخر كالخمر الخ،**

په دې دواړو کښې راجح قول کوم یو دې طهارت طین که نجاست طین (خټه) صحیح جواب سره د حوالونه اولیکئ اوددواړو جهانو اجر حاصل کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولوی محمدیوسف وانډه سیمولکی مروت.... ۱۹۷۰ء

**الجواب:** دامخلتف فیه مسئله ده قاضی خان او ابوالليث سمرقندی، شارح المنية او صاحب المحيط خودیته ترجیح ورکړې ده چه په دې دواړو څیزونو کښې کوم یو هم ناپاک وی نو ټول به پلیت وی (۱) اوالدرالمختار والا داخبره غوره کړې ده چه کله دواړه پلیت نه وی نو مخلوط به پاک وئ.

**وقال الشامی هذا ما عليه الاكثر فتح وهو قول محمد والفتوىٰ عليه بزازيه فليراجع الى ردالمحتار (ص ۳۳۴جلد ۱)**

نو بس هم دیته مفتیٰ به قول وئیلې شوې دې(۲) نو دیته به ترجیح ورکولې شی اګر چه په هغه بل کښې احتیاط موجود دې فقط

---

**(۱) قال العلامه ابراهيم الحلبی: الماء والتراب اذا اختلطا وكان احدهما نجساً فالطين الحاصل منها نجس لان اختلاط النجس بالطاهر ينجسه هذا هو الصحيح كما ذكره قاضی خان وهو اختيار الفقيه ابی الليث وكذا روی عن ابی يوسف ذكره فی الخلاصه.**

**(غنية المستملی ص ۱۸۶ فصل فی الأسار)**

**(۲) قال العلامه الحصكفی: رطوبة الفرج طاهرة خلافالهما العبرة للطاهر منْ تراب او ماء اختلطا به يفتیٰ، قال ابن عابدين هذا ماعليه الاكثر فتح وهو قول محمد والفتوىٰ عليه بزازيه.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۲۵۷ جلد ۱ قبيل كتاب الصلاة)**

## چه د خاورو تیل په جامو اولګي نودمونځ کولو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه آیا دخاورو تیل پاک دی؟ که داپه جامو اولګی نو دغه حالت کښې دمونځ کولو څه حکم دې؟
بینوا توجروا

المستفتی: محمدعبدالرحیم عزیرموضع مولې پورکبیروالا ملتان..۱۹۷۹ء۱۹\۳\۱

**الجواب:** بغیردڅه اختلاف نه بالکل پاک دی لیکن بوئی دار دی نو جماعت ته داسې جامو کښې تلل اومونځ کول مکروه دی ﴿۱﴾ (کبیری ص ۶۶۳) وهوالموفق

## که په مرغئ یا ماشوم باندې ګندګې وی اوپه مونځ ګذار باندې کینې نو مونځ نه فاسد یږی

**سوال:** په یو کتاب کښې ئی د(مراقی الفلاح) په سند سره لیکلې دی چه دمونځ ګذار په غیږ یا په شا باندې ماشوم یا مرغي کینی چه په هغه باندې دفساد په مقدار نجاست لګیدلې وی نو مونځ ئی کیږی آیا داصحیح دی؟
بینوا توجروا

المستفتی: محمدرفیق شاه اسماعیل شهید روډ راوالپنډی....۱۹۷۹ء۱۱\۲\۱۱

**الجواب:** داجزئیه صحیح ده په فتاوی کښې لیکلې شوې ده ﴿۱﴾ تائید کښې ئی حدیث هم موجود دې ﴿۳﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین الشامی (قوله واکل نحوثوم ویمنع منه) ای کبصل ونحوه مما له رائحة کریهة للحدیث الصحیح فی النهی عن قربان آکل الثوم والبصل المسجد الخ.
(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۴۸۹ جلد ۱ مطلب فی الغرس فی المسجد)
وقال العلامه ابراهیم الحلبی: الاول فیما تصان عنه المساجد یجب ان تصان عن ادخال الرائحة الکریهة لقوله علیه السلام من اکل الثوم والبصل والکراث فلا یقربن مسجدنا فان الملائکة تتاذی مما یتاذی منه بنو آدم متفق علیه .(غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص ۶۲ ۵فصل فی احکام المسجد)
﴿۲﴾ قال العلامه الشرنبلالی: وجلوس صغیر یستمسک فی حجر المصلی وطیر متنجس علی رأسه لا یبطل الصلاة اذالم تنفصل منه نجاسة. (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ص۱۱۳ باب شروط الصلاة وارکانها) (وهکذافی الهندیه ص۶۳ جلد۱ قبیل فصل استقبال القبلة)
﴿۳﴾ عن ابی قتاده الانصاری ان رسول الله ﷺ کان......(بقیه حاشیه په بل مخ)

## د جناح کیپ د څرمنی مسئله

**سوال:** جناح کیپ یا قراقلی چه دکومې څرمنی نه جوړیږی دهغې بهترینه څرمن دهغې ګډې د بچې نه جوړیږی چه دمور په خیټه کښې وی اودویم قسم څرمن دذبح کولو نه پس حاصلیږی آیادا عمل صحیح دې چه صرف دخپل شوق دپاره موراو بچې ذبح کړی شی نو داظلم نه دې؟ او که داسې کس امامت کوی نو دهغه اقتداء به صحیح وی؟ دغه شان ددې نسل کشئ دجواز او نه جواز حیثیت څه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: معاویه رسول خان کیمل پور روډ پاکستان کراچی...۱۴۰۱۱۷۱۴ھ

**الجواب:** خبر شه چه دمردار ځناور څرمن داوچیدلو نه پس پاکیږی ﴿۱﴾ (حدیث وفقه) اوګډه دبچی سره ذبح کول ممنوع شرعی نه دی نو داسی کار کول دتقوٰی نه خلاف نه دی البته دزړه دسختې باعث ضرور دی چه دا امامت ته ضرر نه رسوی. وهوالموفق

## د جنب خوله پلیته نه ده

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو جنب سړې استنجاء

---

(بقیه حاشیه) یصلی وهو حامل امامة بنت زینب بنت رسول اللهﷺ ولابی العاص ابن ربیعة بن عبد شمس فاذاسجد وضعها واذا قام حملها. (صحیح البخاری ص ۷۴ جلد ۱ باب اذا حمل جاریة صغیرة علی عنقه فی الصلوٰة کتاب الصلوٰة)

﴿۱﴾ عن ابن عباس رضی الله عنه قال قال رسول اللهﷺ ایما اهاب دبغ فقد طهر، (الجامع الترمذی ص ۳۰۳ جلد ۱ باب ماجاء فِی جلود المیتة اذا دبغت)

وقال العلامه ابراهیم الحلبی: وکل اهاب دبغ فقد طهر...... جازت الصلوٰة معه ملبوساً او مفروشا او محمولا الا جلد الخنزیر لنجاسة عینه.

(غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص ۱۵۱ باب الانجاس)

کوی او په بدن باندې ئی څهٔ ښکاره پلیتی نه وی نو ددې سرې خوله پاکه ده.
که ناپاکه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام حبیب اکبرپوره نوشهره...۱۵\فروری ۱۹۸۹ء

**الجواب**: دجنبی خوله پلیته نه ده لهذا دې سره جامې نه پلیتېږی.
**قال فی الدرالمختار فسور آدمی مطلقاً ولو جنبا او کافراً وحکم عرق کسؤر﴿۱﴾. وهوالموفق**

## مصنوعی خاوره پاکه ده

**سوال**: علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مصنوعی خاوره دشریعت په رنړا کښې پاکه ده که ناپاکه؟ چه داپه زمکه واچولې شی نو هلته مونځ کیږی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدخورشید رسالپورگنډیری نوشهره...۱۸\ربیع الثانی ۱۳۹۷ھ

**الجواب**: مصنوعی خاوره پاکه ده لتبدل الذات ﴿۲﴾ وهوالموفق

## په وینه ګنده شوې نو ټونو سره مونځ اداکول

**سوال**: علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دیو امام په جیب کښې روپې وی چه په وینو ګنده وی او خلقو ته مونځ هم ورکوی نو امام مونځ خو اونه شو نو امام به ټولو خلقوته اطلاع ورکوی او که صرف امام به قضاء راوړی؟ بینوا توجروا

المستفتی: رحمت نبی ډاک اسماعیل خیل نوشهره یکم ذی الحجه ۱۳۸۹ھ

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۱۶۳ جلد ۱ مطلب فی السئور)

﴿۲﴾ قال العلامه ابراهیم الحلبی: واکثر المشائخ اختار واقول محمد رحمه الله وعلیه الفتوىٰ لان الشرع رتب وصف النجاسة علی تلک الحقیقة وقد زالت بالکلیة، فان الملح غیر العظم واللحم فاذا صارت الحقية ملحا ترتب علیه حکم الملح ...... وعلی قول محمد فرعوا طهارة صابون صنع من دهن نجس وعلیه یتفرع مالو وقع انسان وکلب فی قدر الصابون فصار صابونا یکون طاهراً لتبدل الحقیقة . (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص۱۸۶ فصل فی الاسار)

**الجواب**: که وینه دتلی دپلنو الی نه زیاته نه وی نو دامعاف ده (۱) او دمونځ د راګرځولو حکم په چاباندې هم نشته او که زیاته وی نو صرف په امام باندې اعاده ضروری ده که نورخلقو ته معلومه وی نو اعاده دی او کړی او که معلومه نه وی نو دامام شافعی رحمه الله په قول باندې به فتوی ورکولې شی او اعادې اعلان به ضروری نه (۲) هکذا فی الفتاوی.

## د جنابت په حالت کښې خوراک څکاک او ګرزیدل وغیره جائزدی

**سوال**: علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې جنب شو داوبو دموجودګې باوجود نه اودس کوی او نه تیمم نودهغه دپاره اوده کیدل، روټی خوړل اوبه څکل سلام اچول یا اخستل یا ګرزیدل وغیره ترکوم حد پورې جائز دی حرام دی که مکروه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فقیرمحمد معصوم سرائې نورنګ بنوں....۱۹۷۷ء۱۸\۱۰\۱

**الجواب**: دجنابت په حالت کښې اوده کیدل خوراک څښاک ګرزیدل سلام اچول

---

﴿۱﴾وفی الهندیه: (النجاسة) المغلظة وعفی منها قدر الدرهم والصحیح ان یعتبر بالوزن فی النجاسة المتجسدة وهو ان یکون وزنه قدر الدرهم الکبیر المثقال وبالمساحة فی غیرها وهو قدرعرض الکف هکذا فی التبیین والکافی واکثر الفتاویٰ .( والمراد بعرض الکف عرض مقعد الکف وهو داخل مفاصل الاصابع.)
(فتاویٰ عالمگیریه ص۴۵ جلد ۱ الفصل الثانی فی الاعیان النجسة)

﴿۲﴾ قال الحصکفی کما یلزم الاخبار القوم اذا امهم وهو محدث...... بالقدر الممکن...... والا لایلزمه بحر عن المعراج وصحح فی مجمع الفتاویٰ عدمه مطلقا لکونه عن خطا معفو عنه قال ابن عابدین وصحح فی مجمع الفتاویٰ وکذا صححه الزاهدی فی القنیه والحاوی والیه اشارابویوسف ...... واما صلاتهم فانهاوان لم تصح ایضاً لکن لا یلزمهم اعادتها بهم ولا یلزمه اخبارهم لعدم تعمده فافهم.
مع ردالمحتار ص۴۳۸جلد ۱ باب الامامة)

دسلام جواب ورکول تهول جائزدی.

لان النبیﷺ انکر علی من امتنع عن المصافحة ولم ینکر علی المشی وغیره کما لا یخفیٰ علی من راجع الی کتب الاحادیث ﴿۱﴾ واما علم ردالسلام قبل التیمم والوضوء فمحمول علی الدوام ﴿۲﴾. وهوالموفق

## غنمو وغیره ته د خنزیر لاړې لګیدل

**سوال:** ځمونږ په علاقه ډیر خنزیران دی چه اکثر فصلونه تباه کوی نو کوم غنم یا فصل وغیره چه خنزیر خراب کړی نو آیا دهغې خوړل جائزدی؟

بینوا توجروا

المستفتی: حافظ جهانداد خطیب جامع مسجد اټک ۱۲\۱۲رمضان۱۴۰۵ھ

---

﴿۱﴾ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال لقینی رسول اللهﷺ وانا جنب فاخذ بیدی فمشیت معه حتی قعد فانسللت فاتیت الرجل فاغتسلت ثم جئت وهو قاعد فقال این کنت یااباهریرة فقلت له فقال سبحان الله ان المؤمن لا ینجس، وعلی هامش المشکواة وفی شرح السنة فیه جواز مصافحة الجنب ومخالطته وهو قول عامة العلماء واتفقوا علی طهارة عرق الجنب والحائض،و فیه دلیل علی جواز تاخیر الاغتسال للجنب وان یسعیٰ فی حوائجه ،مرقاة.
(مشکواة المصابیح ص ۴۹جلد ۱ باب مخالطة الجنب وما یباح له الفصل الاول)

﴿۲﴾وفی منهاج السنن: قوله وهو یبول فلم یرد علیه فوراً بل رد علیه بعد الطهارة بدلیل روایات اخری، اعلم انهم صرحوا علی انه لا یسلم علی من یبول او یتغوط او یصلی او یتلوا اویذکر الله تعالیٰ اویؤذن او یقیم او یدرس او یاکل وغیر ذلک فمن سلم علیهم فلم یستحق الرد واما رده ﷺ علی هذا المسلم فمحمول علی الاستحباب او تطیب القلب واما السلام علی من یستنجی من البول بالحجر اوالمدر قائماًاو قاعداً فلم یثبت فیه من الفقهاء شئ والراجح هو الجواز اذا کان غیر مکشوف العورة، لان النبیﷺ ندب الی السلام علی الاهل بلا استثناء الحائضة والنفساء ولم یقل احد من الفقهاء بکراهة السلام علی الحائضة اوا لنفساء وکذا علی من به داء سلس البول.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۲۱۸ جلد ۱ باب کراهیة ردالسلام غیر متوضئ)فرتن

**الجواب**: د دغه ځیزونو خوراک جائزدې لیکن د څه سره چه د خنزیر لاړې لګیدلې وی د هغې خوراک جائزنه دې خو صرف د لاړو لګیدلو شک حرامونکې نه دې ﴿۲﴾ فقط

## په ډرائی کلینر مشین کښې وینځلو سره جامې نه پاکیږی

**سوال**: علمائ دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په ډرائی کلینرمشین کښې په مختلفو پوډرو اومائع ځیزونو سره جامې صفاکوی نوآیا دې طریقې سره جامې د ګندګې نه صفا کیږی حال داچه صفا کیدو د پاره درې ځلې اوبو سره وینځل اومړل هم ضروری دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: معین الدین ناصرشور سوات.... ۱۹۷۷ء۱۸\۱۲\۱۲

**الجواب**: په ډرائی کلینر مشین کښې ناپاکې جامې نه پاکیږی البته د خیرونه صفا کیږی.

**لان السائع الذی یغسل به الثوب فیه لیس بجار لا حقیقة ولا حکماً فیتنجس المائع عند القاء الثوب النجس فکیف یطهر الثوب فافهم (ماخوذ از ردالمحتار)﴿۳﴾. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾ قال العلامه الحصکفی: وسؤر خنزیر و کلب وسباع بهائم ومنه الهرة البریة وشارب خمر فور شربها ولوشاربه طویلا لا یستوعبه اللسان فنجس.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۱۶۳ جلد ۱ مطلب فی السئور)**

**﴿۲﴾قال العلامه ابن عابدین ولم یحکم بنجاسته للشک.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۱۶۴ جلد ۱ مطلب فی السئور)**

**﴿۳﴾ قال العلامه ابن عابدین: (قوله وحکم سائر المائعات الخ)فکل ما لا یفسد الماء لا یفسد غیر الماء وهو الاصح محیط وتحفة والاشبه بالفقه بدائع اه بحر وفیه من موضع آخر وسائر المائعات کالماء فی القلة والکثرة یعنی کل مقدار لو کان ماء تنجس فاذا کان غیره ینجس، ومثله فی الفتح. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۱۳۶ جلد ۱ مطلب حکم سائر المائعات کالماء فی الاصح).**

**وقال العلامه ابن نجیم: (قوله یطهر البدن والثوب بالماء وبمائع مزیل کالخل وماء الورد) هذا بالاجماع ارادبه الماء المطلق...... واراد بطهارة البدن ......(بقیه حاشیه په بل مخ)**

## د شرابی د خولې حکم

**سوال**: څمونږ ځائې کښې یومولوی صاحب دشرابی باره کښې اووئیل چه دکافر او جنبی خوله پاکه ده اود شرابی خوله پلیته ده دغه شان دهغه دبدن اجزاء هم پلیت دی هم دې وجې نه دشرابی دپاره صفاحکم دې چه شرابی دی مونځ نه کوی ځکه چه د شرابی مونځ نه قبلیږی نو براه مهربانی ددې مسئلې حکم څه دې؟
بینوا توجروا

المستفتی: فضل اکبرجلبئ صوابی.....۱۹۷۹ء۱۲\۱۲\۲۰

**الجواب**: د شرابی خوله نجس (پلیت) کیدل او اودس ماتونکې کیدل مرجوح قول دې اود شرابی دپاره دمونځ نه کولو حکم غلط دې (فلیراجع الی ردالمحتار ص۶۴۰ جلد۵) (۱) فقط

---

**(بقیه حاشیه)طهارته من الخبث لا من الحدث ...... قیاسا علی ازالتها بالماء بناء علی ان الطهارة بالماء معلولة بعلة کونه قالعا لتلک النجاسة والمائع قالع فهو محصل ذلک المقصود فتحصل به الطهارة.**

**(البحر الرائق ص ۲۲۱ جلد۱ باب الانجاس)**

**(۱) قال العلامه الحصکفی: عرق مدمن الخمر خارج نجس...... وکل خارج نجس ینقض الوضوء فینتج ان عرق مدمن الخمر ینقض الوضوء لکنه محتاج لاثبات الصغریٰ...... قلت قال شیخنا الرملی کیف یعول علیه وهو مع غرابته لا یشهد له روایة ولا درایة اما الاولیٰ فظاهر اذ لم یرو عن احد ممن یعتمد علیه واما الثانیة فلعدم تسلیم المقدمة الاولیٰ ویشهد لبطلانها مسئلة الجدی اذا غذی بلبن الخنزیر فقد عللوا حل اکله بصیرورته مستهلکا لا یبقی له اثر فکذلک نقول فی عرق مدمن الخمر ویکفینا فی ضعفه غرابته . وقال ابن عابدین: قال الرملی ایضا فی حاشیة المنح وتقدم فی کتاب الاشربة عن المحقق ابن وهبان انه لا تعویل ولا التفات الی کل ماقاله صاحب القنیة مخالف للقواعد ما لم یعضده نقل من غیره ولم ینقل عن احد من علمائنا المتقدمین والمتأخرین ان عرق مدمن الخمر ناقض للوضوء. (الدر المختار مع ردالمحتار ص۵۱۶ جلد۵ مسائل شتیٰ قبیل کتاب الفرائض)**

## د دباغت نه پس د کومو کومو ځناورو
## څرمنې پاکيږي او د کومونه پاکيږي

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی (۱) چه آیا دسپی څرمن ددباعت نه پس داستعمال قابل ده یعنې په غاړه کښې اچولو سره به مونځ کیږی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سمیع الرحمن مراد آباد ګړهی کپوره مردان....۲۳\شوال ۱۴۰۱ھ

**الجواب**: دسپی هډوکی او اوچه څرمن ددباعت نه پس پاکه ده اودمونځ نه مانع نه ده (۱) وهوالموفق (۲) مار منږک اوخنزیر هغه ځناور دی چه ددباعت نه پس ئی هم څرمنی نه پاکیږی.

**اما لعدم الاحتمال ،اولوجه آخر فليراجع الى ردالمحتار ﴿۲﴾ (ص ۱۲۲ جلد۱). وهوالموفق**

## د جنابت په حالت کښې نوکونه
## وینته وغیره اخستل مکروه تنزیهی دی

**سوال**: علمائی دین دې مسئلې باره څه فرمائی چه دجنابت په حالت کښې نوکونه پریکول وینسته کټ کول وغیره مکروه تحریمی دی که مکروه تنزیهی دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق ډی: ۵۵۲ راوالپنډی

---

﴿۱﴾ قال العلامه الحصكفي: ليس الكلب بنجس العين عند الامام وعليه الفتوىٰ وان رجح بعضهم النجاسة كما بسطه ابن الشحنة فيباع ويؤجر ويضمن ويتخذ جلده مصلى ودلوا الخ. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ۱۵۳ جلد ۱ مطلب في احكام الدباغة)

﴿۲﴾ قال العلامه الحصكفي: ومالا يحتملها فلا وعليه فلا يطهر جلد حية صغيرة...... وفارة...... خلا جلد خنزير فلا يطهر وقدم لان المقام للاهانة الخ.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ۱۴۹ جلد ۱ مطلب في احكام الدباغة)

**الجواب:** عالمګيرى داكراهيت دقيد نه بغير ذكر كړى دى ﴿۱﴾ ليكن په دې كښې څه امر نهى او وعيد نه دې راغلې لهذا دا كراهت تنزيهى معلوميږى﴿۲﴾ وهو الموفق

## په صحرا او آبادئ دواړو كښې د متيازو په وخت قبلې ته مخ او شا كول نه دى پكار

**سوال:** علمائى دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه د تشو يا ډكو متيازو دپاره خو قبلې ته مخامخ كيناستل ناجائزدى ليكن كه يو سړې صرف تشې متيازې كوى او داسى كينى چه قبلې ته يې شا راځى نو داسى كول به جائز وى؟ بعضى خلق وائى چه شرقاً غرباً كيناستل ناجائز دى برابره خبره ده چه قبله مخې ته وى كه شاته وى اوبعضى خلق داشرط لګوى كه دبيت الخلاء دروازه بنده وى نو جائز دى صحيح مسئله اوليكئ ډير مهربانى به وى والسلام

المُستفتى: خليل الله تهائى لينډ..... ۱۲۰پريل ۱۹۷۵ء

**الجواب:** په دې مسئله كښې ځمونږ مذهب ډير احتياط والا دې ځمونږ په نزد به په صحرا او آبادئ دواړو كښې تشو متيازو ته يا ډكو متيازو ته به مخ نه كوى او نه به شاه كوى.

**لحديث ما رواه ابو داؤد فى اول السنن ﴿۳﴾ فليراجع والمسئلة طويلة الذيل والسلام عليكم ورحمة الله وبركاته. وهو الموفق**

﴿۱﴾وفى الهنديه : حلق الشعر حالة الجنابة مكروه وكذا قص الاظافير كذا فى الغرائب. (فتاوىٰ هنديه ص۳۵۸ جلد۵ الباب التاسع عشر فى الختان والخصاء الخ كتاب الكراهيه)

﴿۲﴾ وفى الهنديه: والاصل الفاصل بينهما ان ينظر الى الاصل فان كان الاصل فى حقه الىات الحرمة وانما سقطت الحرمة لعارض ينظر الى العارض ان كان مما تعم به البلوىٰ وكانت الضرورة قائمة فى حق العامة فهى كراهة تنزيه، وان لم تبلغ الضرورة هذا المبلغ فهى كراهة تحريم فصار الى الاصل وعلى العكس ان كان الاصل الاباحة ينظر الى العارض فان غلب على الظن وجود المحرم فالكراهة للتحريم والا فالكراهة للتزيه. (فتاوىٰ عالمګيريه ص۳۰۸ جلد۵ كتاب الكراهيه)

﴿۳﴾ عن عبد الرحمن بن يزيد عن سلمان الفارسى: قال...... (بقيه حاشيه په راروان مخ)

## د متیازو د څاڅکو پریوتلونه د عذاب قبر ثبوت

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د متیازو څاڅکی غورځیدلو سره دعذاب قبر ثبوت شته که نه؟ دا د کوم حدیث نه ثابت دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد....۱۲\اپریل ۱۹۷۴ء

**الجواب:** آؤ ثابت دې (رواه ابوداود) (۱) وهوالموفق

## د هندو دوبی دلاس وینځلې شوو جاموحکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئله باره کښې څۀ فرمائی که په هندو دهوبی باندې جامې اووینځلې شی نوآیا هغه پاکیږی حال داچه هغه دهندوانو او مسلمانانو جامې یو ځائی وینځی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عزیزالحق جده سعودیه....۱۹۸۵ء\۱۰\۱۱\۳۱

**الجواب:** دهندو نجاست اعتقادی دې (۲) هغه دجامو دپاکولو اهلیت

---

(بقیه حاشیه) قیل له لقد علمکم نبیکم کل شیئ حتی الخراءة قال اجل لقد نهانا ﷺ ان نستقبل القبلة بغائط اوبول وان لا نستنجی بالیمین وان لا یستنجی احدنا باقل من ثلثة احجار او یستنجی برجیع او عظیم وعن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ انما انا لکم بمنزلة الوالد اعلمکم فاذا اتی احدکم الغائط فلا یستقبل القبلة ولا یستدبرها الخ.
(سنن ابی داؤد ص ۳ جلد ۱ باب کراهیة استقبال القبلة عند الحاجة)

﴿۱﴾ عن ابن عباس قال مر النبی ﷺ علی قبرین فقال انهما یعذبان وما یعذبان فی کبیر اما هذا فکان لا یستنزه من البول واما هذا فکان یمشی بالنمیمة ثم دعا بعسیب رطب فشقه باثنین ثم غرس علی هذا واحد وعلی هذا واحد وقال لعله یخفف عنهما مالم ییبسا قال هناد یستتر مکان یستنزه. (سنن ابی داؤد ص ۴ جلد ۱ کتاب الطهارة باب الاستبراء من البول)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: فسؤر آدمی مطلقا ولو جنبا او کافر...... طاهر، قال ابن عابدین: (قوله او کافر) لانه علیه الصلاة والسلام انزل بعض......(بقیه حاشیه په راروان مخ)

لری (۱) وهوالموفق

## د کنو په جوس کښې منږک غورځیدل او ګوړه ترینه جوړولو سره د منږک حقیقت نه بدلیږی

**سوال:** ستاسو څه رائی ده چه یو منږک دګنو په جوس (اوبو شربت) کښې اوغورځیږی اومړشی اوددغې شربت نه توره ګوړه هم جوړه شی نودا ګوړه به پاکه وی که نه؟ بعضې کسان وائی چه ددې خوراک جائزدې اوهغوې دلیل نیسی چه خر کله دمالګې په کان کښې اوغورځیږی او مالګه شی نو هغه پاکوی، ویقیسون هذه المسئلة بمسئلة الاستحالة فی الدهن حین صارت صابوناً هل هذا استدلالهم وقیاسهم صحیح ام لا؟ بینوا رأیکم و توجروا

المستفتی: پیرغلام ډیره اسماعیل خان

**الجواب:** په دې صورت کښې منږک نه فناشوې دې اونه پکښې څه انقلاب راغلې دې لهذا داګوړه به ناپاکه او حرامه وی (ونظیره الماء النجس اذا انجمد) وهوالموفق

## د کنو په شربت کښې منږک غورځیدلو سره ګوړه پلیتیږی

**سوال:** دګنو په شربت کښې منږک اوغورځیدلو دتلاش کولو باوجود ملاؤ نه

---

(بقیه حاشیه) المشرکین فی المسجد علی ما فی الصحیحین فالمراد بقوله تعالیٰ انما المشرکون نجس النجاسة فی اعتقادهم.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۶۳ ا جلد ا مطلب فی السؤر باب المیاه)

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین: (قوله ولو شک الخ) فی التاتر خانیه من شک فی انائه او ثوبه او بدنه اصابته نجاسة او لا فهو طاهر مالم یستیقن و کذا الآبار والحیاض والحباب الموضوعة فی الطرقات ویستقی منها الصغار والکبار والمسلمون والکفار و کذا مایتخذه اهل الشرک اوالجهلة من المسلمین کالسمن والخبز والاطعمة والثیاب.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۱۱۱ جلد ۱ قبیل مطلب ابحاث الغسل)

شو چه ګوړه پخه شو او په اتره کښې راواچوالې شوه نو منږک په ګوړه کښې ښکاره شو اوس به ددې ګوړې سره څه کیږی داپاکه ده که ناپاکه؟

بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عبدالرؤف کورغه سینئ.....یکم صفرالمظفر ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** داګوړه ناپاکه ده په څاروو به خوړولې شی.

نظیره مافی الهدایه قیل لا تحمل الخمر الیها اما اذا قیدت الی الخمر فلا بأس به کما فی الکلب والمیتة ص ۴۹۹ ﴿۱﴾ وفی البحر ص ۱۵۲ جلد ۱ اختیار الاکل علی المواشی ﴿۲﴾ فلیراجع . وهوالموفق

## په ویلې شوې غوړو کښې د منږک د غورځیدلو حکم

**سوال:** علمائی دین دې مسئله باره کښې څه فرمائی چه کله په نرمو غوړو کښې منږک اوغورځیږی او مړ شی اګر چه دصحیح مسلم شریف دروایت نه نجاست معلومیږی اوبعضې فقهاؤچه د پاکولو دپاره کومه طریقه ښودلې ده دهغې وضاحت اوکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محمد شریف سورج ګنج بازارکوئټه...۱۹۸۵ء۱۲۱\۲۴

**الجواب:** په کومو نرمو غوړو کښې چه منږک مړشی هغه دپاکولو قابل نه دې البته د خوراک څکاک نه علاوه نور استعمال ئی منع نه دې.

کمافی الخلاصه ص ۴۱ جلد ۱ وفی المائع اذا وقعت الفارة فیه

---

﴿۱﴾ قال العلامه مرغینانی: وکذا لایسقیها الدواب وقیل لا تحمل الخمر الیها اما اذا قیدت الی الخمر فلا بأس به کمافی الکلب والمیتة وعلی هامشها فلا تحمل المیتة الی الکلب ولوقیدالکلب الی المیتة یجوز. (هدایه ص ۴۹۶ جلد ۴ کتاب الاشربة)

﴿۲﴾ قال ابن نجیم: ذکر الاسبیجابی ان ماعجن به قال بعضهم یلقی الی الکلاب وقال بعضهم یعلف المواشی...... واختاره الاول فی البدائع وجزم به بصیغة قال مشائخنا یطعم للکلاب...... ولاباس برش الماء النجس فی الطریق ولایسقی للبهائم وفی خزانة الفتاویٰ لاباس بان یسقی الماء النجس للبقر والابل والغنم. (البحر الرائق ص ۱۲۵ جلد ۱ باب الانجاس)

ینتفع به سوی الاکلة کالاستصباح ودبغ الجلد﴿۱﴾ لاکن فی البزازیه (هامش هندیه ص۱۹ جلد۴) مایشیر الی تطهره ایضاً ﴿۲﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾(خلاصة الفتاویٰ ص۴۱ جلد۱ فصلی فی غسل الثوب والدهن ونحوه)

﴿۲﴾قال ابن البزاز الکردری: ان الدهن النجس یصب علیها الماء فیطفوالدهن فیرفع ثلاث مرات فیطهر وکذا العسل والدبس یموت فیه فارة یطبخ الماء ثلاثا حتی یعود فی کل مرة الیٰ ماکان علیه فی الاول لکن یخرج من حیز الانتفاع.

(فتاویٰ بزازیه علی هامش الهندیه ص۱۹ جلد۴ الفصل السادس فی ازالة الحقیقة)

# الباب الثامن فی الاستنجاء

**د هوا په وتلو سره استنجاء نه بلکه صرف اودس (چار اندام) واجب کیږی**

**سوال:** علمائی دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دهوا وتلو په صورت کښې مخصوص ځائی نه وینځلې کیږی اونور اندامونه وینځلې کیږی په دې شرط چه اندامی مخصوص ګنده نه وی نوداولې داسې دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: جهان بخت خان ملاکنډ ایجنسی....۱۹۷۸ء\۱۱\۲۷

**الجواب:** صرف هوا نه بلکه په متیازو کښې هم دا اعتراض کیدې شی اود جماع متعلق هم دټول بدن وینځلو په باره کښې داسوال پیداکیږی د داسې سوالونو پیژندګلو دپاره درس نظامی وئیل ضروری دی (۱) فقط

(۱) امام شاه ولی الله الدهلوی رحمه الله سنت داواجب ګرځولې دی چه کله شرعی حکم په صحیح روایت سره ثابت شی نو په هغې باندې عمل کول به په دې وجه نشی روستو کولې چه ددې حکم مصلحت اوحکمت معلوم نه دې ځکه چه دډیرو خلقو عقلونه داحکاماتو دمصلحتونو معلومولونه قاصره دی اوبله داچه درسول الله صلی الله علیه وسلم ذات زمونږ دعقلونو نه زیات قابل اعتماد دې نوددې وجې دشرعی احکاماتو د پټو رازونو اوحمکتونو علم داهلیت والؤ نه علاوه دنورو خلقو نه پټ ساتلې شوې دی اوددې دپاره هغه شرطونه کیخودې شوې دی کوم چه دقران کریم دتفسیر دپاره دی په دیکښې صرف په رائی سره غوراو فکر کول چه سندئی دسنتو او آثارونه ملاؤ نشی حرام ګرځولې شوې دی.

(ارمغان شاه ولی الله ص۶حسن قبح کاشرعی یاعقلی هونا)

وقال الشاه اشرف علی تهانوی په دې کښې هیڅ شک نشته چه د احکام شرعیه اوفرعیه د ثبوت مدارنصوص شرعیه دی چه دهغې نه پس ئی په قبلولو کښې دځه مصلحت اوحکمت معلومولو انتظارکول یقینی طورسره دحق سبحانه وتعالی نه بغاوت دې لکه څنګه چه د دنیاوی حکومتونو دقانونو وجوهات او اسباب که چاته معلوم نه وی اوهغه ئې ددې نه معلومیدلو

(باقی حاشیه په راروان مخ)

## متیازو لګیدو د پاکولو طریقه

**سوال:** بخدمت حضرت جناب مفتی صاحب دارالعلوم حقانیه اکوړه ختټک ځمونږ خلق په دې باندې اختلاف کوي چه په کوم سړي باندې د متیازو ګندګی اولګی نو هغه نه صفا کیږي نو مهرباني اوکړئ چه داسې کس به کله صفا کیږي او په کوم څیز باندې به صفائی راځی شرعی مسئله راته اوښایئ الله دی درته ډیر ثوابونه درکړي؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...... ۲۲\شوال ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** درې ځلې وینځلو سره بدن او جامې صفا کیږي ﴿۱﴾فقط

## د متیازو کولو نه پس داستنجاء حکم

**سوال:** که یو سړې په اودس کښې وي او متیازې ورته ورشي اود متیازو کولو نه پس په لوټې سره اودس اوچ کړي اوصرف چاراندام اوکړي او په اوبو سره استنجاء اونه کړي نو آیا دهغه مونځ کیږي؟ یا استنجا هم ضروري ده؟ وضاحت اوکړئ ډیره شکریه به وي؟ بینوا توجروا

المستفتی: رسول خان لیب ټیکنیشن کمبائنډ ملټري هسپتال...۱۹۲۹ء۱۷\۳۱

﴿باقی حاشیه﴾ سبب باندې نه منې یا دا عذر اوکړي چه دوجې معلومیدلو نه بغیر ئی څنګه اومنم نو آیا یو عاقل سړی ته دده په باغی کیدلو کښې څه شک شبه شته؟ نو آیا دشرعی احکاماتو مالک ددې دنیوی بادشاهانو نه هم کم شو؟ غرض داچه په دې کښې څه شک پاتې نه شو چه دشرعی او فرعی احکاماتو دثبوت دارومدار شرعی نصوص دی لیکن دغه شان په دیکښې هم څۀ شبه نشته چه دې سره سره به په دې احکاماتو کښې داسې نورهم ډیر رازونه او مصلحتونه وي خود دې احکاماتو دثبوت مداربه په هغې باندې نه وي.(بوادرالنوادر ص ۱۰۵ غریبه درشرائط نافعیت تحقیق مصالح واحکام)

**﴿۱﴾ قال العلامه حصکفی: یجوز رفع نجاسة حقیقة عن محلها...... بماء ولو مستعملا به یفتیٰ وبکل مائع طاهر...... ثلاثا. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۲۶ جلد۱ باب الإنجاس)**

**وفی الهندیه یجوز تطهیر النجاسة بالماء وبکل مائع طاهر یمکن ازالتها به کالخل وماء الورد ونحوه مما اذا عصر انعصر کذافی الهدایه.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ص ۴۱ جلد۱ الباب السابع فی النجاسة واحکامها)**

**الجواب:** که د متیازو د سوری نه علاوه د غټې روپئ اندازې ته ګندګی رسیدلې وی نوبیا استنجاء سنت ده او که ډیره وی نوبیا فرض ده. والغسل بالماء بعده ای الحجرسنة ویجب ان جاوزالمخرج نجس مانع (الدرالمختار مختصراً) او اودس بهرحال صحیح دې لیکن په دې اودس سره به مونځ هله کیږی چه کله استنجاء فرض نه وی.(۱) فقط

## د سړی په شان زنانه هم لوټه استعمالولې شی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ښځې لره په لوټه باندې استنجاء کول منع دی اود متیازو نه پس ورله په اوبو باندې استنجاء کول سنت دی لیکن که د سفر وغیره په وجه باندې داسې اوشی چه د متیازو نه پس د استنجاء دپاره اوبه ملاؤ نشی اومونځ هم کول وی نوآیا په داسې وخت کښې زنانه لره په لوټه استنجاء کول جائزدی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق نشترآباد راوالپنډی

**الجواب:** د سړی او زنانه په استنجاء کښې هیڅ فرق نشته، یعنی څنګه چه سړې صرف لوټه استعمالولې شی اویا د لوټې نه پس اوبه استعمالولې شی نو بالکل د زنانه د پاره هم دغه شان حکم دې، خو بیشکه په زنانه باندې استبراء نشته، یعنی په اوبو سره استنجاء کولو کښې دومره ایساریدل چه څاڅکی بند شی دا په زنانه باندې هسې بې فائدې کاردې. دا ټولې مسئلې په ردالمحتار ص۳۱۲ جلد۱ فصل الاستنجاء کښې لیکلی دی.(۲) فقط

---

﴿۱﴾ قال العلامه حصکفی: والغسل بالماء...... بعده ای الحجر...... سنة مطلقا به یفتیٰ ویجب ای یفرض غسله ان جاور المخرج نجس مانع ویعتبر القدرالمانع لصلاة فیما وراء موضع الاستنجاء لان ماعلی المخرج ساقط شرعا وان کثر ولهذا لا تکره الصلاة معه. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص۲۲۸ جلد ا فصل الاستنجاء)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدین: وفیها ان المرءة کالرجل الا فی الاستبراء فانه لا استبراء علیها بل کما فرغت تصبر ساعة لطیفة ثم تستنجی. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲۵۳ جلد ا مطلب فی الفرق بین الاستبراء والاستنقاء......)

## د استنجاء په وخت کښې کشفِ عورت او د خرچ شوو اوبو اندازه

**سوال:** (۱) زمونږ په جمات کښې جنوباً شمالاً د استنجاء ځایونه جوړشوی دی یو سړې ددې باوجود همیشه مشرق طرف ته مخ کوی اومغرب ته شا کوی او استنجاء کوی او پرده هم نه کوی ټول مونځ ګذار دده په دې حرکت باندې خفه دی ځکه چه زمونږ په نزد بربنډ کیدل ډیر معیوب شمارلې کیږی؟

(۲) دا سړې په استنجاء باندې دوه لوټې اوبه په غټه خوله استعمالوی نوپه استنجاء باندې څومره اوبه خرچ کول پکاردی؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام حسین سرواله کیملپور.....۱۱\صفر۱۳۹۲ھ

**الجواب:** (۱) کوم سړې چه دخلقو په مخکښې عورت ښکاره کوی او استنجاء کوی نودا فاسق اوفاجردې.

**فی الدرالمختار بلاکشف عورة عنه احدامامعه فیترکه کما مر فلو کشف له صار فاسقا ﴿۱﴾(هامش ردالمحتار ص ۳۱۲، ۳۱۳جلد ۱)**

(۲) د استنجاء په صورت کښې د اوبو څه خاص اندازه مقرره نه ده،دا د نجاست په لږوالی او ډیروالی پورې ده، د ګندګئ په لرې کیدو کښې چه دې ترڅو غالب ګمان نه وی نو د اوبو استعمالول جائزدی لیکن د ګذارې نه کار اخستل پکاردی.﴿ ۲﴾ (هامش ردالمحتار ص۳۱۲، ۳۱۳ جلد۱) وهوالموفق

## د حشفې ګیرچاپیره سوروته اوبه نه رسیدلو صورت کښې د اودس حکم

**سوال:** د سُنتئ په وخت کښې کله کله د حشفې نه ګیرچاپیره سُوری پاتې شی چه په غسل کښې ورته اوبه رسول ډیرګران وی د کوشش سره هم ورته اوبه دننه نه ورځی نود اودس اوغسل به څه حکم وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل احد بټ خیله ملاکنډ......۲۷\شعبان ۱۴۰۲ھ

**﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۲۲۸ جلد ۱ فصل فی الاستنجاء)**

**﴿۲﴾ قال العلامه الحصکفی والغسل بالماء الی ان یقع فی قلبه انه طهر مالم یکن موسوساً فیقدر بثلاث کمامر. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص۲۲۸جلد ۱ فصل فی الاستنجاء)**

**الجواب:** په کوم سوری کښې چه اوبه ور دننه کول ګران وی نو هلته د غوږونو د سورو په شان د بهرنه اوبه اچول هم کافی کیږی. (۱) وهوالموفق

## ټشو پیپر د استنجاء د پاره استعمالول جائز دی

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه نن صباکوم خاص قسم کاغذ سره استنجاء کولې شی نوددې د استعمال جواز شته که نه؟

**الجواب:** دا خاص قسم کاغذ نه د ليکلو قابليت لری او د پريکولو نه پس ئې څه قيمت هم نه وی لهذا په دې سره استنجاء کول منع نه دی. (۲)

**اما الاول فظاهر واما الثانی فلما فی ردالمحتار ص۳۱۵ جلد ۱ وهل اذاكان متقوما ثم قطع منه قطعة لا قيمة لها بعد القطع يكره الاستنجاء بها ام لا الظاهر الثانی (۳) وهو الموفق**

---

(۱) قال العلامه ابن عابدين: (قوله ولقب انضم) قال فی شرح المنيه وان انضم الثقب بعد نزع القرط وصار بحال ان امر عليه الماء يدخله وان غفل لافلا بد من امراره ولا يتكلف لغير الامرار من ادخال عود ونحوه فان الحرج مدفوع.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۱۱۳ جلد ۱ ابحاث الغسل)

(۲) وفی منهاج السنن شرح جامع السنن: قلت فالكاغذ المعد لذلک فی عصرنا لا يكره الاستنجاء به لانه لا قيمة له بعد القطع وكذا ليس هذا للكتابة فافهم، وفی شرح النقاية وقد ضبط بعض العلماء ضبطا جيدا فقالوا يجوز الاستنجاء بكل جامد طاهر منق قلاع للاثر غير موذليس بذی حرمة ولا شرف ولايتعلق به حق الغير.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ص۹۱ جلد ۱ باب كراهية ما يستنجی به)

(۳) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲۵۰ جلد ۱ فصل فی الاستنجاء)

## صرف په اوبوسره استنجاء کول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څمونږ دجمات امام صاحب وئیلې دی چه که څوک تشې متیازې یا ډکې متیازې اوکړی اوهغه ځې په اوبوسره اووینځی او روستو استنجاء اونه کړی صرف اودس اوکړی نومونځ ئې کیږی آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدشفیع سورجال جماعت هفتم سی هائی سکول راوالپنډی...۱۹۷۹ء۱۳۱۷۱

**الجواب**: د لوټو نه پس اوبه استعمالول بهتردی چه کله په اوبوسره استنجاء فرض شوې نه وی اود جمات دامام صاحب دا قول هم صحیح دې.﴿ ۱ ﴾

وهوالموفق

---

**﴿۱﴾وفی الهندیه: والاستنجاء بالماء افضل ان امکنه ذلک من غیر کشف العورة وان احتاج الیٰ کشف العورة یستنجی بالحجر ولا یستنجی بالماء کذا فی فتاویٰ قاضی خان والافضل ان یجمع بینهما کذافی التبیین قیل هو سنة فی زماننا وقیل علی الاطلاق وهو الصحیح وعلیه الفتویٰ کذافی السراج الوهاج.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ص۴۸ جلد۱ الفصل الثالث فی الاستنجاء)**

...

بسم الله الرحمن الرحيم

إِنَّنِيٓ أَنَا ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعۡبُدۡنِي وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ لِذِكۡرِيٓ ﴿١٤﴾

....(سورة طهٰ)....

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه دریم جلد

# کتاب الصلوة



.............

# كتاب الصلوٰة

## (اهميت او فضيلتونه)

### د مونځ نه منکر او په دې پورې ټوقې کونکې زنديق اوكافردې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه يو سړې مونځ نه کوی او وائی (۱) په قرآن کښې د مونځ د کولو حکم نه دې بلکه په زړه کښې قائمول دی.(۲) په حدیث کښې دی نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه زما زړه غواړی چه دهغه خلقو کورونه اوسوزوم کوم چه اذان واوری اومونځ کولو ته جمات ته نه راځی.داحديث چه ئې واوريدلو ،وائی چه دا دروغ دی که داسې وی نو بيا اور ولې نه لګی؟(۳) د ډيرې باره کښې وائی چه په دې ويښتو کښې هيڅ نشته دا ډيرسپک کاردې.(۴) اووائی چه دجمات امام صاحب په مونځ کښې صرف دوه سورتونه لولی، اوپه هغې کښې دخلقو مرګ خيرې دی او دلته چه څومره مرګونه شوی دی دهغې سبب هم دا دوه سورتونه دی.(۵) اخترونه اوجنازې دې امام پسې کوی اوپنځه وخت مونځ نه کوی.چه کله ورته اووئيلې شی چه دا ولې؟نووائی چه زه ده پسې ولاړيم خو څما نيت د يو بل امام پسې وی،ددې سړی په باره کښې د شريعت څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولانا غلام محمد ملتان شهر...۱۵\نومبر۱۹۷۴ء

**الجواب:** د رشتياؤ اوثابتيدو په شرط سره دا سړې زنديق اوكافردې(۱) دده

---

(۱) قال العلامه الحصكفي: ويكفر جاحد لثبوتها بدليل قطعى وتاركها عمداً مجانة اى تكاسلا فاسق. (الدرالمختار على هامش المحتار ص ۲۵۹ جلد ۱ مطلب فيما يصير الكافر به مسلماً كتاب الصلاة)

سره هرمسلمان لره بائیکاټ کول ضروری دی.﴿۱﴾ وهوالموفق

**په قصد سره مونځ پرېخودونکې کافرنه دې البته فاسق اوفاجردې**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم سړې قصداً مونځ پرېږدی نوهغه کافرکیږی که نه؟ په قصد سره د مونځ پرېخودونکی څۀ حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ادریس پرائمری سکول نیوکیمپ پشاور

**الجواب:** قصداً مونځ پرېخودونکې دحنابله ؤ په نزد کافر او مرتددې لیکن د جمهورعلماؤ په نزد فاسق اوفاجردې.﴿۲﴾ ځکه چه د قرآن اوحدیث نه د رنړا ورځ پشان واضحه ده چه اعمال دایمان نه خارج دی. کما فصل فی موضعه لهذا

---

﴿۱﴾قال الحافظ ابن الحجر العسقلانی: (قوله باب مایجوز من الهجران لمن عصیٰ)اراد بهذه الترجمة بیان الهجران الجائز لان عموم النهی مخصوص بمن لم یکن لهجره سبب مشروع. فتبین هنا السبب المسوغ للهجر وهو لمن صدرت منه معصیة فیسوغ لمن اطلع علیها منه هجره علیها لیکف عنها...... قال المهلب غرض البخاری فی هذا الباب ان یبین صفة الهجران الجائز، وانه یتنوع بقدر الجرم، فمن کان من اهل العصیان یستحق الهجران بترک المکالمة کما فی قصة کعب وصاحبیه...... وقال الطبرانی قصة کعب بن مالک اصل فی هجران اهل المعاصی وقد استشکل کون هجران الفاسق او المبتدع مسروعاً ولا یشرع هجران الکافر وهو اشد جرما منهما لکونهما من اهل التوحید فی الجملة ...... واجاب غیره بان الهجران علی مرتبتین الهجران بالقلب والهجران باللسان، فهجران الکافر بالقلب وبترک التود دوالتعاون والتناصر لا سیما اذا کان حربیا وانما لم یشرع هجرانه بالکلام لعدم ارتداعه بذلک عن کفره بخلاف العاصی المسلم فانه ینزجر بذلک غالباالخ.

(فتح الباری شرح صحیح البخاری ص۵۹۷ جلد۱۳ باب ما یجوز من الهجران لمن عصیٰ)

﴿۲﴾قال العلائی: ویکفر جاحدها لثبوتها بدلیل قطعی وتارکها عمداً مجانة ای تکاسلا فاسق یحبس حتی یصلی لانه یحبس لحق العبد فحق الحق احق وقیل یضرب حتی یسیل منه الدم وعند الشافعی یقتل بصلاة واحدة حدا وقیل کفراً، قال ابن عابدین وکذا عند مالک واحمد وفی روایة عن احمد وهی المختارة عند جمهور اصحابه انه یقتل کفرا وبسط ذلک فی الحلیة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۲۵۹ جلد۱ مطلب فیما یصیر الکافر به مسلما من الافعال)

مونځ پرېخودونکي به کافرنه وي.او د ,,ولاتکونوا من المشر کين،،﴿۱﴾ چه عبارت، اشارت، دلالت،اقتضاء او اعتبارسره د يونه هم نه معلوميږي چه ,,تارکُ الصلوة،، مشرک يا کافردي،اوکه اومنلي شي نودا آيت به په استحلال يا سختوالی باندې محمول وي چه د نورو آيتونو سره متعارض نشی﴿۲﴾.

وهوالموفق

## په مونځ کښې سستئ باندې دځپل طاقت مطابق امربالمعروف او نهي عن المنكر د ذمې فارغيدلو د پاره كافي دي

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) ,,قوا انفسكم واهليكم نارا،، آيت په بناء باندې د کورخلقو ته نصيحت کوم ليکن د نصيحت او زورنې سره بيا هم په مونځ کښې سستی کوی نوآيا ددې نه پس به په ماڅه ګناه وي؟ (۲) د کورخلق اګرچه مونځونه کوی ليکن د وختونو پابندی نه کوی نو آيا د وختونو پابندی ضروری نه ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: على اكبر پتن كلان آزاد كشمير

---

﴿۱﴾ قال الله تعالىٰ: منيبين اليه واتقوه واقيموا الصلوٰة ولا تكونوا من المشركين.
(سورة الروم پاره: ۲۱ ركوع:۷ آيت: ۳۱)

﴿۲﴾ قال العلامه على قارى : (ولا نكفر) اى لا ننسب الى الكفر (مسلما بذنب من الذنوب) اى بارتكاب معصية (وان كانت كبيرة) اى كما يكفر الخوارج مرتكب الكبيرة (اذا لم يستحلها) اى لكن اذا لم يكن يعتقد حلها لان من استحل معصية قد ثبتت حرمتها بدليل قطعى فهو كافر (ولا نزيل عنه اسم الايمان) اى ولا نسقط عن المسلم بسبب ارتكاب كبيرة وصف الايمان، كما يقوله المعتزلة حيث ذهبوا الى ان مرتكب الكبيرة يخرج عن الايمان ولا يدخل فى الكفر...... ومن المعلوم ان السب دون القتل نعم لو استحل السب او القتل فهو كافر لا محالة وعلى تقدير ثبوت الحديث فيجب ان يؤول كما اول حديث "من ترك صلاة متعمداً فقد كفر" والحاصل ان الفسق والعصيان لايزيل الايمان فيصير كافر اولاواسطة .
(شرح فقه الاكبر للقارى ص ۷۱، ۷۲ الكبيرة لا تخرج المومن عن الايمان)

**الجواب**:(۱) لایکلف الله نفساً الا وسعها(۱) په تا باندې د نصیحت او کوشش کولو نه پس گناه نشته.(۲) ضروری ده.(۲) .وهوالموفق

## د اسلام او دين نه بالکل د بې خبره سړی دمونځ حکم

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې خپل ځان ته مسلمان وائی لیکن دانه پیژنی چه پیغمبر علیه السلام چاته وائی؟ دحضور ﷺ نوم څه دې؟ او قرآن مجید آسمانی کتاب دې او په حضور ﷺ باندې نازل شوې دې، چه کله یو سړې ددې ټولو احکاماتو نه بې خبره وی نوآیا دهغه دپاره مونځ گول صحیح دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...... ۱۹۷۴ء\۱\۳

**الجواب**:دداسې برائې نام مسلمانانو سره محنت او مشقت ډیرزیات ضروری دې.(۳) وهوالموفق

---

﴿۱﴾قال العلامه جلال الدین السیوطی: ولما نزلت الایة التی قبلهاشکا المؤمنون من الوسوسة وشق علیهم المحاسبة بها فنزل لا یکلف الله نفسا الا وسعها ای ماتسعه قدرتها لها ماکسبت من الخیر ای ثوابه وعلیها ما اکتسبت من الشر ای وزره ولا یؤاخذ احد بذنب احد ولا بمالم یکسبه مما وسوست به نفسه.

(تفسیر جلالین ص ۴۵ جلد ۱ سورة البقرة پاره:۳ رکوع:۸ آیت:۲۸۶)

﴿۲﴾ قال العلامه سید احمد الطحطاوی: (والاوقات اسباب ظاهراً تسیراً) اعلم ان الاوقات لها جهات مختلفة بالحیثیات فمن حیث ان الصلاة لاتجوز قبلها وانما تجب بها اسباب ومن حیث ان الاداء لا یصح بعدها لاشتراط الوقت له وانما تکون قضاء الخ.

(الطحطاوی علی المراقی الفلاح ص ۹۳ کتاب الصلاة)

﴿۳﴾ قال العلامة الشامی: من فرائض الاسلام تعلم ما یحتاج الیه العبد فی اقامة دینه واخلاص عمله لله تعالیٰ ومعاشرة عباده وفرض علی کل مکلف ومکلفة بعد تعلمه علم الدین والهدایة تعلم علم الوضوء والغسل والصلاة والصوم الخ.

(ردالمحتار مقدمه ص ۳۱ جلد ۱ قبیل مطلب فی فرض الکفایة والعین)

وقال الملا علی قاری: (قوله بلغوا عنی ولو آیة) ای انقلوا الی...... (بقیه حاشیه په راروان مخ)

## د ملازمت د وجې نه بالکل مونځ یا د جماعت مونځ پریخودل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) دلته سعودی عرب کښې څمونږ ډیوټی اکثر داسې وی مثلاً کرین چلول، ګاډې چلول وغیره چه افسر پکښې راسره وی، دغه وخت کښې اذان اوشی لیکن څمونږ افسر څمونږ مونځ نه تللو باندې خفه وی، نو آیا مونږ ملازمت اوکړو یا جمات ته لاړ شو، یا مونځ روستو اوکړو؟ (۲) که جماعت کیږی او مونږ په داسې کار کښې لګیا یو، نو که کار پریږدو نو کار او دریږی او افسر خفه کیږی او سزا راکولو ته تیاریږی خو که مونږ نه د جماعت ملاویدلو اُمید هم نه وی، نو په دې حالاتو کښې مونږ د ضروری کار په وخت کښې د جماعت مونځ پریخودلې شو که نه؟ (۳) که مونږ مونځ ته لاړ شو او نوکری مو په خطره کښې وی او د نوکرئ نه لاس وینځلې کیږی نو داسې حالت کښې جماعت پریخودلې شو یا مونځ قضا کړو؟ بینوا توجروا

المستفتی: اجمل خان خلیل ریاض سعودیه عربیه.... ۱۲\۱۱ نومبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** که د ګاډی د ضائع کیدلو او هلاک کیدلو خطره یا غالب ګمان وی او د افسرانو د طرف نه د سزا ورکولو یا ظلم کولو خطره وی نو په تاسو باندې جمات ته تلل ضروری نه دی، تاسو خپل ځائې کښې ځان له یا په جمع سره مونځ کوئ، البته مونځ مه قضا کوئ. (ماخوذ از مراقی الفلاح) (۲) ددې مسئلې جواب هم د مخکنی پشان دې البته که داقامت په وخت کښې اجازت ملاویږی نو غنیمت دې. (۳) که په ملازمت کښې په مونځ کولو پابندی وی او مونځ قضا کول عادت جوړ شوې وی نو د بل ملازمت کوشش ضروری دې. ﴿۱﴾ وهو الموفق

(بقیه حاشیه) الناس و الیدوهم ما امکنکم او ما استطعتم مما سمعتموه منی وما اخذتموه عنی من قول او فعل او تقریر بواسطة او بغیر واسطة (ولو آیة) ای ولو کان المبلغ اية. (مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ص ۲۶۴ جلد ۱ کتاب العلم)

﴿۱﴾ قال العلامه الطحطاوی: (وخوف ظالم) ای علی نفسه او ماله او خوف ضیاع ماله او خوف ذهاب قافله لو اشتغل بالصلاة جماعة.

(حاشیة الطحطاوی ص ۲۹۷ فصل یسقط حضور الجماعة)

# باب المواقيت وما يتصل بها

## د گهړو د مقررشوی وخت نه مخکښې یا روستو مونځ کول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جماتونوکښې د گهړو په لحاظ سره چه کوم وخت مقررکولې شی ددې نه مخکښې یا روستو د قوم په اجازت سره مونځ کول یا جماعت کول جائز دی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......

**الجواب**: سره د اجازت نه اوبغیر د اجارب نه دواړو صورتونوکښې جائز دی البته د مقرر وختونو خیال ساتل پکاردی چه دچا نه جمع اونه شی. جمات والا چه کوم وخت مقررکړی دا دانتظامی امورونه دی.(۱) وهوالموفق

## د غرونو په مینځ کښې اوسیدلو والا د طلوع او غروب مسئله

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ځمونږ علاقه د غرونو په مینځ کښې واقع ده. دنمر راختل شل منټه دپاسه پنځه بجې (۵:۲۰) باندې د غرنه کیږی او غروب (نمر پریوتل) شپږ منټه دپاسه اووه بجې (۷:۰۶) باندې کیږی نو مونږ دسحر اذان څه وخت کوو؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا لطیف الرحمن کوټکې تختی خیل شکرالله... ۱۴۱۰هـ

---

(۱) قال العلامه الحصكفی: (ويجلس بينهما) بقدر ما يحضر الملازمون مراعياً لوقت الندب (الافی المغرب).

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۲۸۷ جلد ۱ باب الاذان)

**الجواب:** تاسو دطلوع او غروب وختونه د ریډیو نه معلوم کړئ او نمر راختلو نه پنځه پاوه (یوه گهنټه اوپنځلس منټه) مخکښې دسحر اذان کوئ اود غروب په وخت باندې د ماښام اذان کوئ.(۱) وهو الموفق

## غروب الشمس اود خیط الاسود او الابیض صحیح مطلب

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) یو سړې وائی چه د ماښام وخت د نمر پریوتلو سره سمدستی شروع کیږی دهغې علامت او نښه داده چه مشرقی طرف ته د آسمان په غاړه باندې تیاره راختل شروع شی. دویم کس وائی چه په مغربی طرف کښې داسمان په غاړه باندې سوروالې راتلل د نمر پریوتلو نښه ده.نو صحیح صورت څۀ دې؟ (۲) د پیشمنی د ختمیدلو وخت اودسحر دشروع کیدلو دوخت علامت یعنی,,خیط الاسود،،او,,خیط الابیض،، په باره کښې یوسړې وائی چه,,خیط الاسود والابیض،، هم په مشرقی طرف کښې داسمان په غاړه د توروالی نه لاندې سپین والی ته وائی.او داهم مشرق طرف ته راخیژی.بل کس وائی چه خیط الابیض په ټول آسمان باندې وی ددې هم صحیح صورت څۀ دې؟ او کوم طرف ته کتل پکاردی؟

(۳) دماښام وخت شروع کیدلو اوماسخوتن وخت شروع کیدلو مینځ کښې د گهړئ په حساب سره څومره وقفه کول پکاردی؟ بینوا توجروا

المستفتی:محمد ایوب خان محله شیام گنج مردان... ۱۰\صفر ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** (۱)(۲) دفقهې اوحدیث په رڼاکښې د اولنی سړی خبره صحیح ده.(۱)

---

﴿۱﴾قال الحصکفی: وقت صلاة (الفجر)...... (من) اول (طلوع الفجر الثانی) وهو البیاض المنتشر المستطیر لا المستطیل (الیٰ) قبیل (طلوع ذکاء) بالضم غیر منصرف اسم الشمس.(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲٦۳ جلد ۱ کتاب الصلاة)

﴿۲﴾قال ابن العلامه ابن الهمام: (اول المغرب حین تغرب الشمس وآخره حین یغیب الشفق وماروٰه) من امامة جبریل علیه السلام فی الیومین فی وقت واحد (کان للتحرز عن الکراهة) لان تاخیر المغرب الی آخر الوقت مکروه (ثم) اختلف العلماء فی (الشفق) فقال ابو حنیفة رحمه الله (هو البیاض فی الافق بعد الحمرة) (فتح القدیر ص ۱۹۵ جلد ۱ باب المواقیت)

(۳) کم نه کم یوه نیمه گهنټه وقفه کول پکاردی. (۱) وهوالموفق

## د صبح صادق او غروب الشمس د وخت متعین کولو طریقه

**سوال:** علمائ دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه مونږ اوریدلي دي چه د نمر راختلو نه واخله تر پریوتلو پورې وخت چه په اتوحصو تقسیم کړې شی نو اتمه حصه چه څومره راغله نو دا د صبح صادق او غروب شمس وخت وي یعنې دومره وخت د صبح صادق او طلوع الشمس او د غروب شمس او غیوب البیاض په مېنځ کښې وي. آیا دا صحیح دې؟ او دویمه خبره داده چه د طلوع فجر په مینځ کښې یوه نیمه گینټه وخت وي نو آیا دا تعین صحیح ده؟

بینوا توجروا

المستفتي: نا معلوم.........

**الجواب:** خبرشئ چې په اتمه حصه باندې دارو مدار صحیح نه دې په روایاتو کښې په دې باندې د فقهاؤ اعتماد په نظر نه دې راغلې دغه شان دا خبره دې هم واضحه وی چه دصبح صادق وخت د طلوع الشمس نه یوه نیمه گینټه مخکښې نه شروع کیږی زیات نه زیات پنځه پاؤه مخکښې شروع کیږی. (۳) کما هو یعلم من المشاهدة والریاضی. وهوالموفق

---

(۱) قال ابن الهمام: واول وقتها اذا طلع الفجر الثانی ای الفجر الصادق وهو البیاض المعترض فی الافق واحترز به عن الفجر الکاذب وهو البیاض الذی یبدو فی السماء ویعقبه ظلام وتسمیة العرب ذنب السرحان. (فتح القدیر ص ۱۹۲ جلد ۱ باب المواقیت)

(۲) قلت وصرح المشائخ بتفاوت الوقت بین طلوع الفجر الصادق وطلوع الشمس وکذا بین غروب الشمس وغیوب البیاض بتفاوت المواسم والبلاد ، والمشاهد فی دیارنا قدر ساعة وربع ساعة. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۰ جلد ۲ باب مواقیت الصلاة)

(۳) قلت وصرح المشائخ بتفاوت الوقت بین طلوع الفجر الصادق وطلوع الشمس وکذا بین غروب الشمس وغیوب البیاض بتفاوت المواسم والبلاد، والمشاهد فی دیارنا قدرساعة وربع ساعة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۰ جلد ۲ باب مواقیت الصلاة)

## د مابنام او ماسخوتن په مینځ کښې وقفه

سوال: د مابنام او ماسخوتن په مینځ کښې څومره وقفه پکار دا؟ بینوا توجروا
المستفتي: مولوی رسول شاه اله دادخیل... ١٢\ربیع الاول ١٤٠٢

الجواب: د غروب نه پنځه پاوه (١:١٥) پس بیاض غائب کیږي او غالبًا زمونږ په علاقو کښې هم دا فرق دې. د ریاضئ په اصولو باندې١٥×٤=٦٠ منټ فرق کیدل پکار دي (١) وهو الموفق

## د ماخوستن د مانځه وخت کله شروع کیږي؟

سوال: علماء دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د مابنام نه څومره وقفې کولو نه پس د ماسخوتن وخت شروع کیږی؟ بینوا توجروا
المستفتي: فضل رحیم زړه میانه نوشهره

الجواب: د غروب نه یوه گینټه پس د ماسخوتن وخت شروع کیږی(٢) احتیاطاً یوه نیمه گینټه انتظار پکار دې د فن ماهرینو د فجر صادق او طلوع شمس په مینځ کښې پنځلس درجې اندازه او د غروب

---

﴿١﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله: (و) وقت (المغرب منه الىٰ) غروب (الشفق وهو الحمرة) عندهما وبه قالت الثلاثة واليه رجع الامام كما فى شروح المجمع وغيرها فكان هو المذهب (و) وقت (العشاء والوتر منه الى الصبح).
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص٢٦٥ جلد ١ كتاب الصلاة)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصكفى: (و) وقت (المغرب منه الى) غروب (الشفق وهو الحمرة) عندهما وبه قالت الثلاثة واليه رجع الامام كما فى شروح المجمع وغيرها فكان هو المذهب، قال ابن عابدين رحمه الله: تحت قوله اليه رجع الامام) اى الى قولهما الذى هو رواية عنه ايضاً وصرح فى المجمع بان عليه الفتوىٰ.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص٢٦٥ جلد ١ كتاب الصلاة مطلب فى الصلاة الوسطى)

اوغیبوب بیاض په مینځ کښې هم پنځلس درجې اندازه معین کړې ده.چه د هغې نه ۴×۱۵= ۶۰ منټ جوړیږي.
واما الاحتیاط فلاجل اعتبار غروبهم ولاجل اضطراب الساعات ﴿۱﴾. فافهم،وهوالموفق

## د مونځ مستحب وختونه

**سوال:** بحضور جناب محترم شیخ الحدیث مفتي محمدفرید صاحب دارالعلوم حقانیه

**السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! بنده عارض بدیں سوال است که اقوال واختلاف مذاهب دراوقات صلوٰة خمسه کثیراست اوقات معتبره صلوٰة که دریں وقت نماز بهتراست ودریں وقت بهتر نیست تحریر کن، وایضاً تحریر کن که اذان صبح به کدام وقت صحیح است، نیز وقت از صبح صادق تا طلوع شمس چند وقت است وایضاً فاصله درمابین سنت صبح وفرض چنداست؟بینوا توجروا**

المستفتی: قاری فرمان الله متعلم حقانیه

**الجواب:** د سحر آذان د طلوع شمس نه پنځه پاوه مخکښې کول پکار دي او سنت په تیاره کول بهتر دي او فرض اسفار یعني رڼړا کښې کول بهتر دي.او مونځ د طلوع نه نیمه ګینټه مخکښې کول بهتر دي. او ما ښام د غروب نه پس کول بهتر دي یعني بغیر د تاخیر نه.او د غروب نه پنځه پاوه ۱:۱۵) روستو د ماسخو تن مونځ کول جائز دي البته د ثلث اللیل پورې تا خیر کول بهتر دي. ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

**﴿۱﴾فی منهاج السنن: قلت وصرح المشائخ بتفاوت الوقت بین طلوع الفجر الصادق وطلوع الشمس وکذا بین غروب الشمس وغیوب البیاض بتفاوت المواسم والبلاد، والمشاهد فی دیارنا قدرساعة وربع ساعة. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص۱۰ جلد۲ باب ماجاء فی مواقیت الصلاةعن النبی صلی الله علیه وسلم)**

**﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی رحمه الله: (والمستحب) للرجل (الابتداء) فی الفجر (باسفار والختم به)......( وتاخیر ظهر الصیف) بحیث یمشی فی الظل (مطلقا)...... (و) تاخیر (عصر صیفا وشتاء توسعة للنوافل (مالم یتغیرذکاء) بان لا ......(بقیه حاشیه په راروان مخ)**

## د چاشت او اشراق د مانځه وخت او د ضحوه کبرٰي او صغرٰي مطلب

**سوال:** علماء دین او مفتیان شرع لاندینو مسئلو باره کښې څه فرمائي؟

(١) د اشراق او څاښت مونځ وخت کومې پورې وی بعضې خلق وائي چه د اشراق وخت دورځې تر ځلورمې حصې پورې وی نو دا ځلورمه حصه د صبح صادق نه شروع کیږی یا د طلوع آفتاب نه؟

(٢) د ضحوة الکبرٰی او ضحوة الصغرٰی نه څه مراد دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق ایف۲۸۷ نشترآباد راوالپنډی... ۲۵\۱ شوال ۱۳۸۹ء

**الجواب:** د چاشت او اشراق مونځ د محققینو په نزد دوه ځان ځان ته مونځونه نه دی. او د جمهورو په نزد جدا جدا مونځونه دی، او ځما جواب د جمهورو په مذهب باندې دې، هغه دادې چه د نمر د صفا کیدلو نه پس ددې وخت شروع کیږی او د استواء په وخت کښې ختمیږی. (الدرالمختار) او د بعضې فقهاؤ په نزد باندې هم دا بهتر دي چه د ورځې د ځلورمې حصې نه پس اوکړې شي (شامي، کبیري) او د ورځې نه مراد ظاهري طورسره نهار عرفي دی، او باوجود د تالاش نه چرته وضاحت ملاؤ نه شوځکه چه د حدیث ترمض الفصال د وجې نه دا قول کړې شوې دې او ګرمی د دغې وخت نه شروع کیږی. (١)

---

(بقیه حاشیه) تحار العین فیها فی الاصح(و) تاخیر (عشاء الی ثلث اللیل) قیده فی الخانیة وغیرها بالشتاء اما الصیف فیندب تعجیلها ......(و) اخر (المغرب الی اشتباک النجوم) ای کثرتها. (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص ٢٦٩ تا ٢٧١ جلد ١ کتاب الصلاة)

(١) قال العلامة الحصكفی رحمه الله: فصاعد فی الضحی) علی الصحیح من بعد الطلوع الی الزوال ووقتها المختار بعد النهار، (تحت قوله ووقتها المختار) ای الذی یختار ویرجع لفعلها وهذا عزاه فی شرح المنیة الی الحاوی وقال لحدیث زید بن ارقم ان رسول اللهﷺ قال صلاة الاوابین حین ترمض الفصال رواه مسلم وترمض بفتح التاء والمیم ای بترک من شدة الحرفی اخفافها.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ٥٠٥ جلد ١ کتاب الصلاة مطلب سنه الضحیٰ)

(۲) د صبح صادق د طلوع او د نمر د غروب نیمې ته (الضحوة الکبری) وائي او ددې نه مخکښې ته ضحوة الصغری وئیلې شي، (شرح وقایه). ﴿۱﴾.
وهوالموفق

## د زوال او چاشت په باره کښې په دویم ځل تپوس

**سوال**: حضرت مقتدانا مفتي صاحب د امت برکاتهم دارالعلوم حقانیه علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي (۱) چه دصبح صادق او غروب آفتاب په مینځ کښې ضحوة کبریٰ نه واخلې دطلوع او غروب افتاب په مینځ کښې نصف النهار پورې که مونځ کول مکروه دی نو دا مکروه تحریمی دی که مکروه تنزیهي؟ دغه شان جناب لیکلي وؤ چه دچاشت وخت د استواء په وخت ختمیږي؟ ددې نه خو معلو میږي چه ددې سوال په ذکر شوې وخت کښې مونځ کول مکروه نه دي، اوحال دا چه بالکل داستواء په وخت کښې منع بلکه ناجائز دي نو آیا دا صحیح ده؟(۲) د حضرت د تحریر مطابق دا معلومه شوه چه د اشراق وخت د طلوع نه تر غروب پورې چه ورځ حساب شي نو د هغې تر څلورمې حصې پورې وی او د ورځې د څلورمې حصې ختمیدلو نه پس د چاشت وخت شروع کیږي آیا دا مفهوم صحیح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق غفرله ایف ۲۸۷ راولپنډي

**الجواب**: (۱) دې وخت کښې مو نځ کول مکروه تحریمي وی. صرف د خوارزم داامامانو په نزد او د نورو امامانو په نزد صرف د استوا په وخت کښې مو نځ کول مکروه تحریمي دي. کذا فی الدرالمختار مع

---

﴿۱﴾ قال العلامه عبید الله بن مسعود: اعلم ان النهار الشرعی من الصبح الی الغروب فالمراد بالضحوة الکبریٰ منتصفة ثم لا بد ان تکون النیة موجودة فی اکثر النهار فیشترط ان تکون قبل الضحوة الکبریٰ ...... فی مختصر القدوری الی الزوال والاول اصح. (شرح الوقایه ص ۳۰۶ جلد ۱ کتاب الصوم وهکذا فی ردالمحتار ص ۹۲ جلد ۲ کتاب الصوم)

رد المختار ص ۳٤٥ جلد ۱ .لیکن د احدیثو روایاتو نه د دویم قول ترجیح معلومیږي او اکثر فقهاؤ هم دامختار کړی ده (فلیراجع الی کتب الفقه) (۱)

(۲) د حدیث په ترمض الفضال په بنا باندې ما دې طرفته ترجیح ورکړې ځکه چه دفقهاؤ په کلام کښې د مناسب تلاش نه پس ددې تعین ملاؤ نه شو (۲) وهو الموفق

## د سحر او ماسخو تن د وختو نو بیان

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) د سحر د مونځ وختونه او لیکئ او دغه شان دا هم او فرمایئ چه د نمر ختلو پورې څومره وقفه وي؟ (۲) د ما ښام او ما سحو تن په مینځ کښې څومره وقفه ده هغې تعین او کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا رفیع الحق صاحب خطیب مسجد صاحب زادګان نوشهره کلان

**الجواب:** زمونږ دمذهب په بنا باندې د سحر وخت غالباً پنځه پاؤه (۱: ۱۵) وی

---

**﴿۱﴾ قال ابن عابدين: (قوله واستواء) ...... ان الوقت المكروه هو عند انتصاف النهار الى ان تزول الشمس ولا يخفى ان زوال الشمس انما هو عقيب انتصاب النهار بلا فصل وفى هذا القدر من الزمان لا يمكن اداء صلاة فيه فلعل المراد انه لا تجوز صلاة بحيث يقع جزء منها فى هذا الزمان اولمراد بالنهار هو النهار الشرعى وهو من اول طلوع صبح الى غروب الشمس وعلى هذا يكون نصف النهار قبل الزوال بزمان يعتد به ...... نهى عن صلاة نصف النهار حتى تزول الشمس ...... بان اعداد انتصاف النهار الشرعى وهو الضحوة الكبرىٰ الى الزوال عند ائمة خوارزم. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۲۷۳ جلد ۱ كتاب الصلاة)**

**﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله: (والمستحب) للرجل (الابتداء) فى الفجر (باسفار والختم به) هو المختار بحيث يرتل اربعين آية ثم يعيده بطهارة لوفسد وقيل يؤخر جدا لان الفساد موهوم (الالحاج بمزدلفة) .**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۲۶۹ جلد ۱ كتاب الصلاة)**

او دغه شان د ما ښام وخت هم. نو د سحر د مو نځ مناسب وخت دادې چه د نمر ختلمو نه نیمه ګینټه مخکښې ختم شي او د غروب نه ۱:۱۵ (پنځه پاوه پس) د ماسخوتن اذان اوشي. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د غیوب شفق او وختونو تعین په مشا هدې سره کول پکار دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه دلته په برطانیه کښې ډیرې مودې نه دا خبره مشهوره ده چه د شفق او صبح صادق مشاهده کول مشکل دي نو ددې وجې نه چا دې ته ډیره توجه نه ده کړې د یخنئ په موسم کښې خو څه حد پورې خبره صحیح کیږي لیکن د نورو میاشتو د پاره یقیني چه داسې نه ده. بهرحال مشاهده بالکل پریخودل او خالص د (محکمه موسمیات) نه د غروب شفق او صبح صادق د راختلو په حاصل شوو وختونو باندې اکتفا کوی.اصل کښې په انګلینډ کښې اوسیدونکې مسلمانانو په اول کښې دماسخوتن مونځ اوصبح صادق دپاره خپل ځائې کښې د خپلو رصدګاهونو نه د وختونو د تعین نقشې را غوښتلې وې،نو رصدګاهونو د دولس درجو مطابق وخت راویستلو سره رالیږلې وو.بیا په آرام آرام په ټول انګلینډ کښې دولس درجو والا ټایم باندې عمل شروع شو.بیامو د شرع مفتیانو ته رجوع او کړه نوهغوی پنځه پاوه پس دمونځ متعلق اووئیل اوس شرعي حکم څه دې؟ چه مونږ په هغې باندې عمل اوکړو؟ بینوا توجروا

المستفتی: حزب العلماء یوکے انګلینډ ....۱۹۸۷ء\۱۲\۱۵

**نوټ**: دا استفتاء په ډیرو صفحاتو باندې مشتمل وه لیکن مونږ صرف په خلاصه باندې اکتفا اوکړه.(مرتب)

**الجواب**: تاسو د کال په هره میاشت کښې یا دوه درې ځلې د شفق احمر او شفق ابیض د غائب کیدلو د وخت مشاهده اوکړې او د راتلونکې وخت دپاره ئې لائحه عمل جوړ کړې﴿۲﴾

---

﴿۱﴾ **قال العلامة الحصکفی رحمه الله: (و) وقت (المغرب منه الی) غروب (الشفق وهو الحمرة) عندهما وبه قالت الثلاثة والیه رجع الامام کما فی شروح المجمع وغیرها فکان هو المذهب (و) وقت (العشاء والوتر منه الی الصبح).**

**(الدرالمختار علی ردالمحتار ص۲۶۵ جلد ۱ کتاب الصلاة)**

﴿۲﴾ **قال العلامه ابن عابدین: وحاصله انا لا نسلم ......****(بقیه حاشیه په راروان مخ)**

محکمه موسمیات او درجات وغیره شاته اوغورځوي. ﴿۱﴾د هغوي اندازه دلته هم د مشاهده نه خلاف ده او دا خبره دې هم واضحه وي چه د حرج لرې کولو د پاره احتیاط پر یخودل خلاف شریعت اقدام نه دي. وهو الموفق

## د مابنام او ماسخوتن د مینځنئ وقفې دارومدار په مشاهدې دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي (۱) د مونځونو په بعضې نقشو کښې ئې د ماسخوتن او مابنام په مینځ کښې وقفه یوه گینټه لیکلې او دائې ورسره هم لیکلې دی چه کومو حضراتو یوه نیمه گهنټه یا ۱۲۰ منټ لیکلې هغوي د طول بلد او عرض بلدنه پوره خبرنه دی.نو هغوي تخمیناً اندازه لګولې ده تاسو خپل تحقیق بیان کړئ. (۲) د (ذی القعده) د میاشتې د مختلفو تاریخو نو د صبح صادق که مو مطالعه او کړه نو هغه هم مهرباني او کړې اولیکئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: بدرمنیر تبلیغی صاحب افغان تېل اتوستهوربټ خیله ملاکنډ ایجنسی... ۱۴ ذی قعده ۱۴۰۲ھ

---

(بقیه حاشیه) لزوم وجود السبب حقیقةً بل یکفی تقدیره کما فی ایام الدجال ویحتمل ان المراد بالتقدیر المذکور هو ماقاله الشافعیه من انه یکون وقت العشاء فی حقهم بقدر ما یغیب فیه الشفق فی اقرب البلاد الیهم...... فتعین ما قلنا فی معنی التقدیر مالم یوجد نقل صریح بخلافه واما مذهب الشافعیه فلایقضی علی مذهبنا...... قال فی امداد الفتاح قلت وکذلک یقدر لجمیع الآجال کالصوم والزکاة والحج والعده وآجال البیع والسلم والاجارة وینظر ابتداء الیوم فیقدر کل فصل من الفصول الاربعة بحسب مایکون کل یوم من الزیادة والنقص کذا فی کتب الائمة الشافعیة ونحن نقول بمثله اذاصل التقدیر مقول به اجماعاً فی الصلوٰت. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲۶۶ تا ۲۶۸ جلد ۱ مطلب فی فاقدوقت العشاء کاهل بلغار)

﴿۱﴾قال العلامه ابن عابدین: ووجه ما قلناه ان الشارع لم یعتمد الحساب بل الغاه بالکلیة بقوله نحن امة امیة لانکتب ولانحسب الشهر هکذا وهکذا وقال ابن دقیق العید الحساب لا یجوز الاعتماد علیه فی الصلاة انتهیٰ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۱۰۰ جلد۲ مطلب ماقاله السبکی من الاعتماد علی قول الحساب مردود)

**الجواب**: دریاضي په اصولو باندې دا وخت پنځلس درجې یعني ۴×۱۵-۲۰ منټه دې لیکن د غروب نه پس د مکرر مشاهدو نه ۱:۱۵ ثابت دی.او د صبح صادق وخت هم ددې مقدار نه زیات نه دې ځمونږ په علاقو کښې د ذوالقعده په اول.اول کښې صبح صادق ۴:۲۵ نه پس راوځي (۱)وهوالموفق

## په رمضان کښې د سحر مونځ په غلس کښې ادا کول

**سوال**: علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په رمضان المبارک کښې د سحر مونځ د اذان نه پنځلس منټه پس اداکول څنګه دي؟ حال دا چه فائده داده چه اکثر خلق په جماعت کښې شریک کیږي ایا دا جائز دې؟

المستفتي: حافظ محمد زبیر عثماني حضرواټک..........۲۲\رمضان ۱۴۰۲ه

**الجواب**: د حدیث او فقهي روایاتو په بناء باندې د سحرپه مونځ کښې اِسفار افضل دې الا الحاج بمزدلفة(۲)او تغلیس جائز دې لیکن افضل نه دې کما صرحوا به (۳) جواز هم په هغه صورت کښې دې چه کله اذان د طلوع شمس نه ۱:۱۵ مخکښې وي.

اوکه ۱:۳۰ یا ۱:۴۵ مخکښې اذان شوې وي نو ددې اذان نه پنځلس منټه پس د صبح صادق هم وخت هم وي. وهوالموفق

---

(۱) قلت وصرح المشائخ بتفاوت الوقت بین طلوع الفجر الصادق وطلوع الشمس وکذا بین غروب الشمس وغیوب البیاض بتفاوت المواسم والبلاد، والمشاهد فی دیارنا قدر ساعة وربع ساعة. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۰ جلد۲ باب مواقیت الصلاة)

(۲) قال الحصکفی:(والمستحب) للرجل (الابتداء) فی الفجر (باسفار والختم به) هو المختار بحیث یرتل اربعین آیة لم یعیده بطهارة لو فسد وقیل یؤخر جدالان الفساد موهوم (الالحاج بمزدلفة) . (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۴۹ جلد ۱ کتاب الصلاة)

(۳) وفی منهاج السنن: اعلم ان النبیﷺ ثبت عنه التغلیس بالفجر کما مرفی الباب السابق والاسفار به کما روی الطحطاوی عن ابی ......(بقیه حاشیه په بل مخ)

## د صبح صادق نه تر طلوع افتاب پورې په گهړئ باندې د وخت تعين

**سوال** علماء دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د صبح صادق نه نمر راختلو پورې څومره وخت جوړېږي اکابر علمائې ديو بند ۱:۳۰ بيانوي. او مفتي رشيد احمد صاحب کراچي د هغې نه اتلس منټه کم وائي. او کومه نقشه چه هغوي مونږ سرگودها والؤ لره ورکړې ده د هغې متعلق د حکم وضاحت اوکړئ؟ بينوا توجروا

المستفتی قاری عبدالحميد چنات آئل ملزملت آباد سرگودها....۱۵جولائی ۱۹۸۲ء

**الجواب**: په اصولي طريقې سره د مفتی رشيد رحمه الله اندازه صحيح ده البته څمونږ په علاقو کښې د مشاهدې په بنياد باندې ۱:۱۵ جوړيږي.(۱) وهوالموفق

---

(بقيه حاشيه)طريف وكان شاهداً مع رسول الله صلى الله عليه وسلم حصن الطائف فكان يصلى بنا صلوٰة الفجر حتى لو ان انسانا رمى نبله ابصر مواقع نبله وروى عن جابر يقول كان النبى عليه السلام يؤخر الفجر كاسمها، وروى الشيخان عن ابى برزة الاسلمى عن النبى صلى الله عليه وسلم قال كان ينفتل عن صلوٰة الفجر حين يعرف الرجل جليسه، قلت وهذاالحديث يدل على الاسفار به نهاية لا بداية وروى الشيخان عن ابن مسعود قال ما رئيت رسول الله صلى الله عليه وسلم صلى صلوٰة الا لميقاتها الاصلولين صلوٰة المغرب والعشاء بجمع وصلى الفجر يومئذٍ قبل مقياتها، وفى لفظ مسلم قبل ميقاتها بغلس، قلت افاد هذا الحديث ان المعتاد كان غير التغليس وكان عليه السلام يفعل الافضل وقد يفعل غير الافضل توسعة على الامة ولم يعلم من هذه الروايات ان ايهما افضل الاسفار او التغليس، فان قيل حديث ابن مسعود يعلم منه ان الاسفار افضل لكونه معتاداً قلنا يعارضه حديث الباب السابق فانه يدل على كون التغليس معتاداً فالظاهر ان تعامله صلى الله عليه وسلم مختلف بين الاسفار مرة وبين التغليس مرة اخرىٰ ولكن للحنفية تشريع قولى عام فى حديث الباب وليس للمخالفين تشريع قولى عام لعدم ورود غلسوا بالفجر. ومن الاصول تقديم مثل التشريع القولى العام على الفعل والوقائع الجزء ية على ان فى الاسفار تكثير الجماعة. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص١٧، ١٨ جلد ٢ باب ماجاء فى الاسفار بالفجر)

(۱) وفى منهاج السنن: قلت وصرح المشائخ بتفاوت......(بقيه حاشيه په راروان مخ)

## د ګهړئ په اعتبار سره د مونځ وختونه

**سوال:** علمائ دین دې مسئلې باره کنبې څه فرمائې چه د فجر. ظهر. عصر. مغرب. او عشاء وختونه د ګهړئ په اعتبار سره اوښايئ مثلاً د سحر وخت څومره وي او د ماښام نه څومره وخت پس د ماسخوتن وخت شروع کيږي؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالفتاح پابينئ صوابی.... ٢٤\ شعبان ١٤٠٣هـ

**الجواب:** څمونږ په علاقو کښې د سحر او ماښام پوره وخت تقريباً ١:١٥ وي(١) اود مازيګر وخت تقريباً د ورځې شپږمه حصه جوړيږي او نور وختونه معلوم او مشهور دي وهو الموفق.

---

(بقيه حاشيه) الوقت بين طلوع الفجر الصادق وطلوع الشمس وكذا بين غروب الشمس وغيوب البياض بتفاوت المواسم والبلاد، والمشاهد فى ديارنا قد رساعة وربع ساعة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص١٠ جلد٢ باب مواقيت الصلاة)

وقال العلامه ابن عابدين: ووجه ما قلناه ان الشارع لم يعتمد الحساب بل الغاه بالكلية بقوله نحن امة امية لا نكتب ولا نحسب الشهرهكذا وهكذا وقال ابن دقيق العيد الحساب لا يجوز الاعتماد عليه فى الصلوٰة انتهىٰ.

(ردالمحتار ص١٠٠ جلد٢ مطلب ما قاله السبكى من الاعتماد على قول الحساب مردود)

﴿١﴾ وفى المنهاج: قلت وصرح المشائخ بتفاوت الوقت بين طلوع الفجر الصادق وطلوع الشمس وكذا بين غروب الشمس وغيوب البياض بتفاوت المواسم والبلاد، والمشاهد فى ديارنا قد رساعة وربع ساعة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص١٠ جلد٢ باب مواقيت الصلاة)

﴿٢﴾ وفى المنهاج: قال بتعجيل العصر فى اول وقتها مالك والشافعى واحمد وقال ابوحنيفة واصحابه بتاخيرها قال العلامة الشامى ان الوقت بعد العصر اى بعد دخول العصر الى الغروب قدر سدس النهار.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص٢٦ جلد٢ باب ماجاء فى تعجيل العصر)

## د ماښام او ماسخوتن په مینځ کښې فاصله

**سوال:** علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه ځمونږ په علاقه کښې د ماسخو تن اذان د ماښام د اذان نه پنځوس منټه پس یا ۵۵ یا زیات نه زیات یو ګینټه پس کیږي عام طور سره د ماښام اذان او ماسخوتن په مینځ کښې پنځه پاؤه وقفه ساتلې کیږی دې سلسله کښې ستاسو حضراتو نه وضاحت مطلوب دې چه د ماښام او ماسخو تن په اذانونو کښې څومره فرق ساتل پکار وي؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام سرور لوند خوړ مردان.....۱۹۸۷ء۱۱۳۱۱

**الجواب:** چه کله نمر یقیني طریقې سره ډوب شي او د هغې نه پس ۱:۱۵ ګینټه تیره شي نو د ماسخوتن وخت داخل شي ځمونږ د مشاهدې او تجربې نه دا ثابته ده (۱) البته د ریاضي په حساب سره پنځلس درجې چه کل ۱۵×۴=۶۰ منټه وخت د مغرب دې دهغې نه پس د ماسخوتن وخت شروع کیږي. (۲) وهو الموفق

## د شفق ابیض د غیوب نه مخکښې د ماسخوتن مونځ کول

**سوال:** مفتیان شریعت دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه ځمونږ ځائې کښې یو جماعت کښې د جولائي میاشت کښې د ماسخو تن آذان په ۸:۱۵ بجې او مونځ ۸:۴۵ بجې کیږي د ماښام او ما سخوتن په مینځ کښې د پنځه څلویښت

---

(۱) وفی المنهاج: قلت وصرح المشائخ بتفاوت الوقت بین طلوع الفجر الصادق وطلوع الشمس وكذا بین غروب الشمس وغيوب البياض بتفاوت المواسم والبلاد، والمشاهد فی دیارنا قد رساعة وربع ساعة. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۰ جلد۲ باب ماجاء فی مواقيت الصلوة عن النبیﷺ)

(۲) قال الحصكفی: (و) وقت (المغرب منه الی) غروب (الشفق وهو الحمرة) عندهما وبه قالت الثلاثة والیه رجع الامام كما فی شروح المجمع وغيرها فكان هو المذهب (و) وقت (العشاء والوتر منه الی الصبح) (الدر المختار ص ۲۶۵ جلد ۱ كتاب الصلاة)

منتو وقفه پاتې کیږي سوال دادي چه د پنځه ځلویښت منټه تیریدلو نه پس د ماسخو تن وخت دا خلیدې شي یا نه؟ په دې سلسله کښې داحنافو مفتٰی به مسلک کوم یو دې او د ماښام او ماسخو تن د اذان په مینځ کښې څومره فاصله ضروري ده دغه شان د شفق په مصداق کښې چه د ائمه مذاهب په مینځ کښې کوم اختلاف دې د هغې نه د بچ کیدلو ډیره د احتیاط طریقه څه ده؟ او شفق ابیض د غائب کیدلو نه مخکښې د جماعت کولو څه حکم دې؟

المستفتي: حبیب الله خیر آباد نو شهره...... ۱۹۸۲ء\۸\۲

**الجواب**: دغروب او عشاء په مینځ کښې کم نه کم پنځه پاؤه فاصله ساتل پکار دي دشفق ابیض دغائب کیدو په وخت کښې اذان کول پکاردي داد محققینو رائې ده او هم دا احتِیاط دې بلکه د بعضې فقهاؤ په نزد د غیوب بیاض نه مخکښې د جمعې مونځ کولو نه د غیوب نه پس ځان له مونځ افضل دې ﴿۱﴾ **کمافی شرح الکبیر ص ۵۶۹ وفی فتاویٰ صاعد امام محلته یصلی العشاء قبل غیاب البیاض فالافضل ان یصلیها وحده بعد البیاض ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## د مثل اول نه پس د مازیګر د اذان حکم

**سوال**: علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه سعودي عرب کښې د مثل اول نه پس د مازیګر اذان کیږي او حال دا چه د احنافو قول د مثلینو نه پس دې نو که مونږ د هغوي په اقتداء کښې دغه وخت کښې مونځ اوکړو نو د هغې به څه حکم وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: منیراحمدشارع الشفاء طائف سعودیه عربیه... ۲۲ \اکتوبر\۱۹۸۳ء

**جواب** دغه امام پسې اقتداء کوئ که کیدلې شی درنه نو احتیاطاً یې اعاده او کړئ ﴿۲﴾ وهوالموفق

---

**﴿۱﴾ (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص۵۶۵ فصل فی احکام المسجد)**

**﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (وعلیه عمل الناس الیوم) وانظر هل اذالزم من تاخیره العصر الی المثلین فوت الجماعة یکون الاولیٰ التاخیر ام لا......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**

## په مشرقي جانب کښې د شفق احمر زوال معتبر نه دي

**سوال:** حامداً ومصلیاً (رساله تحقیق وقت مغرب) صنفه مولانا فقیر محمد حسن صاحب زکوزی (اول وقت المغرب غیوبة الشمس المعلومة بذهاب الحمرة المشرقیه هذا هو الاصح، وعلیه عمل اکثر الاصحاب لقول قائم اذا غابت الحمرة من هذا الجانب یعنی المشرق فقد غابت الشمس من شرق الارض وغربها، وروی الکلبی عن ابن عمر رضی الله عنه مرسلا عن النبی ﷺ، اول وقت المغرب سقوط القرص ووقت الافطار ان تقوم بخذاء القبلة وتفقد الحمرة التی ارتفع من المشرق اذا جاوز قمة الراس الی ناحیة المغرب فقط وجب الافطار وسقط القرص، وهو صافی فی ان زوال الحمرة الشرقیة علامة سقوط القرص الذی یری غیوبة الشمس ومرسل ابن عمر کالمسند، وللشیخ قول بان الغروب یتحقق باستتار القرص لقوله ﷺ لابن اسامة رضی الله عنه وقد صعد جبل قیس والناس یصلون المغرب فرای الشمس لم تغب وانما توارت الجبل بئس ما صنعت انها تصلیها اذا تریها حیث غابت او غارت وانما علیک مشرقک ومغربک ولیس علی الناس ان یعشوا، وجوابه انه لا دلالة فیها ان تحقیق الغروب قبل ذهاب الحمرة فبقی الاخبار الصحیحه الصریحة باعتبار زوالها بغیر معارض، انتهی (نقل من کتاب قواعد الاحکام تصنیف عزبن عبد السلام الشافعی المصری ولد فی سنہ ۶۰۰ھ) الحال این کتاب در خانقاه مراجیه نزد کندیا شریف بدست مولانا خان محمد صاحب سجاده نشین موجود است۔

---

(بقیه حاشیه) والظاهر الاول بل یلزم لمن اعتقد رجحان قول الامام تأمل ثم رأیت فی خر شرح المنیة ناقلا عن بعض الفتاویٰ انه لا کان امام محلته یصلی العشاء قبل غیاب شفق الابیض فالافضل ان یصلیها وحده بعد البیاض . (ردالمحتار هامش رالمختار ص ۲۶۴ جلد ۱ قبیل مطلب لوردت الشمس بعد غروبها اوقات الصلاة)

•••

بسم الله الرحمن الرحيم الخ (فی فج العميق: من تصنيف شير محمد كاكياتی فی مذهب النعمانی) ما مر به اول وقت المغرب وقت غروب الشمس اذا غربت عن الافق فی جانب المغرب مائل فعلامة وقت المغرب التی اذا زالت الحمرة من جانب المشرق وبرفع السواد انتهیٰ فی ص ١٩٩. وايضاً صرح سيد سند فی شرحه علی الجغمنی تحت قوله وفی الشرع من طلوع الفجر الثانی الیٰ غروب الشمس قوله الی غروب الشمس بمعنی مجاوزته عن الافق الغربی بحيث تظهر الظلمة فی جهة المشرق وتزول الحمرة الخ فی القغمه ص ١٣١، وايضاً قال ابو الفتح اركن بن حسام المفتی الكناری فی الفتاویٰ الحمادية نقل من مطلوب المسلمين اما تغريبه اول وقت صلوٰة المغرب اذا غربت الشمس ولم يبق الر شعاعها يعنی من جانب المشرق انتهیٰ ص ٩. وايضاً قال علاء الدين الحصكفی فی درالمختار فی درالمنتقیٰ شرح الملتقیٰ تحت قول المصنف، الصوم ترک الاکل الخ من الفجر الی الغروب الی زمان غيبوبة تمام حمرة الشمس بحيث تظهر الظلمة فی جهة المشرق انتهیٰ فی الفتحه ص ١٣٠ . بينوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......١٣/جنوری ١٩٧٥ء

**الجواب:** اعلم ان التقيد بزوال حمرة المشرق لا توافقه الروايات الحديثية ولا الفقهية كما لا يخفیٰ علی من راجع الی کتب الحديث وکتب الفقه المتداولة بين العلماء، وما اوردوا فی حديث ابن عمر لا يقبل قبل ذکر الاسناد اوالاستناد الی الکتاب الذی يروی فيه الحديث مع الاسناد، او يقال ان المراد من ظهور الظلمة فی جهة المشرق هو الظهور فی الافق واما الحمرة فلا يکون فی سائر الايام فلا تکون

حاشیةشرح الوقایة﴿۱﴾. وهوالموفق

## يو وطن کښې چه مونځ اوکړي او بل وطن ته لاړشي او وخت داخل شوې نه وي نو څه به کوي.

**سوال**: علماء دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه خپل وخت باندې مونځ اوکړي بيا روستو دجيټ طيارې په ذريعه سره وطن ته اورسيدلو چه هلته د دغه دمونځ وخت نه دې داخل شوې.آيا داسړې به دا مونځ په دويم ځل کوي؟

المستفتي: نامعلوم...... ۱۱۰محرم۱۳۹۲هـ

**الجواب**: بعضې فقهائې کرام فرمائي چه دوخت د واپسي په صورت کښې به مونځ دوباره کول ضروري وي(فى الدرالمختار فلو غربت ثم عادت هل يعود الوقت الظاهر نعم)او بعضې فقهاء فرمائي چه دې صورت کښې به په دويم ځل نه شى کولې.

**فى ردالمحتار ص ۳۳۴ جلد ۱ قلت على ان الشيخ اسماعيل رد ما بحثه فى النهر تبعاً للشافعيه بان صلوة العصر بغيبوبة الشفق تصير قضاء ورجوعها لا يعيدها اداء ...... ومافى الحديث خصوصية لعلى كما يعطيه قوله عليه السلام انه كان فى طاعتک وطاعته رسولک، وقال العلامة الشامى قلت ويلزم على الاول بطلان صوم من افطر قبل ردها وبطلان صلوة المغرب لو سلمنا عود الوقت بعودها للكل والله تعالىٰ اعلم انتهىٰ مافى ردالمحتار﴿۲﴾ قلت ظاهر حديث لايصلى صلوة مرتين يقتضى ترجيح الثانى فافهم وكذا علم اعادة النبى ﷺ عند عود الشمس . وهو الموفق**

---

**﴿۱﴾ قال العلامه عبد الحئى اللكهنوى: قوله (والمغرب منه الىٰ مغيب الشفق وهو الحمرة عندهما وبه يفتىٰ) قوله الى ان تغيب الشمس قال شيخ الاسلام التفتازانى المعتبر فى غروب الشمس سقوط قرص الشمس وهذا ظاهر فى الصحراء واما فى البنيان وقلل الجبال فبان لا يرى شئ من شعاعها على اطراف البنيان وقلل الجبال وان يقبل الظلام من المشرق. (هامش عمدة الرعايه على شرح الوقايه ص۱۴۷ جلد ۱ كتاب الصلوٰة)**

**﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۲۶۵ جلد ۱ مطلب لو ردت الشمس بعد غروبها)**

## په بلغاریه کښې د سحر د مونځ حکم

**سوال:** علماء کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه فتاوی ودودیه صفحه ۱۰۳او ۱۰۴ کښې لیکلې شوې دي چه په بلغاریه کښې کله کله د ماښام د مونځ نه پس د شفق غائب کیدلو نه مخکښې مخکښې په آسمان باندې نمر راخیژي د فتاوي مصنف جناب مولوي محمد ابراهیم مرحوم لیکلې دي که د ماسخوتن مونځ قضاء کوی او که نه لیکن چه کله نمر رااوخیژي نو د سحر مونځ هم نه کیږي نو دوي (مرحوم) د فجر متعلق نه دي لیکلې چه قضا به ئې کوي او که نه نو د فجر متعلق مسئله واضحه کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: اورنګزیب پېي پشاور...... ۱۹۷۲ء\۸\۲۴

**الجواب:** په بلغاریه کښې په بعضې موسمو نو کښې د غروب شفق سره طلوع فجر کیږي، لهذا هلته به د فجر مونځ با قائده کولې شي.

**كما فى الدرالمختار كبلغارفان فيها يطلع الفجر قبل غروب الشفق فى اربعينية الشتاء (هامش ردالمحتار ص۳۴۲ جلد ۱ ﴿۱﴾)﴿۲﴾. وهوالموفق**

## په قطب شمالي کښې د شپې و میاشتو په ورځ کښې د صوم وصلوة حکم

**سوال:** علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه کوم ځائې کښې شپږ میاشتې یوه ورځ وي نو هلته به د مونځ او روژې څه حکم وي؟

المستفتي: عبدالظاهر افغانستان متعلم جامعه اسلامیه اکوړه خټک.....۱۷\ذیقعده ۱۳۹۶

---

**﴿۱﴾(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۲٦٦ جلد ۱ كتاب الصلاة مطلب فى فاقد وقت العشاء كاهل بلغار)**

**﴿۲﴾قال العلامه ابن عابدين: وفى شرح المنهاج ويجرى ذلک فيما لو مكثت الشمس عند قوم مدة، قال فى امداد الفتاح قلت وكذلک يقدر بجميع الاجال كالصوم والزكاة والحج والعدة وآجال البيع والسلم والاجارة وينظر ابتداء اليوم فيقدر كل فصل من الفصول الاربعة بحسب ما يكون كل يوم من الزيادة والنقص.....(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)**

**الجواب**: قطب شمالي ته نلل او هلته د انسان پاتې کيدل ډير زيات ګران دي بلکه محال دي لهذا شريعت غراء د داسې ځايې د پاره د صوم اوصلوة حکم نه دې جاري کړي ځکه چه شريعت شاذاو نوادرخيزونه نه بيانوي البته په شريعت کښې دداسې نادر کارونو مثالونه خامخا وي چه علماء دضرورت په وخت ددي نه استخراج اوکړی والاصل هٰهنا حديث الدجال رواه مسلم والترمذی اقدروا له قدره.(۱) نودا سرې به په اندازې او سوچ سره طلوع او غروب وغيره معلوموي او په هغې باندې به صوم وصلوة بناکوي اوکه دا ګرانه وي نوکوم نزدې ښارکښې چې پنځه وختونه موجوديږي دهغې نه دريډيو وغيره په ذريعې سره معلومات اوکړئ اوپه هغې وختونو بنا اوکړئ.

(۲) واعلم ان القمر يتحقق فيه الطلوع والغروب والاستواء کالارض

---

(بقيه حاشيه) کذا فی کتب الائمة الشافعيه ونحن نقول بمثله اذاصل التقدير مقول به اجماعا فی الصلوات. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲٦۸ جلد۱ مطلب فی طلوع الشمس من مغربها)

﴿۱﴾ حديث الدجال قلنا يارسول الله فذلک اليوم الذی کسنة ايکفينا فيه صلاة يوم قال لا اقدروا له قدره. (مشکواة المصابيح ص۴۷۳ جلد۲ باب العلامات بين يدی الساعة وذکر الدجال)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدين: وفی شرح المنهاج ويجری ذلک فيما لو مکثت الشمس عند قوم مدة قال فی امداد الفتاح قلت وکذلک يقدر لجميع الآجال کالصوم والزکاة والحج والعدة وآجال البيع والسلم والاجارة وينظر ابتداء اليوم فيقدر کل فصل من الفصول الاربعة بحسب ما يکون کل يوم من الزيادة والنقص کذا فی کتب الائمة الشافعية ونحن نقول بمثله اذا صل التقدير مقول به اجماعاً فی الصلوات.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲٦۸ جلد۱ مطلب فی طلوع الشمس من مغربها)

وايضاً قال فی الصفحة ۲٦٦ وحاصله انا لا نسلم لزوم وجود السبب حقيقة بل يکفی تقديره کما فی ايام الدجال ويحتمل ان المراد بالتقدير المذکور هو ما قاله الشافعية من انه يکون وقت العشاء فی حقهم بقدر ما يغيب فيه الشفق فی اقرب البلاد اليهم...... فتعين ما قلنا فی معنی التقدير ما لم يوجد نقل صريح بخلافه واماملهب الشافعيه فلا يقضی علی ملهبنا.

(ردالمحتار ص۲٦٦،۲٦۷ جلد۱ مطلب فی ما قد وقت العشاء کاهل بلغار)

وکذا تفاوت اللیل والنهار فالحکم فیه کحکم الارض ﴿۱﴾. فافهم

## چاچه د مازیګر مونځ نه وي کړې نو د مونځ نه مخکښې نفل کول د اعتراض قابل نه دي دغه شان د ماسپخین سنتو او فرضو مینځ کښې نفل کول هم د اعتراض قابل خبره نه ده

**سوال:** علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه په یو جمات کښې د مازیګر مونځ شوې دې یو سړې د مونځ د پاره راغې بل کس ورته اووئیل نږ صبراوکړه څه هم اودس کوم بیابه جمع اوکړو.اوس داسړې ددویمې جمعې نه مخکښې او اولنئ جمعې نه پس نفل کولې شي که نه؟دغه شان د ماسپخین د سنتو او فرضو په مینځ کښې نفل کول جائز دي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي:عبدالرحمن لکي مروت......۳۰\۷\۱۹۷۷

**الجواب:** کوم کس چه د مازیګر مونځ نه وي کړې د هغه دپاره داصفرار نه مخکښې نفل کول صحیح دي.(کما صرح به جمیع الفقهاء) **(۲)** یوفقیه هم د ماسپخین دسنتو او فرضو په مینځ کښې

---

(۱):څنګه چه په زمکه باندې مونځ فرض دې دغه شان که څوك په سپوږمۍ. زهره. مریخ. یا نورو سیارو کښې اوسیدل شروع کړي نو هلته به هم مونځ فرض وي.البته دا خبره ده چه سجده دیته وائي چه (ان تکون علی الارض اوعلی ماقام مقام الارض)او په فضا کښې زوړند څیزونه خو داسې نه دي.نو د هغې جواب په منهاج النق کښې داسې ورکړې شوې دې.

**قلنا کما ان الماء جسم فاصل بین السفینة والارض لا یعد بفصله فکذلک الریح جسم فاصل بین الطیارة والارض لا یعتد بفصلها وکما ان السماء جسم لیس بارض ولاقام مقامها وتصح الصلوٰة فیها لقوله تعالیٰ واوصانی بالصلوٰة والزکواة ما دمت حیا، ولاسقرار الجبهة علیها فکذلک الطیارة تصح الصلاة والسجدة فیها، وکذلک یقال فی الصلوٰة فی القمر والمریخ وغیرهما،**

البته د قبلې طرف لازمي دې او هغه په قبله نما یا بلې ذریعې سره معلومیدلې شي.ګني نو د تحري حکم هم شته چه تحري او کړي او د قبلې طرف متعین کړي الله تعالی فرمائي: (اینما تولوا فثم وجه الله...الایه) (ازمرتب)

﴿۲﴾**قال العلامه مرغینانی:لاتجوز الصلوة عند طلوع الشمس ولا** ......(بقیه حاشیه په راروان مخ)

د نفل کولو نه منع نه ده کړې. کما لایخفی. وهو الموفق

## د ماسپښين مونځ په مثل ثاني کښې کول د استحباب او احتياط نه خلاف دي

**سوال:** يوه مسئله ده او په هغې کښې ئې دا ثابت کړي دي چه سخته يخنې کښې مثل ثاني د ۲-۱۵نه شروع کيږي او په هغې څه حوالې هم ليکلې شوې دي دغه شان سائل په مثل ثاني کښې مونځ کول خلاف استحباب ثابت کړې دي جناب حضرت مفتي صاحب داسې جواب ليکلې دې نو تاسو هم په خپلې رائې سره تسلي راکړې؟ بينوا توجروا

السائل: شير محمد........۱۹۷۸ء۱۰۱۱۲۱

**الجواب:** دا عبارات محوله درست دي ددې عبارتونو په بناء باندې په مثل ثاني کښې مونځ کول د استحباب او احتياط نه خلاف دي. البته ۲:۳۰بجې د مثل ثاني داخليدل د غور قابل خبره ده دغه شان د ګرمئ او يخنئ په موسمونو کښې په فئ الزوال کښې فرق وي په زياتي سوري کښې نه وي﴿۲﴾ فافهم

(بقيه حاشيه)عند قيامها فى الظهيرة ولا عند غروبها لحديث عقبة بن عامر رضى الله عنه قال ثلثة اوقات نهانا رسول الله ﷺ ان نصلى وان نقبر فيها موتا نا عند طلوع الشمس حتى ترتفع وعند زوالها حتى تزول وحين تضيف للغروب حتى تغرب.
(الهدايه ص ۸۰ جلد ۱ فصل فى الاوقات تكره فيه الصلاة)

﴿۱﴾ قال العلامه حصكفى: ولو تكلم بين السنة والفرض لا يسقطها ولكن ينقص ثوابها وقيل تسقط وكذا كل عمل ينافى التحريمة على الاصل. (الدر المختار علىٰ هامش ردالمحتار ص ۵۰۳ جلد ۱ قبيل مبحث مهم فى الكلام على الضجعة بعد سنن الفجر)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن نجيم:(والظهر من الزوال الى بلوغ الظل مثليه سوى الفىء) اى وقت الظهر اما اوله فمجمع عليه لقوله تعالىٰ اقم الصلاة لدلوك الشمس اى لزوالها وقيل لغروبها واللام للتاقيت ذكره البيضاوى واما آخره ففيه روايتان عن ابى حنيفه الاولى رواهما محمد عنه ما فى الكتاب والثانيه رواية الحسن اذا صار ظل كل شئ مثله سوى......(بقيه حاشيه په راروان مخ)

**یوکس د ماسپخین مونځ اوکړو بیائې د هوائي جهاز په ذریعې سره سفر اوکړو بل ځائې کښې دماسپخین وخت داخل شونودمونځ څه حکم دي؟**

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو سړي د ماسپخین مونځ په یو ځائې کښې او کړو او بیاد هوائي جهاز په ذریعه بل ځائې ته لاړشي او هلته د دغې مونځ وخت اذان کیدو نو او هلته دغه وخت داخل شو نو آیا په دویم ځل به مونځ اداکوي. او که نه هغه اولنې مونځ ورله کافي دې؟

المستفتي: سعید الله آزاد کوهستان...... ۱۹۸۵ء۱۰۳۱۱۹

**الجواب**: که دتیرشوی وخت اعاده د وخت تیریدلونه پس شوې وی.نودغه مونځ به دوباره کوی.

ونظیره اعادة الظهر والعصر یوم تطلع الشمس من المغرب ﴿۱﴾. وهوالموفق

(بقیه حاشیه) الفیٔ وهو قولهما والاولی قول ابی حنیفة قال فی البدائع انها المذکورة فی الاصل وهو الصحیح وفی النهایة انها ظاهر الروایة عن ابی حنیفة وفی غایة البیان وبها اخذ ابوحنیفة وهو المشهور عنه وفی المحیط والصحیح قول ابی حنیفة وفی الینا بیع وهو الصحیح عن ابی حنیفة وفی تصحیح القدوری للعلامة قاسم ان برهان الشریعة المحبوبی اختاره وعول علیه النسفی ووافقه صدر الشریعة ورجع دلیله.
(البحر الرائق ص۲۴۵ جلد ۱ کتاب الصلاة)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ورد فی حدیث مرفوع ان الشمس اذا طلعت من مغربها تسیر الی وسط السماء ثم ترجع ثم بعد ذلک تطلع من المشرق کعادتها قال الرملی الشافعی فی شرح المنهاج وبه یعلم انه یدخل وقت الظهر برجوعها لانه بمنزلة زوالها ووقت العصر اذا صار ظل کل شئ مثله والمغرب بغروبها وفی هذا الحدیث ان لیلة طلوعها من مغربها تطول بقدر ثلاث لیال لکن ذلک لا یعرف الابعد لابهامها علی الناس فحینئذٍ قیاس ما مر انه یلزم قضاء الخمس لان الزائد لیلتان فیقدران عن یوم ولیلة وواجبها الخمس.
(ردالمحتار مع الدر المختار ص۲٦۸ جلد ۱ کتاب الصلاة مطلب فی طلوع الشمس من مغربها)

**كه فرض مونځ اوجنازې يو وخت مقررشوې وي نوكوم يوبه مخكې كيږي؟**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائي چه د ماسپخين اود جنازې د مونځ د پاره نو وخت مقرر شوې وي نو د فرضونه مخكښې كول خو ظاهره خبره ده خوجنازه به د سنتونه مخكښې كيږي يا روستو؟ بينوا توجروا

المستفتي: صوبيدار حميد گل گرگره كوهاټ...... ۱۹۹۱ء۲۱\۱۹

**الجواب:** چه كله د ماسپخين اودجنازې مونځ په يو وخت شروع كيدلو والا وي يا وخت تنګ وي نود مفتٰى به قول په بنياد سره به سنت په جنازې مخكښې كولې شي. كمافى ردالمحتار باب العيدين﴿۱﴾. وهوالموفق

**د غروب او ماسخوتن داخليدلو په مينځ كښې د وقفې مقدار**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كه څه فرمائي چه دمابښام د مونځ وخت څومره وخت پس ختميږي او د ماسخوتن د مونځ څومره وخت پس شروع كيږي؟ المستفتي:غلام محمد ډوک منجو ضلع كيملپور..... ۱۹۷۲ء۲۱\۸

**الجواب:** د غروب نه ترد دخول عشاء پورې تقريباً يوه نيمه ۱:۳۰ يا پاوۀ باندې ګنټيه ۱۵ :۱ فرق وي﴿۳﴾ فقط

---

﴿۱﴾ قال العلامه حصكفى: وتقدم صلاة الجنازة على الخطبة وعلى سنة المغرب وغيرها(كسنة الظهر والجمعة والعشاء) والعيد على الكسوف لكن فى البحر قبل الاذان عن الحلبى الفتوىٰ على تاخير الجنازة عن السنة واقره المصنف كانه الحاق لها بالصلاة لكن فى آخر احكام دين الاشباه ينبغى تقديم الجنازة والكسوف حتى على الفرض مالم يضق وقته فتامل. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ۶۱۱ جلد۱ مطلب فيما يترجع تقديمه من صلاة عيد وجنازه الخ)

﴿۲﴾ وفى منهاج السنن: قلت وصرح المشائخ بتفاوت الوقت بين طلوع الفجر الصادق وطلوع الشمس وكذا بين غروب الشمس وغيوب البياض بتفاوت المواسم والبلاد والمشاهد فى ديارنا قدر ساعة وربع ساعة. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۰ جلد۲ باب ماجاء فى مواقيت الصلاة عن النبى ﷺ)

## په کینیډا کښې د ماښام او ماسخوتن د وخت تعین

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه دلته کنیډا کښې اوولس نیمې ګینټې ورځ وی. د مونځ چاټ هم درلیږم. او دلته په مئې کښې ګهړئ یوه ګینټه مخکښې کوي او په نومبر کښې ئې یوه ګینټه وروستو کوي. دانقشه د امام شافعي رحمه الله د مسلک مطابق ده نود حنفي مسلک مطابق به دماښام وخت څه وي؟ دغه شان دلته دغروب افتاب نه پس شفق احمرغائب شي لیکن شفق ابیض د شپې یوولس بجو یا دهغې نه هم ناوخته پورې وي دغه وخت انتظار ډیرمشکل وی.آیا دماښام د مونځ نه پس فوراً مونږ د ماسخوتن مونځ کولې شو؟ بینوا توجروا

المستفتي:محمد اشفاق کنیډا........۱۹۷۹ء۱۸\۵

**الجواب**: د غروب نه زیات نه زیات دوه ګینټې مخکښې د ماښام مونځ کوئ او د غروب نه ۱۵-۱ ګینټه پس د ماسخوتن مونځ کوئ (۱) وهوالموفق

---

(۱) د احنابو په معمول کښې د ماښام وخت د ورځې د پوره مقدار (یعني د طلوع نه تر غروب شمس پورې تقریباً آخرنئ حصه ده. لیکن په دې کښې دومره تا خیر کول چه زیړوالي ته اورسیږي مکروه دي.

**قال الحصکفی وآخر العصر الی اصفرار ذکاء فلو شرع فیه قبل التغیر فمده الیه لا یکره (الدرالمختار ص۳۶۸ جلد۲)**

دارنګې شفق احمر هغه دي چه د نمر غروب کیدو وخت کښې د افق کیدلو په وجه باندې وي اونمرپه افق کښې عموماً دشپې داتمې حصې نه زیات نه پاتې کیږي. بهرحال چه په وختونوکښې داسې قسمه تغیر پیداشو او دورځې شپې امتیازناممکن وي نود نزدې ملکونو په اعتبارسره په خلورویشتو(۲۴)ګینټوکښې دپنځه مونځونو اهتمام کول ضروري دي.

**قال الحصکفی: وفاقدوقتهما کبلغار فان فیها یطلع الفجر قبل غروب الشفق فی اربعینه الشتاء مکلف بهما فیقدر لهما ولا ینوی القضاء لفقد وقت الاداء. (درمختار ص ۳۶۲ جلد۱) وکما فی حدیث مسلم ص ۴۰ جلد۲ باب ذکر الدجال: قلنا یا رسول الله فذلک الیوم الذی کسنة اتکفینا فیه صلوٰة یوم قال لا اقد روا له قدره الخ.(ازمرتب)**

## د جمعې مونځ کوم وخت پورې صحیح دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه د جمعې مونځ د کوم وخت نه کوم وخت پورې صحیح دې؟

المستفتي سید اسماعیل شاه تحصیل وضلع اټک........۲۵\۱اکتوبر ۱۹۸۳

**الجواب:** د زوال نه پس دوه نیمو ګینټو نه زیات تاخیر کول بې احتیاطي ده (۱) د جمعې مونځ کښې جلتي کول بهتر دي. (۲) وهو الموفق

## د مازیګر یا سحر مونځ نه پس د نفل او قضاء مونځ کولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د مازیګر یادَ سحر دَ مونځ نه پس څوک نفل یا قضاء مونځ کولې شي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد زاهد حولدار الیکټریش میډیم رجمنټ ایل اے ډي...۱۷ محرم\۱۳۹۲ھ

**الجواب:** قضاء مونځ کول جائز دي او نفل کول منع دي (۳) وهو الموفق

---

**(۱)** قال العلامه ابن نجیم المصری رحمه الله: والجمعة کالظهر اصلاً واستحبابا فی الزمانین کذا ذکره الاسبیجابی. (البحر الرائق ص ۲۴۷ جلد۱ کتاب الصلاة فی المواقیت الصلاة)

**(۲)** وفی منهاج السنن: یدل حدیث سلمة علی التبکیر فی الجمعة وهو المختار عند العینی وقال الاسبیجابی الجمعة کالظهر اصلاً واستحبابا فی الزمانین، ویؤید التبکیر ماقاله ابن قدامة فی المغنی، کان النبی ﷺ یصلیها اذا زالت الشمس صیفا وشتاء علی میقات واحد. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۵۵ جلد۳ باب ماجاء فی وقت الجمعة)

**(۳)** وفی الهندیه: تسعة اوقات یکره فیها النوافل وما فی معناها لا الفرائض هکذا فی النهایه والکفایه فیجوز فیها قضاء الفائتة وصلاة الجنازة وسجدة التلاوة کذا فی فتاویٰ قاضی خان منها ما بعد طلوع الفجر قبل صلاة الفجر. (فتاویٰ عالمگیریه ص ۵۲ جلد ۱ الفصل الثالث فی بیان الاوقات التی لا تجوز فیها الصلاة وتکره)

## د مابنام په مونځ کښې تاخیر کول مکروه دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د مابنام مونځ په داسې تاخیرسره کول چه په ټولو جماتونو کښې مونځ اوشي جائزدی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبدالخلیل محله اباخیل نوشهره..... ۱۰\رمضان ۱۳۹۲

**الجواب:** په مابنام کښې ډیر تاخیر (د شفق په مقدار) مکروه دي (فتح القدیر)﴿۱﴾ وهوالموفق

## د قضا مونځونو د پاره مکروه وختونه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د قضا مونځونومکروه وختونه کوم کوم دي؟آیا د زوال نه علاوه بل هم څه ممنوع وخت شته؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمدازرم(اے سي) تبوک سعودیه عربیه......۱۷\۱۱\۱۴۰۰ھ

**الجواب:** صرف درې وختونه دي، غروب،طلوع او استواء په دې وختونو کښې قضاء مکروه ده.(والاصفرار فی حکم الغروب) ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د ماسپخین د وخت مونځ دارو مدار په زوال دي

**سوال:**علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه دګرمې او یخنۍ په موسمونو

---

**﴿۱﴾ قال المرغیناني (واول وقت المغرب اذا غربت الشمس وآخر وقتها ما لم یغیب الشفق) وقال ابن الهمام رحمه الله: ولذا قلنا ان تاخیر المغرب مطلقاً مکروه.**

**(هدایه مع فتح القدیر ص۱۹۵ جلد۱ باب المواقیت)**

**﴿۲﴾ قال العلامه ابن نجیم رحمه الله: لم لیس للقضاء وقت معین بل جمیع اوقات العمر وقت له الا ثلاثة وقت طلوع الشمس ووقت الزوال ووقت الغروب فانه لا تجوز الصلاة فی هذه الاوقات لما مر فی محله. (البحر الرائق ص۸۰ جلد۲ باب قضاء الفوائیت)**

کښې د ظهر وخت په شروع کیدو کښې څه فرق شته که نه؟ ما اوریدلې دي چه زوال یعنې د ظهر دمونځ وخت د دولس نیمو بجو نه شروع کیږي.نو که یو مسافر یا مقیم په گر مې یا یخنې کښې پاؤکم په یوه بجه د ظهر مونځ اوکړي نو دا به صحیح وي؟

المستفتي: عبدالحمید...... ۲۳\۴\۱۹۷۴ء

**الجواب**:دارو مدار په زوال باندې دې پاؤ کم په یو بجه باندې په هر موسم کښې زوال شوې وي. ﴿۱﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه الحصکفی: ووقت الظهر من زواله ای میل ذکاء عن کبد السماء الی بلوغ الظل مثلیه، قال ابن عابدین: من زواله الاولیٰ من زوالها عن کبد السماء ای وسطها بحسب ما یظهر لنا. (الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ص ۲۶۴ جلد ۱ قبیل مطلب لو ردت الشمس بعد غروبها)

# باب الاذان والاقامة

## د اذان په وخت کښې د خبرو کولو او وعظ کولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) د اذان نه مخکښې څه کسان په جمات کښې ناست وي په خبرو کښې مشغول ووچه اذان شروع شي نو اوس به خبرې بند کړي او د اذان د الفاظو جواب ورکول به ضروري وي او که نه خبرې دې جاري ساتي؟ (۲) که په یو مجلس کښې وعظ کیږي او اذان آواز شي نو د اذان په عزت کښې بهٔ وعظ هم بند ولې شي او که نه وعظ به جاري ساتلې کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد ایوب خان محله شیام گنج مردان.... ۱۰\صفر ۱۳۹۲هـ

**الجواب:** (۱) خبرې جاري ساتل خلاف سنت کار دې.(۱) (لان اجابة الاذان سنة)(۲) که په دې وعظ کښې ددین تعلیم شروع وي نو وعظ جاري ساتل صحیح دي(۳) (ردالمحتار باب الاذان) وهوالموفق

---

**(۱)** قال العلامه ابن عابدين: وينبغى للسامع ان لا يتكلم ولا يشتغل بشئى فى حالة الاذان والاقامة ولايرد السلام ايضا لان الكل يخل بالنظم. (ردالمحتار ص۲۹۴ جلد ۱ باب الاذان)

**(۲)** قال العلامه ابن نجيم: ومن سمع الاذان فعليه ان يجيب وان كان جنبا لان اجابة الموذن ليست باذان وفى فتاوىٰ قاضى خان اجابة الموذن فضيلة وان تركها لا يأثم واماقوله عليه الصلاة والسلام من لم يجب الاذان فلا صلاة له فمعناه الاجابة بالقدم لاباللسان فقط وفى المحيط يجب على السامع للاذان الاجابة. (البحر الرائق ص ۲۵۹ جلد ۱ باب الاذان)

**(۳)** قال ابن عابدين: قوله(و تعليم علم تعلمه) اى شرعى فيما يظهر ولذا عبر فى الجوهرة بقراءة الفقه (قوله بخلاف قرآن) لانه لا يفوت جوهره ولعله لان تكرار القراءة انما هو للاجر فلايفوت بالاجابة بخلاف التعلم فعلىٰ هذا لو يقرأ تعليما او تعلما لا يقطع.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۹۲ جلد ۱ باب الاذان)

## د آذان او اقامت کلمات به هم د تجويد په قواعدو سره ادا کولې شي

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه داذان او اقامت په کلماتو کښې به د تجويد د اصولو او قواعدو مطابق او غير وقف احکامات جاري کيږي که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: رحمن الدين تحصيل وډاکخانه خاص دير ضلع دير

**الجواب**: د تجويد او عربيت قواعد په ټولو کلماتو کښې جاري کيږي د اذان او اقامت په کلماتو کښې هم جاري کيږي.﴿۱﴾

**﴿۱﴾(يدل عليه مافی ردالمحتار ص۲۵۸،۲۵۹ جلد۱ ). وهوالموفق**

## په دوه يا زياتو ځايو نو کښې مؤذن کيدل مکروه دي

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه يو سړې په دوه يا درې ځايو نو کښې اذان کوي ځکه چه اذان خو صرف اعلان دې نو آيا دا جائز دي؟

المستفتي: سعيدالله آزاد کوهستان....۱۹۸۵ء\۱۴\۶

**الجواب**: دوه يا دوونه زياتو جماعتونو کښې موذن مقرر کيدل مکروه دي.

**کمافی شرح التنوير قبيل شروط الصلاة ويکره له ان يوذن فی مسجدين﴿۲﴾وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾قال العلامه الحصکفی ولالحن فيه ای تغنی بغير کلماته فانه لا يحل فعله وسماعه کالتغنی بالقرآن وبلاتغير حسن، قال ابن عابدين بغير کلماته ای بزيادة حرکة او حرف او مد او غيرها فی الاوائل والاواخر قهستانی.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۲۸۵ جلد۱ مطلب فی اول من بنی المنابر للاذان)**

**﴿۲﴾قال العلامه ابن عابدين: (قوله فی مسجدين) لانه اذا صلی فی المسجد الاول يکون متنفلا بالاذان فی المسجد الثانی والتنفل بالاذان غير مشروع ولان الاذان للمکتوبة وهو فی المسجد الثانی يصلی النافلة فلاينبغی ان يدعو الناس الی المکتوبه وهو لايساعدهم فيها.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۲۹۵ جلد۱ قبيل باب شروط الصلاة)**

## د اختر دَ مونځ د پاره اذان کول د سنتونه خلاف دي

**سوال**: علمائې دین دې باره کښې څه فرمائي چه د اختر د مونځ د پاره اذان کول څنګه دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: سمیع الرحمان ګړهی کپوره مردان......۱۹۷۲ ۸\۱۲

**الجواب**: د سنتو نه خلاف دي.﴿ ۱﴾ وهوالموفق

## د ټیپ ریکارډ نه د اذان کولو حکم

**سوال**: علمائي دین دې مسئلي باره کښې فرمائي چه په ټیپ ریکارډ سره د اذان کولو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي عبدالله کلے ډاکخانه هواره چارسده.....۲۴\ذی الحجه ۱۴۰۲

**الجواب**: په ټیپ ریکارډ سره د آواز عکس اوریدلې کیږي اصلي اذان نه نود اذان په عکس باندې اکتفاء کولو سره سنت نه ادا کیږي.﴿ ۲﴾ لکه څنګه چه په محراب کښې په ټیپ ریکارډ کیښودلو سره جماعت نه کیږي ګني نو د مؤذن او امام د خرچونه به خلاصې راشي. وهوالموفق

---

**﴿۱﴾ قال العلامه الحصکفی: لا یسن لغیرها کعید، قال ابن عابدین کعید ای ووتر وجنازة وکسوف واستسقاء وتراویح...... لکن فی التعلیل قصور لا قتضائه سنیة الاذان لمالیس تبعاً للفرائض کالعید ونحوه فالمناسب التعلیل بعدم وروده فی السنة .**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۲۸۴ جلد ۱ باب الاذان)**

**﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدین: ان اذان الصبی الذی لا یعقل لایجزی ویعاد لان مایصدر لاعن عقل لا یعتدبه کصوت الطیور...... ان المقصود الاصلی من الاذان فی الشرع الاعلام بدخول اوقات الصلاة ثم صار من شعار الاسلام فی کل بلدة اوناحیة من البلاد...... لابد من الاسلام والعقل والبلوغ والعدالة.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۹۱ جلد ۱ باب الاذان)**

**الجواب**: مستحب دا ده چه د صبا ختلونه مخکښې خوراک څښاک بند کړې بلکه د مشکوک کيدلو نه هم مخکښې ﴿١﴾ او که د بندؤلو اعلان اوکړي نو هم څه منع نه دي ﴿٢﴾ وهوالموفق

## د وخت نه مخکښې اذان کول

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي که د وخت نه مخکښې اذان اوشي نو دوباره کول ئې څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: رضا ءالله شګئ ضلع صوابي......١٧\شعبان ١٤١٠هـ

**الجواب**: ددې اذان اعاده به کولې شي (شامي وغيره).﴿٣﴾ وهوالموفق

## داذان په وخت کښې په اوچت آواز سره د ريډيو لګولو والا حکم

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه يو سړې بالکل صحيح دې خو کله چه اذان شروع شي نو هغه ريډيو په اوچت آواز سره اولګوي او چه ورته د ريډيود بندولو اووئيلې شي نو انکار کوي او چه مونځ ته ئې راغواړې نو هم انکار کوي ددې سړي څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيد غلام حيدر شاه...... ١٠\١١\١٩٨٩ء

---

﴿١﴾ قال الشيخ محمد امين ابن عابدين: (قوله وتاخيره) لان معنى الاستعانة فيه ابلغ بدائع ومحل الاستحباب مااذا لم يشک فی بقاء الليل فان شک کره الاکل فی الصحيح کمافی البدائع. (ردالمحتار ص ١٢٤ جلد٢ قبيل فصل فی العوارض)

﴿٢﴾ لمارواه ابوداؤد فما احل فهو حلال وماحرم فهو حرام وماسکت عنه فهو عفو. (سنن ابی داؤد ص ١٨٣ جلد٢ باب مالم يذکر تحريمه)

﴿٣﴾ قال الحصکفی: (فيعاد اذان وقع) بعضه (قبله) کالاقامة خلافا لثانی فی الفجر. (الدرمختار ص ٢٨٤ جلد ١ باب الاذان).وفی الهنديه: تقديم الاذان على الوقت فی غير الصبح لايجوز اتفاقا وکذافی الصبح عند ابی حنيفه ......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

**الجواب:** دداسې کس سره تعلقات پريخودل پکار دي ﴿۱﴾ ځکه چه شرعي حکم (همیشه جیل) زمونږ د طاقت خبره نه ده.وهوالموفق

## اقامت کول سنت موکده دي

**سوال:** علمائې دين څه فرمائي چه د مونځ نه مخکښې اقامت وئيل څه درجه لري فرض دي که سنت يا واجب يا مستحب؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالرقيب پشاور يو نيورستي....۲۴\۱پريل ۱۹۷۵ء

**الجواب:** اقامت سنت مؤکده دې اوبدائع والاپه واجباتوکښې شمارکړي.﴿۲﴾ **فی مراقی الفلاح سن الاذان فليس بواجب على الاصح وكذا الاقامة سنة مؤكدة فی قوة الواجب لقول النبیﷺ الخ (هامش الطحطاوی ص ۱۱۵) ﴿۳﴾. وهوالموفق**

---

(بقيه حاشيه )ومحمد رحمهما الله تعالىٰ وان قدم يعاد فی الوقت هكذا فی شرح مجمع البحرين لابن ملک وعليه الفتوىٰ هكذا فی التارخانيه ناقلا عن الحجة.

(فتاوىٰ هنديه ص ۵۳ جلد ۱ الفصل الاول فی صفته واحوال المؤذن)

﴿۱﴾ قال العلامه ابن حجر العسقلانی: فتبين هنا السبب المسوغ للهجر وهو لمن صدرت منه معصية فيسوغ لمن اطلع عليها منه هجره عليها ليكف عنها...... قال المهلب غرض البخاری فی هذا الباب ان يبين صفة الهجران الجائز وانه يتنوع بقدر الجرم، فمن كان من اهل العصيان يستحق الهجران بترک المكالمة كما فی قصة كعب وصاحبيه...... وقال الطبری: قصة كعب بن مالک اصل فی هجران اهل المعاصی.

(فتح الباری شرح صحيح البخاری ص ۵۹۸ جلد ۱۳ باب مايجوز من الهجران لمن عصی)

﴿۲﴾ قال العلامة الكاسانی: واما واجباتها فانواع بعضها قبل الصلاة وبعضها فی الصلاة...... اما الذی قبل الصلاة فاثنان احدهما الاذان والاقامة.

(بدائع الصنائع ص ۳۶۴ جلد ۱ واجبات الصلاة)

﴿۳﴾ (حاشية الطحطاوی على المراقی ص ۱۹۴ باب الاذان)

## په اذان کښې به په اشهدان محداً رسول الله کښې محمداً منصوب وئیلې کیږي

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په اذان کښې محمدًا رسول الله یعنی زبرسره، یا محمدُ رسول الله په پیښ سره وئیلې کیږي ځکه چه کلمه طیبه کښې پیښ سره وئیلې کیږی نو په اذان کښې پیښ ولې نشته؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد سلیم صدیقي عمان مسقط...... ۵\۱۱\۱۹۷۴

**الجواب:** په اذان کښې به د اَن (عامل ناصبه) دوجې نه محمداً په زبر سره وئیلې کیږي. (۱) وهو الموفق

## د اذان د پاره د ښي او ګس طرف څه تخصیص نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه حضور ﷺ ارشاد دې چه د ''ان الله یحب التیامن'' (الحدیث) نو په لباس، جمات ته ننوتل، ګمنځ کول، ښپې وینځل وغیره کښې د ښي طرف حکم دې نو بیا څه وجه ده چه اذان د اسلام په شعائرو کښې دې او هغه ګس طرفته کیږي د جمات ښي طرفته اذان ولې نه کیږي لکه څنګه چه اقامت ښي طرفته کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: قاري عبدالحمید باجوړ ایجنسي......... ۱۳\مئي ۱۹۷۵

**الجواب:** ګس طرفته اذان کول کتابی حکم نه دې د پیغمبر علیه السلام په زمانه کښې به د جمات نه بهر اذان کولې شو، د ښی او ګس طرف څه لحاظ نه ؤو. (کما لایخفیٰ) (۲) وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه جمال الدین عثمان بن الحاجب: المنصوبات فمنه اسم ان واخوالها هو المسند الیه بعد دخولها مثل ان زیداً قائم. (کافیه ابن حاجب ص ۴۹ المنصوبات)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: ان اول من رقی منارة مصر للاذان شر حبیل بن عامر المرادی وبنی سلمة المنابر للاذان بامر معاویة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د صوفي جاهل په نسبت د عام فاسق اذان بهتر دي

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه يو سړې د ايم اې پورې تعليم يافته دې پابندئ سره ډيره مزيدار تلاوت د قرآن مجيد کوي حروف هم په ښه طريقې سره ادا کوي ليکن ږيره ئې نشته بلکه ږيره خرئي، نو آيا دده اذان کول جائز دي؟ بل سړې دې چه بالکل بې تعليمه دې او د قرآن مجيد تلاوت هم نه شي کولې او د اذان حروف هم په ښه طريقې سره نشي ادا کولې البته ږيره ئې شته دې دواړو کښې کوم يو داذان کولو دپاره بهتر دې؟
بينوا توجروا

المستفتي: فضل ربي کندي تازه دين پبي نو شهره.....۲۵\مئي۱۹۷۵ء

**الجواب:** خبر شئ چه محلوق اللحيه فاسق دې.(کما صرح به فى شهادات تنقيح الفتاوى الحامديه) ﴿۱﴾ اود عالم باعمله په موجودګئ کښې د هغه اذان مکروه تحريمي دې البته د صوفي جاهل په نسبت اولى او افضل دې.

**کمافى الدرالمختار وفاسق ولوعالماً لاکنه اولىٰ بامامة واذان من جاهل تقى﴿۲﴾ (هامش ردالمحتار ص۲۶۳ جلد۱) . وهوالموفق**

---

(بقيه حاشيه)ولم تكن قبل ذلك وقال ابن سعد بالسند الى ام زيد بن ثابت كان بيتى اطول بيت حول المسجد فكان بلال يؤذن فوقه من اول مااذن الى ان بنى رسول الله ﷺ مسجده فكان يؤذن بعد على ظهر المسجد وقد رفع له شئ فوق ظهره.
(ردالمختار هامش الدرالمختار ص ۲۸۵ جلد ۱ مطلب من بنى المنابر للاذان باب الاذان)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين فى تنقيح الفتاوىٰ: ان الاخذ من اللحية وهى دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه احد واخذ كلها فعل يهود الهنود ومجوس الاعاجم فحيث ادمن على فعل هذا المحرم يفسق.
(تنقيح الفتاوىٰ الحامدية ص ۳۵۱ جلد ۱ لأيباح الاخذ من اللحية وهى دون القبضة)

﴿۲﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ۲۸۹ جلد ۱ مطلب فى المؤذن اذاكان غير محتسب فى اذانه باب الاذان)

## په جيل کښې د قيديانو د پاره د اذان مسئله

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د نوښار په حوالات کښې د پخوا نه دا طريقه وه چه دلته به قيديانو مونځ جماعت سره هم کولو. او اذان به ئې هم کولو. اوس يو مولوی صاحب قيديان ددې نه منع کړی دی چه تاسو اذان هم مه کوئ او جماعت هم مه کوئ دا په شريعت کښې منع دي. ځکه چه اذان په هغه ځائې کښې کول پکار وي چه هلته دروازې آزادې وي عام خلق بغير د څه بنديز نه تللې راتللې شي. مولوي صاحب دا هم اووئيل چه مونږ مجرمان يو او د مجرم اقتداء صحيح نه ده، لهذا درخواست دادې چه د شريعت محمدي ﷺ په رڼا کښې ددې مسئلې جواب د معتبرو کتابونو په حوالو سره مدلل اوليکئ؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد سيف الله. ۱۳\جولائي ۱۹۷۳

**الجواب:** د جمعې مونځ په حوالات(جيل) کښې کول جدا څيز دې او د جُمعې مونځ جدا څيز دې او په دې دويم صورت کښې اذان کول بې قاعدې حکم دې(۱) او که دې مولوي صاحب ته څه جزئيه معلومه وي نو مونږ ته دې رااوليږي. وهوالموفق

## د خطبې اذان کوم ځائې کښې کول پکار دي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د جمعې د مونځ نه مخکښې چه کوم اذان کولې شي د هغې دپاره د ځائې څه قيد شته يا نه؟ يا هرځائې کښې چه اوکړې شي؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالوهاب زړه ميانه نوشهره

---

**﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدين: (قوله للفرائض الخمس الخ) دخلت الجمعة بحر وشمل حالة السفر والحضر والانفراد والجماعة قال فى مواهب الرحمن ونور الايضاح ولو منفرداً اداء او قضاء سفرا او حضراً .**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۸۳ جلد ۱ باب الاذان)**

**الجواب**: دا اذان په جمات کښې دننه کول پکار دي دغه شان د ممبر مخې ته او ممبر ته نزدې کول پکاردي. (والتفصيل ف امدادالفتاوی ص۴۴۹ جلد۱) (۱) وهوالموفق

## په کوم جمات کښې چه امام او مؤذن مقرر نه وي نو راتلونکو د پاره اذان او اقامت افضل دي.

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائې چه د سفر په حالت کښې چه په اکثرو جماتونو دويم جماعت کيږي نو دغې حالت کښې اقامت کول بهتر دي که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مفتي بدر منير مهتمم دارالعلوم مدنيه بډ خيله ملاکنډ ايجنسي... ۱۰ ذی قعده ۱۴۰۹ھ

**الجواب**: دکوم جما ت د پاره چه امام او مؤذن مقرر نه وي نو راتلونکو دپاره افضل دا ده چه اذان او اقامت اوکړي.

**كمافي الهنديه ص۵۶ جلد۱ مسجد ليس له موذن وامام معلوم يصلى فيه الناس فوجاً فوجاً بجماعة فالافضل ان يصلى كل فريق باذان واقامة على حدة كذا في فتاوىٰ قاضي خان ﴿۲﴾. وهوالموفق**

## په اذان کښې د تکبير کلمات دوه دوه يوځائې وئيل پکار دي

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د اذان ټول کلمات به

---

﴿۱﴾ شيخ اشرف على تهانوي رحمه الله فرمائي! داکثرو کتابو نو عبارت د دوو وجهو احتمال لري ليکن د جامع الرموز عبارت دې چه متبادر نزديوالې او مخامخ دې **وهو هذه بين يديه اى بين الجهتين المسامتتين اليمين المنبر او الامام ويساره قريبا منه و وسطهما بالسكون فيشمل ما اذا اذن في زاوية قائمة او حادة او منفرجة حادثة من خطين خارجين من هاتين الجهتين، قلت تحدث القائمة اذا كان المؤذن حذاء وسط المنبر بالحركة والمنفرجة والحادة اذا كان في غير حذائه. (امداد الفتاوىٰ ص۶۷۴ جلد۱ باب صلوٰة الجمعة والعيدين)**

**﴿۲﴾(فتاوىٰ عالمگيريه ص۵۵ جلد۱ الفصل الاول في صفته واحوال المؤذن)**

ځان ځان له ساه سره وئيل ضروري وي يا د الله اکبر الله اکبر دوه دوه کلماتو په يوه ساه سره وئيلو څه استثناء موجود ده؟ بينوا توجروا.

المستفتي:عبدالحق ابوها سوات....۹۱۴۱۱۹۸۹

**الجواب:** د دوو الله اکبر نه پس به ساه اخستلې کيږي.《۱》 وهوالموفق

## ږيره خرئيلی د اذان اعاده کنبې احتياط دي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي که ږيره خرئيلې چرته اذان اوکړي نو دهغې اعاده به کولې شی که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: صدررحمان ګل قريب نيو حاجي کيمپ کراچي نمرا...۵۱۷۱۱۴۰۱

**الجواب:** ږيره خرؤنکې فاسق دې او مردودالشهادت دې کما في تنقيح الفتاوی《۲》 او د هغه اذان مکروه دې او ډير احتياط دادې چه غير فاسق د ددې اعاده اوکړي.

**کمافی ردالمحتار ص ۳۹۳جلد۱ قوله ويعاد اذان جنب الخ، زادالقهستانی والفاجر والراکب والقاعد《۳》. وهوالموفق**

---

**《۱》 قال العلامه ابن نجيم (قوله ويترسل فيه ويحدرفيها) ای يتمهل فی الاذان ويسرع فی الاقامة وحده ان يفصل بين كلمتی الاذان بسكتة بخلاف الاقامة للتوارث...... ولو جعل الاذان اقامة يعيد الاذان ولوجعل الاقامة اذانا لا يعيد لان تكرار الاذان مشروع دون الاقامة. (بحر الرائق ص۲۵۷ جلد ۱ باب الاذان)**

**《۲》 قال العلامة ابن عابدين فی تنقيح الفتاوی: ان الاخذمن اللحية وهی دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه احدو اخذ كلها فعل يهود الهنود ومجوس الاعاجم فحيث ادمن على فعل هذا المحرم يفسق وان لم يكن ممن يستخفونه ولا يعدونه قادحاً للعدالة والمروءة فكلام المؤلف غير محرر ،فتدبر.**
**(تنقيح الفتاوی الحامديه ص ۳۵۱ جلد ۱ لايباح الاخذ من اللحية وهی دو ن القبضة)**

**《۳》 (ردالمحتار ص ۲۸۹جلد ۱ مطلب فی المؤذن اذا كان غير محتسب فی اذانه باب الاذان)**

## د ږیره خریونکي اذان مکروه دي

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه ږیره خریونکي مستقل طریقې سره د جمات مؤذن جوړولې شي که نه؟ بینوا توجروا
المستفتي: حاجي علي محمد دفتر عالمي مجلس تحفظ ختم نبوت نادرشاه بازار بهار ولنګر...۱۰\۵\۱۹۸۸

**الجواب:** عادةً ږیره خریونکي فاسق دي ﴿۱﴾ او فتاؤو والا لیکي چه د فاسق اذان او امامت مکروه دي ﴿۲﴾ نو دې مستقل طریقې سره امام او مؤذن جوړول ددین نه بې پرواهي او سستي کول دي. وهو الموفق

## بې اودسه اذان کولو سره د قوم خوار کیدل او ذلیله کیدل موضوعي وعید دي

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بعضې خلق وائي چه بغیر اودسه اذان کولو سره په قوم باندې خواري اوذلت راځي آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا المستفتي: قیس نعماني مرهتې نو ښهره

**الجواب:** بې اودسه اذان کول خلاف استحباب دي﴿۳﴾ او ددې د وجې نه په قوم باندې خواري او پستي منصوصې خبره نه ده بلکه موضوعي او خودساخته وعید دي. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (تنقیح الفتاوىٰ الحامدیه ص ۳۵۱ جلد ۱ لایباح الاخذ من اللحیة وهی دون القبضة)
﴿۲﴾ قال العلامه الحصکفی: ویکره اذان جنب واقامته واقامة محدث لا اذانه واذان امرأة وخنثیٰ وفاسق ولو عالما لکنه اولیٰ بامامة واذان من جاهل تقی.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۸۹ جلد ۱ باب الاذان)
﴿۳﴾ قال الشرنبلالی: ویستحب ان یکون المؤذن ...... علی وضوء لقوله ﷺ لا یؤذن الا متوضی.
(امداد الفتاح شرح نورالایضاح ص ۲۱۱ ما یستحب للمؤذن)......(بقیه حاشیه په بله صفحه)

(بقیه حاشیه)وفی المنهاج: ملهب ابی حنیفة انه یکره الاقامة بغیر وضوء ویجوز الاذان، وروی عنه انه یکره الاذان ایضاً ویؤیده حدیث لا یؤذن احدکم الا وهو طاهر، اخرجه ابوالشیخ مرفوعا وفی سنده عبد الله بن هارون وهو ضعیف واخرجه البیهقی موقوفا علی وائل وفی سنده القطاع لم یسمع الجبار عن ابیه وائل شیأ، وملهب الشافعی انه یکره الاذان بغیر طهور، وملهب احمد ان التطهر مستحب فی الاذان والامامة، وقال مالک یصح الاذان بغیر طهور ولا یقیم الا متوضی.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۷۷ جلد۲ باب کراهیة الاذان بغیر وضوء)

# باب شروط الصلوة وارکانها

## په جیب کښې نسوار یا سگریټو سره مونځ کول

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د نسوارو ډبې یا تهیلئ یا سگریټ په جیب کښې وي نو مونځ کول جائز دي؟ یا دې لره لرې کول لازمي دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: لطیف الله چارسده

**الجواب:** په نسوارو کښې غالباً پاکې اوبه اچولې کیږي لهذا دې سره مونځ کول ممنوع نه دي او که د سگریټو تهیلئ یا ډبې پاک وي نو په هغې سره مونځ ته څه نقصان نه رسیږي ﴿۱﴾ البته بدبویه او ضرري څیزونه جمات ته وړل منع دي. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د مړي دلامبولو د پاره په استعمال شوې پاکه تخته باندې مونځ صحیح دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د مونځ په تخته باندې ئي د یو ماشوم لاش ته غُسل ورکړو او نو اوس دې تخته باندې مونځ صحیح دې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: منشي محمود مانسهره

---

﴿۱﴾ وفی الهندیه: تطهیر النجاسة من بدن المصلی وثوبه والمکان الذی یصلی علیه واجب هکذا فی الزاهدی فی باب الانجاس.
(فتاوىٰ عالمگیریه ص ۵۸ جلد ۱ الفصل الاول فی الطهارة)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدین: (قوله واکل نحو ثوم) ای کبصل ونحوه مما له رائحة کریهة للحدیث الصحیح فی النهی عن قربان آکل الثوم والبصل المسجد قال الامام العینی فی شرحه علی صحیح البخاری قلت علة النهی اذی......(بقیه حاشیه په راروان مخ....)

**الجواب**: خبرشئ چه د مونځ د صحیح والي د پاره د مکان پاکوالې شرط دې نو که دا تخته پاکه وي نو دې باندې مونځ کول صحیح وي. (۱)

**والظاهر هی الطهارة والا فلم یصح صلوٰة الجنازة ایضا. فافهم وتدبر. وهو الموفق**

## د دویمې سجدې د هیروالې په صورت کښې د سلام نه ورستو اداکول

**سوال**: علمائ دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو سړي نه په اخري رکعت کښې دویمه سجده هیره شوه اوسلام نه هم فارغ شو نو بیا ورته رایاد شواو تر اوسه ئې د مونځ مخالف څه کار نه دې کړې نو اوس به څه صورت اختیار وی؟ اوکه دمونځ مخالف څه کار ئې کړې وي نو بیا به څه صورت وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبدالرحمان

**الجواب**: دداسې کس نه که د مونځ مخالف څه کار شوې وي نو د مونځ اعاده به کوي او که څه منافي کار ترینه نه وي شوې نو دویمه سجده به اوکړي او التحیات به اووائي سجده سهوه به اوکړي بیا به التحیات اووائي اوسلام به اوګرځوي. (۲) وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) الملائکة واذی المسلمین ولا یختص بمسجده علیه الصلاة والسلام بل الکل سواء لروایة مساجدنا بالجمع خلافا لمن شد ویلحق بما نص علیه فی الحدیث کل ماله رائحة کریهة ماکولا او غیره الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۸۹ جلد ۱ مطلب فی الغرس فی المسجد)

﴿۱﴾ وفی الهندیه: تطهیر النجاسة من بدن المصلی وثوبه والمکان الذی یصلی علیه واجب هکذا فی الزاهدی فی باب الانجاس. (فتاویٰ عالمگیریه ص ۵۸ جلد ۱ الفصل الاول فی الطهارة)

﴿۲﴾ قال الشیخ طاهر بن عبد الرشید البخاری: وان سلم وهو غیرذاکر لهما (ای سجدة صلبیة وسجدة التلاوة) فان سلامه لا یکون قطعا وعلیه ان یسجد للتلاوة ویسجد للصلوٰتیة الاول فالاول ثم یتشهد ثم یسلم ثم یسجد سجدتی السهو ثم یتشهد ثم یسلم.

(خلاصة الفتاویٰ ص ۱۸۰ جلد ۱ باب سجو د السهو)

## په کوټ پتلون او ټائی کښې مونځ کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه انګریزي جامه یعني کوټ پتلون او ټائي اچول یو عام رسم جوړشوې دې او خاص کرد افسر ټیپ خلقو دا طریقه ده د ډیو ټي په وخت کښې چه کله د مونځ وخت شي او دجامو د بدلولو موقع ملاؤ نشي نو آیا په دې لباس کښې مونځ کول جائز دي؟
بینوا توجروا

المستفتي: ډاکټرخالدحسین میډیکل افسرمیرعلي شمالي وزیرستان...۱۹۷۲ء۱\۵\۲۸

**الجواب:** د مونځ قضاء کیدلو نه دابهتر ده چه په دې غیر شرعي لباس کښې اوکړې شی او خاصکر چه کله عذر هم وي.(۱) فقط

## په سجده کښې خپې اوچتول

**سوال:** علمائي کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په سجده کښې د خپو اوچتولو سره مونځ فاسد کیږي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: شفیق الرحمان پشاور..........۱۵\اګست ۱۹۷۹ء

**الجواب:** چه کله په ټوله سجده کښې خپې د زمکې نه اوچتې کړي نو د مونځ راګرځول واجب کیږي لیکن داسې کیدل مونږ چرته نه دي اوریدلی (بحر شامي) (۲) وهوالموفق

(۱) قال الشیخ محمدامین ابن عابدین: (قوله والرابع سترعورته) ای ولو بما لا یحل لبسه کثوب حریر وان اثم بلا عذر کالصلوٰة فی الارض المغصوبة.
(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص۲۹۷ جلد ا مطلب فی سترا لعورة)

(۲) قال فی شرح التنویر: ومنها السجود بجبهته وقدمیه ووضع اصبع واحدة منهما شرط، قال ابن عابدین: وافاد انه لو لم یضع شیأ من القدمین لم یصح السجود وهو مقتضی ما قدمناه آنفا عن البحر وفیه خلاف سند کره فی الفصل الآتی (ص ۳۳۰ جلد ا) وقال الحصکفی: وفیه یفترض وضع اصابع القدم ولو واحدة نحو القبلة والا لم تجز والناس عنه غافلون.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۳۳۰، ۳۶۹ جلد ا بحث الرکوع والسجود)

## د زنانو په نرئ لوپټه او د مړوند نه بره لستونړو په حالت کښې مونځ

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) داسې نرئ لوپټه چه ویښته پکښې ښکاري په دې کښې مونځ کول څنګه دي؟ (۲) او چه کله لستونړی د مړوند ونو نه بره وي نو دمونځ څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** (۱) د زنانه دپاره په دې نرئ لوپټه کښې مونځ کول صحیح نه دي او په دویم ځل ئې پرې باقاعده طریقې سره راګرځول واجب دي. دا حدیثو او فقهي روایاتو نه دا ثابت ده(۱) (۲)د سړي د پاره مکروه دي او ښځې دپاره مفسد دي.

**والدلیل علی الاول کراهة الصلوٰة علی وجه الولایة، والدلیل علی الثانی کون الیدین عورة الا الکفین﴿۲﴾. فقط**

## د علم په اعتبار سره د مونځ ګزارو قسمونه او د عالمګیري په عبارت کښې د فیه د ضمیر مرجع

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د فتاویٰ عالمګیري د لاندیني عبارت متعلق یو تپوس دې.

**المصلون ستة من علم الفرائض منها والسنن وعلم معنی الفرائض انه ما یستحق الثواب بفعله والعقاب بترکه والسنة ما یستحق الثواب بفعلها ولا یعاقب بترکها فنوی الظهر والفجر اجزأته واغنت نیة الظهر عن نیة الفرض والثانی من یعلم**

---

﴿۱﴾قال فی الهندیه: بدن الحرة عورة الا وجهها و کفیها وقدمیها کذا فی المتون، وشعر المرأة ما علی رأسها عورة واما المسترسل ففیه روایتان الاصح انه عورة کذا فی الخلاصة وهو الصحیح وبه اخذ الفقیه ابو اللیث وعلیه الفتویٰ...... والثوب الرقیق الذی یصف ما تحته لا تجوز الصلاة فیه کذا فی التبیین. (فتاویٰ هندیه ص ۵۸ جلد ۱ الفصل الاول فی الطهارة وستر العورة)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین رحمه الله: وقید الکراهة فی الخلاصة والمنیة بان یکون رافعا کمیه الی المرفقین. (ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۴۷۳ جلد ۱ مطلب مکروهات الصلاة)

**ذلک وینوی الفرض فرضاً ولکن لا یعلم ما فیه من الفرائض والسنن یجزیه کذا فی القنیة"**
په دې عبارت کښې د مافيه د (ه) ضمير مرجع څه دي،ما في الوقت دي كه ما في الفرض؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد صادق ناظم مجلس منتظمه اشاعت فتاوي عالمگيري سهگل جهلم...١٩٧٠/٥/١٧

**الجواب:** په (مافيه) کښې ضمير مونځ ته راجع دي يعني چه دومره پوهيږي چه دا مونځ فرض دي ليکن په دې مونځ کښې چه څومره فرائض او واجبات وغيره دي د هغې نه بې خبره وي.وهوالموفق

## د ګدې بيزې د څرمنې نه د جوړې شوې مصلې کيښودلو طريقه

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د ګدې بيزې په مصلې باندې دلته په علماؤ کښې اختلاف پيدا شوې دې د بعضو په نزد باندې به د سر اوسته والا حصه مخکښې کولې شي او د بعضو په نزد باندې به شاتنۍ حصه مخکښې کولې شي. لهذا د مستندو کتابونو په حوالو سره ددې مسئلې وضاحت اوکړئ چه د مصلې کوم طرف به مخکښې او کوم طرف شاته کولې شي؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي سعيد اصفهاني چائې ډپو کوهاله مري

**الجواب:** دواړه طرفونه جائز دي ځکه چه دواړو متعلق نه حکم راغلې او نه منع.نو دحديث (وما سكت عنه فهوعفو) (۱) په بنياد دواړه جائز او مباح دي البته تکلف او سختي منع ده.فقط

## د فرض مونځ او سنتو نيت به څنګه کولې شي؟

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) دمونځ نيت به څنګه کولې شي صرف په زړه سره يا په زړه او ژبې دواړو سره؟په سنت مونځ کښې د سنت رسول الله وئيل څۀ حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: صفدر حسين اينډ برادرز سنعودي عرب......۱۹۸۶/۱۱/۳۰

(۱) (سنن ابی داؤد ص۱۸۳ جلد۲ باب مالم یذکر تحریمه)

**الجواب:** (۱) نیت د زړه د ارادې نوم دي برابره خبره ده چه په ژبې سره ئې او وائي یا نه البته په ژبې سره وینا کول مستحب دي په دې سره د زړه د ارادې تائید او تقویت کیږي او د سنت ثابته سره ئې څه ټکراؤ هم نشته (۱) (۲) سنت یا سنت رسول الله وئیل یو حکم لري یو مجمل دې او دویم مفصل (۲) وهوالموفق

## د زنانو د پاره په مونځ کښې ستر دعوت

**سوال:** چه مے فرمایند علماء کرام دریں مسئله که یک زن مسلمان واصیل که در یک لباس نماز ادا میکند، ودران لباس ساق زن وصدرش از جهت کشادگی گریوان ظاهر میشود، این نماز زن دران لباس درست است یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: باز محمد افغانی......۱۹۸۷ء/۱/۲۴

**الجواب:** ماسوائے وجه وقدمین وکفین هر اندام مکمل یا ربع وے که برهنه شود، نمازش فاسد شود، کما فی الهندیه ص ۶۰ جلد ۱ الربع وما فوقه کثیر وما دون الربع قلیل وهو الصحیح هکذا فی المحیط (۳). وهوالموفق

## د قبلې طرف کښې چه بعضې قبلې ته مخ وي نو مونځ نه فاسدیږي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو سړې ته پته نه وه چه د قبلې نه په سینې اړولو سره مونځ فاسدیږي په بې علمۍ سره اوس

---

(۱) قال العلامه ابراهیم الحلبی: والمستحب فی النیة ان ینوی یقصد بالقلب ویتکلم باللسان بان یقول اصلی صلوٰة...... ولو نوی بالقلب ولم یتکلم باللسان جاز بلا خلاف بین الائمة لان النیة عمل القلب لا عمل اللسان واستحباب ضمه لما ذکرنا.
(غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص ۲۵۱، ۲۵۲)

(۲) فی ردالمحتار: ان کان مما واظب علیه الرسول ﷺ او الخلفاء الراشدون من بعده فسنة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۷۶ جلد ۱ مطلب فی السنة وتعریفها)

(۳) (فتاویٰ عالمگیریه ص ۵۸ جلد ۱ الفصل الاول فی الطهارة وستر العورة)

سينه د قبلې نه واوړيدله نيمه يا د نيمې نه زياته يعني كم نه كم څومره سينه چه د قبلې نه واړوى نو هغې سره مونځ فاسديږي؟ بينوا توجروا

المستفتي: اكرام الحق نشتر آباد راوالپنډي......۱۲\ذي الحجه ۱۳۸۹ء

**الجواب:** كه بعضې مواجهت باقى وي نو مونځ نه فاسديږي او چه كله مواجهت بالكل ختم شي نو بيا مونځ فاسديږي (يدل عليه ما فى رد المختار ص۲۹۸جلد۱)(۱) فقط

## په باران سره لوندو جامو كښې مونځ جائزدې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائي چه د يوسړي بدن هم پاك دې او جامې ئې هم پاكې دي ليكن د باران په وجه لوندې شوې او بدن پورې اونختلې او نورې جامې هم نشته نو آيا په دې جامو كښې به مونځ ادا كوى كه قضابه راوړي؟ بينوا توجروا

المستفتي: مير احمد بن حمال الدين كوهاله راوالپنډي...... ۱۹۷۰ء\۴\۴

**الجواب:** مونځ به پكښې كوي ځكه چه جامې په لونديدلو سره نه پليتيږي. وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: وسيأتي في المتن في مفسدات الصلاة انها تفسد بتحويل صدره عن القبلة بغير عذر فعلم ان الانحراف اليسير لا يضر وهو الذى يبقى معه الوجه او شئ من جوانبه مسامتالعين الكعبة او لهوائها بان يخرج الخط من الوجه او من بعض جوانبه ويمر على الكعبة او هوائها مستقيما ولا يلزم ان يكون الخط الخارج على استقامة خارجا من جبهه المصلى بل منها او من جوانبها كما دل عليه قول الدرر من جبين المصلى فان الجبين طرف الجبهة وهما جبينان وعلى ما قررناه يحمل ما فى الفتح والبحر عن الفتاوىٰ من ان الانحراف المفسد ان يجاوز المشارق الى المغارب. فهذا غاية ما ظهر لى فى هذا المحل والله تعالىٰ اعلم.

(ردالمحتار ص۳۱۶، ۳۱۷جلد۱ مبحث فى استقبال القبلة)

**خمونږپه ښارونوکښې د مونځ د پاره دقبلې طرف کافي دې خاص قبله نه**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه زمونږ دپاره د قبلې صحيح طرف څه دې؟ آيا د ژمي او ګرمئ په موسم کښې دنمر پريوتلو منځ ځائې کښې به قبله وي؟ بينوا توجروا

المستفتي: جهان بخت خان ملاکنډ ايجنسي...۱۹۷۸ء۱۱۱۱/۲۷

**الجواب:** خبر شئ چه د رياضئ والو په نزد زمونږ د ښارونو په نسبت سره کعبه شريفه جنوب (سويل) طرفته مائله ده ليکن د ټولو فقهاؤ وينا ده چه مونځ د قبلې ټول طرف ته کول جائز دي(۱) وهوالموفق

**زمونږ په ښارونو کښې د قبلې طرف بين المغربين دې**

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه هندوستان پاکستان کښې قبله مغرب طرفته ده نوددې وجې نه د جماتونو مخ هم خاص قبلې طرفته دي ليکن نن صبا چه د سعودي عرب نه کومه قبله نما ملاويږي د هغې په ذريعه سره زمونږ د ګجرات په ښار کښې قبله د مغرب نه اتلس درجې جنوب راځي نو اوس هغه جمات کښې چه صحيح مغرب طرفته جوړ شوې وي مونځ کول صحيح دې يا نه؟ بينوا توجروا

**الجواب:** زمونږ په ښارونو کښې د قبلې طرف بين المغربين دې او د کعبې

---

**(۱)** قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالى: (قوله اصابة جهتها) فالمغرب قبلة لاهل المشرق وبالعكس والجنوب قبلة لاهل الشمال وبالعكس فالجهة قبلة كالعين توسعة على الناس كما فى القهستانى حتى لو ازيل المانع لا يشترط ان يقع استقباله على عين القبلة كما فى الحلبى وهو قول العامة وهو الصحيح لان التكليف بحسب الوسع. (مراقى الفلاح ص۱۵ ا باب شروط الصلاة)

**(۲)** قال ابن عابدين رحمه الله: وقال فى شرح زادالفقير وفى بعض الكتب المعتمدة فى استقبال القبلة الى الجهة اقاويل كثيرة واقر بها الى الصواب قولان الاول ان ينظر فى مغرب الصيف فى اطول ايامه ومغرب الشتاء فى اقصرايامه...... (بقيه حاشيه په راروان مخ...)

شریفې استقبال دواړو طرفونو ته (۳۲درجاتو پورې کافي دې او په دې نوو آلاتو باندې اعتماد کول نه مطلوب دې او نه ممنوع، البته ددې په وجې سره په پخوانو جماتونو کښې شبهات پیدا کول جائز نه دي...(۱) وهوالموفق.

## د رمتوب والا ځائې باندې مونځ کول

**سوال:** علمائې دي دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه دا سې یو مخصوص ځائې چه هلته ګډیدل او سندرې وئیلې کیږي په هغه ځائې کښې د جنازې مونځ کول جائز دې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: منصف دار مقام بولیا توال ضلع اټک......۲۳\رمضان ۱۴۰۸

---

(بقیه حاشیه) فلیدع الثلثین فی الجانب الایمن والثلث فی الایسر والقبلة عند ذلک ولو لم یفعل هکذا وصلی فیما بین المغربین یجوز واذ وقع خارجا منها لا یجوز بالاتفاق، ملخصا وفی منیة المصلی عن امالی الفتاویٰ حد القبلة فی بلادنا یعنی سمر قند بین المغربین مغرب الشتاء ومغرب الصیف فان صلی الی جهة خرجت من المغربین فسدت صلاته.
(ردالمحتار ص ۳۱۴ جلد ۱ مبحث استقبال القبلة)

﴿۱﴾قال العلائی: فتبصر وتعرف بالدلیل وهو فی القریٰ والامصار محاریب الصحابة والتابعین وفی المفاز والبحار النجوم کا لقطب، قال صاحب ردالمحتار تحت (قوله محاریب الصحابة والتابعین) فلا یجوز التحریٰ معها زیلعی بل علینا اتباعهم خانیه ولا یعتمد علی قول الفلکی العالم البصیر الثقة ان فیها انحرافا خلافا للشافعیه فی جمیع ذلک کما بسطه فی الفتاویٰ الخیریة فایاک ان تنظر الی ما یقال ان قبلة اموی دمشق واکثر مساجدها المبنیة علی سمت قبلته فیها بعض انحراف وان اصح قبلة فیها قبلة جامع الحنابله الذی فی سفح الجبل اذ لا شک ان قبلة الاموی من حین فتح الصحابة ومن صلی منهم الیها وکذا من بعدهم اعلم واوثق وادری من فلکی لا ندری هل اصاب ام اخطا بل ذلک یرجح خطاه وکل خیر فی اتباع من سلف...... قال القهستانی ومنهم من بناه علی بعض العلوم الحکمیة الا ان العلامة البخاری قال فی الکشف ان اصحابنا لم یعتبروه...... اقول لم ارفی المتون ما یدل علی عدم اعتبارها (ای دلائل النجوم) ولنا تعلم ما نهتدی به علی القبلة من النجوم وقال تعالیٰ والنجوم لتهتدوا بها علی ان محاریب الدنیا کلها نصبت......(بقیه حاشیه په راروان مخ....)

**الجواب**: دحدیث په بنا باندې په ټوله زمکه مونځ کول جائز دي (۱) سیوا دبعضې خاصو ځایونو نه چه هغه حدیث مستثنیٰ کړیدي(۲) او دا ټپوس والا ځائي په هغې کښې نشته دي.وهوالمفق

## په بس کښې د مونځ حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه که په بس کښې د مونځ د قضا کیدلو خطره وی نومونځ کول جائز دي که نه؟ او قبلې ته مخ کول ضروري دي که نه؟بینوا توجروا

المستفتي: ملک امان الله جامع عثمانیه برهان اټک.......۹۱۲۱ء۱۹۸۹

**الجواب**:د بس او ریل ګاډي حکم یو شان دې په دیکښې مونځ کول جائز دي او قبلې ته مخ کول ضروري دي.(۳) دغه شان چه کله بس ولاړ وي نوپه ناسته منځ کول صحیح نه دي.(۴) وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) بالتحری حتی منی کما نقله فی البحر ولا یخفیٰ ان اقوی الادلة النجوم والظاهر ان الخلاف فی علم اعتبارها انما هو عند وجود المحاریب القدیمة اذ لا یجوز التحری معها کما قدمناه لئلا یلزم تخطئة السلف الصالح وجماهیر المسلمین.
(ردالمحتار مع الدر المختار ص۳۱۷ جلد ۱ قبیل کرامات الاولیاء ثابتة)

﴿۱﴾ عن حذیفة قال قال رسول الله ﷺ فضلنا علی الناس بثلاث جعلت صفوفنا کصفوف الملائکة وجعلت لنا الارض کلها مسجدا وجعلت تربتها لنا طهورا اذا لم نجد الماء رواه مسلم. (مشکواة المصابیح ص ۵۴ جلد ۱ باب التیمم الفصل الاول)

﴿۲﴾ عن ابن عمر قال نهی رسول الله ﷺ ان یصلی فی سبعة مواطن فی المزبلة والمجزرة والمقبرة وقارعة الطریق وفی الحمام وفی معاطن الابل وفوق ظهر بیت الله رواه الترمذی وابن ماجه. (مشکواة المصابیح ص ۷۱ جلد ۱ باب المساجد ومواضع الصلوٰة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: (والمربوطة بلجة البحر ان کان الریح یحرکها شدیدا فکالسائرة والا فکالواقفة) فیلزم استقبال القبلة عند الافتتاح

وقال ابن عابدین رحمه الله: (قوله والا فکالواقفة) ای ان لم تحرکها الریح شدیدا بل یسیرا فحکمها کالواقفة فلا تجوز الصلاة فیها قاعدا مع القدرة ......(بقیه په بله صفحه پاند ې)

(د لیرمخ باقی حاشیه)علی القیام کما فی الامداد(قوله ویلزم استقبال القبلة) ای فی قولهم جمیعا بحر وان عجز عنه یمسک عن الصلاة امداد عن مجمع الروایات ولعله یمسک مالم یخف خروج الوقت لما تقرر من ان قبلة العاجز جهة قدرته وهذا کذلک والافما.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۵٦۳ جلد۱ باب صلاة المریض)

﴿۴﴾ وفی منهاج السنن: واما الصلوٰة فی السفینة اذا کانت سائرة فجائزة بلا کراهة اذا لم یمکن الخروج الی الشط، ومع الکراهة اذا امکن الخروج الیه نعم الصلوٰة قاعدا برکوع وسجود عند العجز عن القیام وعن الخروج الی الشط تجزئ بالاتفاق، وعند القدرة علی القیام وعلی الخروج الی الشط تجزئ عند ابی حنیفة مع الاساءة وعند ابی یوسف ومحمد لا یجزئ ویلزم التوجه الی الکعبة اتفاقا، وتمام الکلام فی البدائع، واما الصلوٰة فی السیارات البریة من القطارات وغیرها فعند الوقوف حکمها کحکم الصلوة علی الارض وعند السیر حکمها کحکم الصلوٰه فی السفینة السائره فمن صلی فیها قاعداً برکوع وسجود اجزءت، ومن صلی فیها بالایماء للزحمة وضیق المحل فالظاهر من النظائر ان یعید الصلوة. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۳۴ جلد۲ باب ماجاء فی الصلوة علی الدابة حیث توجهت به)

# باب صفة الصلوة

## د جدت پسندئ د مرض انجام خراب وي

**سوال:** السلام علیکم ورحمةالله وبرکاته! ځه حنفي اومقلد یم لیکن د رفع الیدین حدیثو نه هم موجود دي اوس ځه با قاعده رفع الیدین کووم نو آیا ددې ثواب یا عذاب شته دې؟ براه کرم د جواب نه مو مستفید کړئ؟
بینوا توجروا

المستفتي: فضل عالم بډه بیره پشاور..... ۱۲\۵\۱۹۷۲ء

**الجواب:** محترم وعلیکم السلام نه پس خبره دا ده چه که ته د شاه ولی الله صاحب پشان محقق او مدقق عالم نه ئې نو بیا ته د جدت پسندئ (نوي رنړا) په مرض کښې اخته ئې. او په داسې مریض باندې په قلاره قلاره په الحاد او زندیقئ کښې د اخته کیدلو سخته خطره وي علماء احناف خوحدیث د حدیث د وجې نه پریږدي او افسوس دې چه ته حنفیت په خپلې رائې سره پریږدې الله کریم دې تا ته د استقامت نعمت درکړي. فقط

## که قبر مخامخ وي نو داسې وخت کښې د مونځ کولو څه حکم دې؟

**سوال:** چه میفرمایند علماء دین دریں مسئله که زمین مقبره که پیش درزمین قبور باشد بلاضرورت نماز درآں جا جائزاست یانه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم......۱۹۷۹ء/۱۱/۲۳

**الجواب:** اگرقبور زیرنظر نه باشد کراهیت نیست، کما فی الهندیه ص ۱۱۳ جلد۱ (مصری) وفی الحاوی وان کانت القبور ماوراء المصلی لا یکره فانه ان کان بینه وبین القبر مقدار ما لو کان فی الصلوٰة ویمر انسان لایکره فههنا ایضا لا یکره کذا فی التتارخانیه،

التهی ﴿۱﴾ قلت وانه قدر ما یقع بصره علی المار لو صلی بخشوع ای راميا ببصره الیٰ موضع سجوده، ردالمحتار ص۵۹۳ جلد ۱ ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د بوټانو سره مونځ کول

**سوال:** علمائي کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه آيا فو جيان د بوټانو سره مونځ کولې شي که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: حوالدار محمدزاهد سي او ايس بي پي اونمبر ۳..۱۷محرم ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** په بوټانو کښې مونځ کول منع نه دي ليکن د بوټانو د پاک او ناپاک پيژندل ډير ګران دي لهذا مونږ ديکښې د مونځ کولو فتویٰ نه شو ورکولې. ﴿۳﴾ فقط

## په هوائي جهاز او موټر د مونځ حکم

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په هوائي جهاز کښې مونځ کول جائز دې که نه؟ او موټر کښې په اشارې سره د مونځ کولو څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي ګل محمد ګلي چشمه کوئټه........ ۲۰\شوال ۱۴۰۴

﴿۱﴾ (هنديه ص۱۰۷ جلد۱ الفصل الثانی فيما يکره فی الصلاة ومالايکره)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۶۹ جلد ۱ مطلب اذا قرأ تعالیٰ جد باب مايفسد الصلاة )

﴿۳﴾ وفی المنهاج: قال مشائخنا اليوم لا يصلی بالنعال فی المسجد لان دخول المساجد متنعلا من سوء الادب فی العرف الحادث ولان تلويث المسجد بها واقع لا محالة ولان علة التنعل قد انتهت لان اليهود والنصاریٰ فی زماننا يصلون فی النعال لا يخلعونها، واعلم ان النعال اذا لم تكن مانعة من توجيه رءوس الاصابع الی القبلة فجاز الصلوٰة فيها والا فلا كما يشير اليه كلام القاری فی المرقاة، فالصلوٰة فی المداس الرائج اليوم لا يجوز اذا كان مقدمه مرتفعا واسعا بحيث لا يمتلأ باصابع القدم فافهم. منهاج السنن شرح جامع السنن ص۲۷۸ جلد۲ باب الصلاة فی النعال)

**الجواب**: (۱) په هوائي جهاز کښې د تندې لګيدل ممکن دي لهذا په هغې کښې دکشتئ سپوږمئ او آسمان پشان مونځ کول جائز دي (۲) په موټر کښې په اشارې سره مونځ کول کافي نه دي او واجب الاعاده دي.﴿۱﴾ وهوالموفق

**دويم الجواب**: په هوائي جهاز کښې ټول ارکان باقاعده ادا کيدې شی لهذا په دې صورت کښې ديکښي دکشتئ پشان مونځ کول صحيح دي.

**فی البدائع ص۱۰۹ جلد۱ وان كانت سائرة فان امكنه الخروج الى الشط يستحب له الخروج اليه لانه يخاف دوران الرأس فی السفينة فيحتاج الى القعود وهو آمن عن الدوران فی الشط فان لم يخرج وصلی فيها قائماً بركوع وسجود اجزأه لما روی الخ﴿۲﴾، ويؤيد صحة الصلوٰة فی السماء قال الله تعالیٰ اوصانی بالصلوٰة والزكوة ما دمت حيا﴿۳﴾ فافهم. وهوالموفق**

## د مونځ وغيره متفرق مسئلې

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) يو جمات کښې يو امام صاحب د قرآن شريف د ختم د پاره ولاړ دې او بل طرفته بغير ختم والا تراويح کيږي ليکن فرض يو ځائې کوی نو آيا دا صورت جائز دې.(۲) چه د يوې دوائي تاريخ ختم شوې وي ليکن د فائدې اميد پکښې وي نو آيا دهغې خرخول صحيح دي؟(۳) که امام د الحمد نه مخکښې يو آيات يا زيات اولولي نو

﴿۱﴾وفی المنهاج: واما الصلاة فی السيارات البرية من القطارات وغيرها فعند الوقوف حكمها كحكم الصلاة على الارض وعند السير حكمها كحكم الصلاة فی السفينة السائرة فمن صلى فيها قاعداً بركوع وسجود اجزءت، ومن صلى فيها بالايماء لنزحمة وضيق المحل فالظاهر من النظائر ان يعيد الصلوٰة. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص۲۲۴ جلد۲ باب الصلاة على الدابة الخ)

﴿۲﴾(بدائع الصنائع ص۱۰۹ جلد۱ فصل فی اركان الصلاة)

﴿۳﴾(سورة مريم پاره: ۱۶ ركوع:۵ آيت:۳۲)

مونځ کښې فرق راځي که نه.(۴) د حافظ قرآن شاته که فاتح د قرآن نه ګوري او فتحه ورکوي نو دا جائز دي؟(۵) که حا فظ قرآن یو ځائې ختم اوکړي بیا په بل ختم شروع کړي نو آیا د مقتدیانو سنت به ختم شي؟(۲) د سحر دوه رکعته سنت داسې ځائي کول چه د امام قرأت اوریدلې کیږي صحیح دي که نه؟ (۷) کوم سړې چه مړ شوې وي د هغه شناختي کارډ په کور کښې ساتل ځائز دي که نه؟ (۸) په تبلیغ کښې چه لاړ شي نو د بریلیانو امامانو پسې مونځ کول صحیح دي که نه؟(۹) د مونځ ګزارو مخې نه تیریدلو د پاره څومره فاصله شرط ده؟ (۱۰) محمد نواز او محمد عیاض نوم کیښودل جائز دي که نه؟ (۱۱)که په جمات کښې چا ته احتلام اوشي نو دا محتلم نر آذان پورې په جمات کښې پاتې کیدلې شي؟ او د جمات په دیوال باندې تیمم جائزدې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي:طاهر یو ناني دوا خانه اقبال مارکیټ مینګوره سوات ۱۹۹۰ء\۲\۱۷

**الجواب**: (۱) جائز دې(۱) (۲) دا صرف قانوني جرم دې. (۳) سجده سهوه واجب ده (۲) (کبري ص۱۲۲) (۴) که دا فاتح د فتح ورکولو په وخت کښې په مونځ کښې شامل نه وو نو دده فتحه اخستل مونځ فاسدوي.(۳) (۵) بغیر د شک اوشبې نه ادا کیږي.(۴) (۲) د فاصل (جداکونکي څیز) په

(۱) قال العلامة ابن عابدين: من صلى العشاء والتراويح والوتر فى منزله ثم ام قوما آخرين فى التراويح ولوى الامامة كره له ذلك ولا يكره للمامومين ولو لم ينوا الامامة وشرع فى الصلاة فاقتدى الناس به لم يكره لواحد منهما.

(ردالمحتار ص۵۲۴ جلد ۱ مطلب فى كراهة الاقتداء فى النفل على سبيل التداعى)

(۲) قال الحلبى: وقد يقال انه بقرأته قبل الفاتحة آخر الفاتحة فقد آخر الواجب.

(غنية المستملى شرح منية المصلى ص ۴۳۱ فصل فى سجود السهو)

(۳) وفى الهنديه: وان فتح غير المصلى على المصلى فاخذ بفتحه تفسد كذا فى منية المصلى.

(فتاوىٰ عالمگيريه ص ۹۹ جلد ۱ الفصل الاول فيما يفسد)

(۴) قال العلامة عبد الحئى: قد روى بعض اهل العلم عن كنز الفتاوىٰ رجل ام قوماً فى التراويح وختم فيها ثم ام قوما آخرين له ثواب الفضيلة ولهم ثواب الختم.

(مجموعة الفتاوىٰ ص ۲۲۴ جلد ۱ كتاب الصلاة)

موجود ګئ کښې سنت کول د پريخودلو نه ښه کار دې(۱) (۷) نه ممنوع دي نه مطلوب دي (۸) بعضې وختونو کښې اعاده ضروري وي. (۹) درې ځلور ګزه. (۲) (۱۰) جائز دي (۱۱) په جمات کښې د جنبي اوسيدل جائز نه دي. (۳) او د جمات ديوال باندې تيمم نا جائز نه دي. وهو الموفق.

## د مونځ په باره کښې د بعضې تپوسونو مختصر جوابونه

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي(۱) د ماښام او ماسخوتن په مونځ کښې که امام درې ايتونو نه پس غلط شو او مقتدی ورته فتحه ورکړه او امام فتحه واخستله نو دې صورت کښې به د چا مونځ فاسد وئ؟ (۲) که د سحر سنت پريخودلې شول نو روستو به ئې کوی که نه؟ (۳) که د سحر مونځ نه يو سړې او ده وي نو د اشراق نه پس په د قضاء نيت کوي که د ادا؟ (۴) د مازيګر مونځ به د غروب افتاب نه پس دقضاء نيت کوې که د ادا نيت سره؟ (۵) که امام په سري مونځ کښې الحمد پورې په ښکاره اووئيل نو سجده سهوه واجب ده که نه؟ (۶) د امام د پاره پټکې (عمامه) تړل صرف په مونځ کښې سنت دي يا هر وخت سنت دې.؟ (۷) د سنتو نه پس اجتماعي دعا بدعت دې که جائز ده؟ (۸) د بريلی امام پسې د ديوبندي عقيدې والا مونځ کول څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي عمر خطاب، محمد حکيم، هاتيان مردان.........۵رمضان ۱۴۱۰

---

(۱) قال ابن الهمام: ومن انتهیٰ الی الامام فی صلاة الفجر وهو لم یصل رکعتی الفجر ان خشی ان تفوته رکعة ویدرک الاخری یصلی رکعتی الفجر عند باب المسجد ثم یدخل لانه امکنه الجمع بین الفضیلتین وان خشی فوتهما دخل مع الامام لان ثواب الجماعة اعظم والوعید بالترک الزم بخلاف سنة الظهر. (فتح القدير ص ۴۱۴ جلد ۱ باب ادراک الفريضة)

(۲) قال العلامة ابن عابدين: انه قدر ما يقع بصره على المار لو صلى بخشوع ای راميا ببصره الی موضع سجود. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۶۹ جلد ۱ باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها)

(۳) قال العلامة الحصكفي: ويحرم الحدث الاكبر دخول المسجد لا مصلى عيد وجنازة ولو للعبور خلافا للشافعی الالضرورة حيث لا يمكنه غيره ولو احتلم فيه ان خرج مسرعا تيمم ندبا. (الدرالمختار ص۱۲۶ جلد ۱ مطلب يوم عرفة افضل من يوم الجمعة كتاب الطهارة)

**الجواب:** (۱) د امام او فاتح دواړو مونځونه صحیح دي (۱) (شامي کبیري) (۲) د نمر ختلو نه پس به ئې کوي د طلوع نه مخکښې مکروه دي. (۲) (شامي) (۳) د نمر په ختلو سره فجر قضا کیږي البته د زوال نه مخکښې قضا کولو په صورت کښې به سنت هم کولې شی (۳) (۴) د غروب نه پس به د قضا نیت کوي. (۵) دومره لږ مقدار معاف دي (۴) (۲) پټکې تړل د ثواب کار دي او بغیر پټکي نه مونځ کول مکروه تحریمي نه دي. (۵) (۷) مستحب ده او د فرضونه روستو جائز ده. (۲) (۸) چه د چا عقیده شرکی وي هغه پسې اقتداء کول باطل ده. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه الحصکفی رحمه الله: بخلاف فتحه علی امامه فانه لا یفسد مطلقا لفاتح وآخذ بکل حال(قوله بکل حال) ای سواء قرأ الامام قدر ما تجوز به الصلاة آم لا انتقل الی آیة اخری ام لا تکرر الفتح ام لا هو الاصح.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۲۰ جلد ۱ باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)

﴿۲﴾﴿۳﴾قال العلامه ابن عابدین: (قوله ولا یقضیها الا بطریق التبعیة) ای لا یقضی سنة الفجر وفاته الفجر الا اذا فاتت مع الفجر فیقضیها تبعا لقضائه لو قبل الزوال واما اذا فاتت وحدها فلا تقضی قبل الطلوع الشمس بالاجماع لکراهة النفل بعد الصبح واما بعد طلوع الشمس فکذلک عندهما وقال محمد احب الی ان یقضیها الی الزوال کما فی الدررقیل هذا قریب من الاتفاق لان قوله احب الی دلیل علی انه لولم یفعل لالوم علیه وقالا لا یقضی وان قضی فلاباس به. (ردالمحتار علی هامش الدرالمختار ص ۵۳۰ جلد ۱ باب ادراک الفریضة)

﴿۴﴾قال ابن عابدین: لان القلیل من الجهر فی موضع المخافتة عفو.

(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۵۴۹ جلد ۱ باب سجود السهو)

﴿۵﴾قال الحلبی: المستحب ان یصلی الرجل فی ثلثة اثواب ازار وقمیص وعمامة ولو صلی فی ثوب واحد متوشحا به جمیع بدنه کما یفعله القصار فی القصرة جاز من غیر کراهة مع تیسر وجود الطاهر الزائد ولکن فیه ترک الاستحباب.

(غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص۳۳۷فصل فی بیان ما الذی یکره فعله فی الصلوٰة)

﴿۶﴾ قال العلامة ابن عابدین: واما ما ورد من الاحادیث فی......(بقیه حاشیه په راروان مخ ...)

## به ناسته مونځ کولو کښې د رکوع طريقه

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څۀ فرمائي لکه څنګه چه په ولاړه باندې رکوع داسې کوې چه ملا دومره نيغه وى که د اوبو ډکه پيالې پرې کيږدې نو اوبه نه غورځيږي نو آيا دغه شان رکوع د ناستې مونځ کښې هم ده. حال دادې چه داخو به د سجدې سره مشابه شي صحيح طريقه څه ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: اكرام الحق غفرله

**الجواب**:صرف انحناء (ټيټيدل) كافي دي د حقيقي او اصل ركوع پشان ملا نيغول نا ممكن دي. (فليراجع الى ردالمحتار ص ۷۱۱ جلد ۱) ﴿۱﴾ فقط

## حنفيان دې امين په قلاره وائي

**سوال**: علمائي دې مسئلې باره كښې څه فرمائي مونږ په (ابوظهبي)كښې فرض مونځ په جماعت سره كوو. نو عربيان د اِمام پسې امين په زوره وائي نو آيا مونږ به هم په زوره وايو؟. او مونږ په قلاره ولې وايو؟ بينوا توجروا.

المستفتي: لته باز خان ابوظبي...... ۱۹۷۴ء۱۰۱۱۰۱

---

**(بقيه حاشيه) الاذكار عقيب الصلاة فلا دلالة فيه على الاتيان بها قبل السنة بل يحمل على الاتيان بها بعدها لان السنة من لواحق الفريضة وتوابعها ومكملاتها فلم تكن اجنبية عنها فما يفعل بعدها يطلق عليه انه عقيب الفريضة.**

**(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۳۹۱ جلد ۱ اداب الصلاة)**

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله ويجعل سجوده اخفض) اشار الى انه يكفيه ادنى الانحناء عن الركوع وانه لا يلزمه تقريب جبهة من الارض باقصى مايمكنه كما بسطه فى البحر عن الزاهدى. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۶۱ جلد ۱ باب صلاة المريض)**

**الجواب**: تاسو په قلاره امین وایئ (۱) او په عربیانو باندې اعتراض مه کوئ. د هغوي مسلک څمونږ نه جدا دې (۲) وهوالموفق

## په رفع الیدین، امین بالجهر وغیره اختلافي مسئلو کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه اختلاف را روان دې

**سوال**: محترم جناب مفتي صاحب څه ددین د محقق په طور دا عرض کووم چه د قیامت په ورځ دالله (ج) مخې ته د پیش کیدلو منظر مخې ته کیږده او په صحیح ترین سند سره جواب راکړه چه د رکوع کولو په وخت کښې رفع الیدین او امین بالجهر وئیلو کښې د کولو د لیلونه زیات قوي دي که د نه کولو والا زیات مضبوط دي؟ بینو وتوجروا

المستفتي: امان الله حلیم میډیکوز یونیورستي ټاون پشاور.....۱۲جون ۱۹۷۵ء

**الجواب**: محترم المقام د امت برکاتکم! وعلیکم السلام نه پس دې دا خبره واضحه وي چه دې مسئلو کښې د صحابه کرامو د زمانې نه اختلاف راروان دې لهذا په دې کښې د الله په نزد د حق تعین کول مشکل بلکه نا ممکن دې. په دیکښې هر مذهب د خپل مذهب والو په نزد حق دې باقي چه کوم سړې د علم تفسیر او علم حدیث نه باقاعده خبر دار نه وي او د یو امام مقلد نه وي هغه د شیطان ښکار کیږي. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ وفی الهندیه: اذا فرغ من الفاتحة قال آمین والسنة فیه الاخفاء کذا فی المحیط.
(فتاوئ عالمگیریه ص۷۴ جلد ۱ الفصل الثالث فی سنن الصلاة وآدابها وکیفیتها)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: اختلفوا فی انه اهل یجهر بها من یؤمن ام یخفیها الثانی مذهب ابی حنیفة واحدقولی مالک، والاول قول الشافعی فی القدیم وقول احمد وقال الشافعی فی الجدید یجهر بها الامام ویخفیها الماموم، والمختار قوله القدیم وقال الحافظ ابن حجر وعلیه الفتوئ وروی عن عمر وعلی وابن مسعود بل الخلفاء الراشدین الاخفاء...... فاستدل الحنفیة بروایة شعبه فقال آمین وخفض بها صوته ویؤیدها قوله تعالیٰ ادعوا ربکم تضرعا وخفیة. لان آمین دعاء وکذا یؤیدها حدیث حفظت من رسول الله ﷺ السکتتین لان المراد من السکتة الاخفاء دون عدم القراءة وکذا یؤیدها آثار الصحابة کما مرت وکذا القیاس علی سائر الاذکار.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۱۲۵، ۱۲۷ جلد۲ باب ماجاء فی التامین)

## د رفع الیدین حدیثونه زمونږ په نزد منسوخ دي

**سوال:** محترم مولانا صاحب د رفع الیدین په باره کښې ستاسو فتوې ځه ډیر په هیرانتیا کښې واچولم ما د ثبوت د پاره د بخاري او مسلم د حدیثونو د پیش کولو وئیلي وو. لیکن تا د تعمیل د پاره شرطونه پیش کړل چه ترڅو پورې د قرآن او حدیث لوئې عالم نه وي یا دیو امام مقلد نه وي او عمل کوي نو د شیطان ښکار کیږي. نو مشرانو! ځه نه عالم دین یم او نه تقلید پیژنم اوس ځه څه اوکړم د بخاري او مسلم د احادیثونه صفا انکار اوکړم.

المستفتي: امان الله حلیم میډیکوز یونیورسټي ټاون پشاور..... ۱۷\۱ جون ۱۹۷۵

**الجواب:** محترم المقام دا مت بر کا تکم، السلام علیکم نه پس خبره داده که تـه با قاعده عالم نه ئې نو دې مسئلو کښې خپل عذر ظاهر کړه اودا چرته مقامي یا غیرمقامي عالم ته اولیږه چه ستاتسلي اوشي. محترم د بخاري او مسلم دا حدیثونه منسوخ دي، (۱) هغې کښې صرف دا ثابت دي چه پیغبر ﷺ رفع الیدین کړې دې دا پکښې نه دي ثا بت چه تر مرګه پورې ئې کړې دي لکه څنګه چه په مونځ کښې ګرځیدل او خبرې کول معمول وو. وهو الموفق

---

(۱) په احا دیثو کښې د رفع الیدین او ترک رفع الیدین دواړو متعلق روایتو نه موجود دي لیکن د ترک رفع الیدین روایتو نه ناسخ دي، په منهاج السنن کښې دي.

**اعلم ان ترک الرفع متواتر عملا کالرفع، والبلاد قاطبة فیها الرافعون وفیها التارکون ما عدا الکوفة فانهم باجمعهم تعاملوا بالترک وکذا بالترک کان تعامل اهل المدینة فی عهد مالک کما ینقله المالکیه ...... فیحمل حدیث ابن عمر علی النسخ ویؤیده ترک الراوی العمل به کما فی روایة الطحاوی، وکذا یؤید النسخ کونه غیر المعمول به فی المدینة المنورة فی عهد مالک وکذا ترک اکابر الصحابة وفقهاء هم مثل عمر وعلی وابن مسعود العمل به (منهاج السنن ص ۱۴۲ جلد۲) ددی نه علاوه دا روایتونه هم د ترک رفع یدین دپاره صریح دلیلونه دی: (۱) عن عقلمة قال قال لنا ابن مسعود الا.... (باقی حاشیه په بل مخ)**

## د ترک رفع الیدین مسئله د مسلم شریف حدیث

**سوال:** محترم ومکرم تاسو حضراتو وئیلي وو چه رفع الیدین منسوخ دي لیکن رفع الیدین کولو والا وائي که چا ئي منسوخ کیدل ثابت کړل نو مونږ به ورته د انعام په طور پنځه سوه روپۍ ورکړو. ما ورته هغه مسلم شریف والا حدیث پیش کړو هغوي مسلم شریف راوړو چه دا منع خود سلام په وخت کښې ده، او بیائې هم دې مسلم شریف کښې د رکوع په وخت کښې د رفع الیدین خو حدیثونه په اثبات کښې پیش کړل. براه مهرباني د منسوخ کیدلو مضبوط دلیل په حوالې سره اولیکئ چه مونږ د اهل حدیث جواب اوکړو؟
بینوا توجروا

المستفتي: امان الله پشاور یونیورستي............۱۹ جولائي ۱۹۷۵ء

**الجواب: الحدیث المسئول رواه جابر بن سمرة رضی الله عنه مرفوعاً ص ۱۸۱ جلد ۱ ﴿۱﴾ وفیه انکار علی رفع الیدین لقوله ﷺ اسکنوا فی الصلوٰة وهو**

---

(بقیه حاشیه)اصلی بکم صلاة رسول الله ﷺ فصلی ولم یرفع یدیه الامرة واحدة مع تکبیر الافتتاح رواه الترمذی وابوداؤد والنسائی وهو حدیث صحیح (اٰثار السنن باب ترک رفع الیدین فی غیر الافتتاح ص۱۰۴)وفی التعلیق قلت صححه ابن حزم وقال الترمذی حدیث ابن مسعود حدیث حسن (باب رفع الیدین عند الرکوع ص۵۹ جلد ۱). (۲) عن براء بن عازب قال ان رسول الله ﷺ کان اذا افتتح الصلوة رفع یدیه الی قریب من اذنیه ثم لا یعود (ابوداؤد ص ۱۰۹ جلد ۱). (۳)عن عبد الله بن عمر قال: رأیت رسول الله ﷺ اذا افتتح الصلوٰة رفع یدیه حذو منکبیه واذا اراد ان یرکع وبعد ما یرفع رأسه من الرکوع فلا یرفع ولا بین السجدتین (مسند حمیدی ص۲۷۷ جلد۲ احادیث عبد الله بن عمر رقم: ۶۱۴)

﴿۱﴾ عن جابر بن سمرة قال خرج علینا رسول الله ﷺ فقال مالی اراکم رافعی ایدیکم کانها اذناب خیل شمس اسکنوا فی الصلوٰة قال ثم خرج علینا فرانا حلقا فقال مالی اراکم عزین قال ثم خرج علینا فقال الا تصفون کما تصف الملائکة عند ربها فقلنا یارسول الله وکیف تصف الملائکة عند ربها قال یتمون الصفوف الاول ویتراصون فی الصف. (الصحیح المسلم ص ۱۸۱ جلد ۱ باب الامر بسکون فی الصلاة)

**لا يصدق على وقت السلام لان السلام محلل ومخرج عن الصلوة ﴿۱﴾. وهو الموفق**

## په مونځ کښې عدم رفع اليدين او تقليد فيصله شوې مسئلې دي

**سوال:** د رفع اليدين متعلق بخاري شريف ص ۴۲۸ کښې د ابن عمر رضي الله عنهما روايت مسلم شريف کښې ابو قلابه او جابر بن سمره، او په بيهقي کښې دي چه خلفائي راشدينو به رفع اليدين کول. دغه شان فاتحه خلف الامام هم ثابت ده بخاري شريف ص ۴۸۰ ترمذي ص ۱۰۵. ددې به څه جواب ورکوو دغه شان د تقليد شخصي وضاحت هم اوکړئ؟ بينوا توجروا

المستفتي حكيم الله، محمد يوسف مسكين پور شريف مظفر ګړهـ.۱۹۷۵ء/۱/۱۸

**الجواب:** محترم المقام! دا فيصله شوې مسئلې دي ددې په هر پهلو باندې علماؤ بحث کړې دې، ته عينی او معارف السنن ته رجوع اوکړه او تسلي حاصله کړه. البته د تقليد شخصي متعلق دې دا خبره واضحه وي چه الله(ج) په قران کښې د هغه تقليد انکار کړې چه د امام او مقلد سره هدايت او عقل نه وي يعني نه ورسره عقلي دليل وي او نه ورسره نقلي دليل وي.(حيث قال اولوكان آباءهم لا يعقلون شيئاً ولا يهتدون) ﴿۲﴾

خالص په تقليد شخصي باندې ئې انکار نه دې کړې لهذا هغه تقليد شخصي به منکر نه وي چه د امام سره ئې عقلي يا نقلي دليل موجود وي. دغه شان (فاسئلوا اهل الذكر ان كنتم لاتعلمون) ﴿۳﴾ ايت هم دې او قرآن مطلق دې يعني په هره حادثه کښې يو اهل ذکرته رجوع کوئ او جدا جدا اهل ذکر ته رجوع کول

---

﴿۱﴾وفي المنهاج: ومنها ما رواه مسلم وغيره عن جابر بن سمرة قال خرج علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم ونحن رافعوا ايدينا في الصلاة فقال ما لي اراكم رافعي ايديكم كانها اذناب خيل شمس واللفظ للنسائي وسياق هذا الحديث مغاير عن سياق الحديث الذي انكر فيه على من رفع ايديهم عند السلام كما لا يخفىٰ على من راجع الى نصب الرايه وتعليقاته.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۴۰ جلد۲ باب رفع اليدين عند الركوع)

﴿۲﴾ (سورة البقرة پاره: ۲ ركوع ۵ آيت: ۱۷۰)

﴿۳﴾ (سورة النحل پاره: ۱۴ ركوع: ۱۲ آيت: ۴۳)

د دوارو جائز کول دي.(والاول هوالتقلید الشخصی) دغه شان تقلید شخصي په خیرالقرون کښې بغیر د څه انکار نه موجود شوې دې نودا به سنت وي بد عت به نه وي.(لان الائمة الاربعة کانوا ائمة فی حیاتهم فافهم ولاتعجل) دغه شان حدیث (علیکم بالسواد الاعظم) ﴿۱﴾ هم د تقلید شخصي د افضلیت مؤید دې ځکه چه په هره زمانه کښې د خواصو سواد اعظم تقلید کړې شوې دې.

**کما لا یخفیٰ علی من راجع الی تاریخ المحدثین والشارحین للحدیث والفقهاء واصحاب الطریقة من الشیوخ، واما غیر المقلدین فانهم یقلدون (فی الحقیقة) الائمة شر القرون ویذرون ائمة خیر القرون تلک اذاً قسمةٌ ضیزیٰ. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾ عن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ اتبعوا لسواد الاعظم فانه من شذ شذ فی النار رواه ابن ماجه من حدیث انس.**

**(مشکواة المصابیح ص ۳۰ جلد ۱ باب الاعتصام بالکتاب والسنة کتاب الایمان)**

# باب واجبات الصلوة

## په روان ریل گاډي کښې په ناسته مونځ کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو سړې په ریل گاډي کښې سفر کوي او د مونځ وخت شو نو اوس دا سړې په ناسته مونځ کولې شي؟ یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: گل محمد بلوچستان............۲۱\۷\۱۹۸۶

**الجواب:** په ریل گاډي کښې په ناسته مونځ کول جائز دي اگر که روان وي او سړې د ولاړې نه معذو وي البته قبلې ته مخ کول ضروري دي. (هندیه ص ۱۵۲ جلد ۲) ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په تکبیر تحریمه کښې کوم څیز فرض یا واجب دې؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په تکبیر تحریمه کښې کوم څیز فرض او څه واجب او سنت دي د فتاوی عالمگیري د اشاعت

---

**﴿۱﴾ قال في الهنديه: ومن اراد ان يصلي في سفينة تطوعا او فريضة فعليه ان يستقبل القبلة ولايجوز له ان يصلي حيثما كان وجهه كذا في الخلاصة.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ص ۶۳،۶۴ جلد ۱ الفصل الثالث في استقبال القبلة)**

**وفي منهاج السنن: واما الصلوٰة في السيارات البرية من القطارات وغيرها فعند الوقوف حكمها كحكم الصلوٰة على الارض وعند السير حكمها كحكم الصلوٰة في السفينة السائرة فمن صلىٰ فيها قاعداً بركوع وسجود اجزات ، ومن صلى فيها بالايماء للزحمة وضيق المحل فالظاهر من التطائر ان يعيد الصلوٰة ،واما الصلوٰة في الطيارات فلعل حكمها كحكم الصلوٰة في السفينة السائرة.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۳۴ جلد۲ باب الصلوٰة على الدابة حيث ما توجهت به)**

د پاره د با حواله د جواب ضرورت دې. ځکه چه عالمګیري کښې د مونځ په واجباتو کښې د تکبیر تحریمه په باره کښې هیڅ څیز نه دې ذکر شوي.
بینوا توجروا

المستفتي: محمدصادق ناظم مجلس منتظمه اشاعت فتاوی هندیه سهګل جهلم

**الجواب**: تکبیر تحریمه شرط او فرض دې (درمختار باب صفة الصلوة) (۱) او خاص طورسره الله اکبر وئیل واجب یا سنت دي. (الدرالمختارمع ردالمحتار ص۴۴۷ جلد ۱) (۲) فقط

## د ماسخوتن په څلورو رکعتونو کښې قصداً یا سهواً جهر کول

**سوال**: علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو امام د ماسخوتن په څلور واړو رکعتونو کښې قرأت بالجهر اوکړو اوسجده سهوه ئې او نه کړه. ددې مونځ څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: نا معلوم.........

**الجواب**: د ماسخو تن په اخرني دوه رکعتو نو کښې په پټه قرأت کول واجب دي. لهذا ددې واجب په پریخودلو سره به سجده سهوه واجب وي خودا هله چه داسې پریخودل سهواً وي ګني بیا اعاده واجب ده.

**قال فی شرح التنویر والجهرفیما یخافت فیه الامام هامش ردالمحتار ص ۶۹۴ جلدا (۳) والاسرار یجب علی الامام والمنفرد مما یسر فیه وهو صلوٰة الظهر والعصر والثالثة من المغرب والاخریان من العشاء ردالمحتار ص۴۳۷ جلدا (۴) وهو الموفق**

(۱) قال العلامه الحصکفی: من فرائضها التحریمة وهی شرط.
(الدارالمختار علی هامش ردالمحتار ص۳۲۶ جلد ۱ باب صفة الصلوٰة)

(۲) قال العلامة الحصکفي: واذا اراد الشروع فی الصلاة کبر لو قادرا للافتتاح ای قال وجوبا الله اکبر قال ابن عابدین واجیب بانه یفید السنیة اوالوجوب. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۳۵۴ جلد ۱ فصل فی بیان تالیف الصلوٰة الی انتهائها باب صفة الصلوٰة)

(۳) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۴۸ جلد ۱ باب سجود السهو)

(۴) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۳۴۶ جلد ۱ باب صفة الصلاة)

## په مونځ کښې په الفاظو باندې ژبه خوزول ضروري دي

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي (۱) که يو مونځ گزار الحمد شريف، تشهد، درود شريف، اودُعا په سوچ سره اود معنی په پوهيدلو سره په بندو شونډو سره زړه کښې الفاظ ادا کوي. نوآيا قرات وغيره په زړه کښې کولو سره مونځ کيږي؟ (۲) که په زړه کښې لوستلو سره مونځ نه ادا کيږي نو هغه کومه طريقه ده چه په بندو شونډو سره په ژبې باندې الفاظ ادا کړي. نن صبا ۹۹٪ فيصده مونځ گذار دا سې معلوميږي چه د هغوي شونډې نه خوزيږي که چرته داسې څه طريقه وي نو د قرآن او سنت مطابق اوليکئ راوليږئ چه ځه هم په اسانئ سره مونځ ادا کړم؟ بينوا توجروا

المستفتي: نورمحمد بوهړ بازار راوالپنډي.........يکم جون ۱۹۷۰ء

**الجواب**: دا تدبر او تفکر دې په دې سره ذمه نه فارغيږي د ذمه وارئ نه اوزگاريدلو د پاره په ژبه وئيل ضروري دی.

**وفی الهداية ص ۹۸ ثم المخافة ان يسمع نفسه والجهر ان يسمع غيره وهذا عند الفقيه ابی جعفر الهندوانی ، وقال الکرخی ادنی الجهر ان يسمع نفسه وادنی المخافة تصحيح الحروف لان القرأة فعل اللسان وعلی هذا الاصل کل ما يتعلق بالنطق ﴿۱﴾.**

(۲) دگونگي نه علاوه بل چا دپاره دا گنجائش نشته دې. ته تکليف بر داشت کړه او تلفظ اوکړه الله (ج) به تا ته دوه چنده اجر درکړي (لحديث ورد بذالک) ﴿۲﴾ او ته چه څنگه خبرې کوې او تکليف برداشت کوی نو دغه شان په مونځ کښې هم تکليف بر اداشت کوه. فقط

---

**﴿۱﴾ (هدايه ص ۱۰۶، ۱۰۷ جلد ۱ کتاب الصلوٰة فصل فی القرأة)**

**﴿۲﴾ عن عائشة قالت قال رسول الله ﷺ الماهر بالقرآن مع السفرة الکرام البررة والذی يقرأ القرآن ويتتعتع فيه وهو عليه شاق له اجران متفق عليه.**

**(مشکواة المصابيح ص ۱۸۴ جلد ۱ باب فضائل القرآن)**

## د مونځ الفا ظ په فکر سره نه بلکه په تلفظ سره ادا کول لازمي دي

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په جماعت سره مونځ کولو وخت کښې کله تشهد درود شریف او دعا کول وي نو په ژبې سر. ځما د ژبې نه په صحیح طریقې سره الفاظ نه ادا کیږي بلکه په زړه کښې ښه سوچ سره په معنٰی باندې پوهیدوسره وائم نو آیا په دې سره مونځ کیږي؟ که نه کیږي نو (باقی څه آواز بیا اوځي چه د هغې په وجې سره د نزدې.مونځ ګزارو په مونځ کښې خلل راځي اوکه آواز نه اوباسم نو آواز په ژبه راځي لیکن پته نه لګي چه په ژبې سره ادا شول که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي : نور محمد بوهړ بازار راولپنډي...مئ ۱۹۷۰ء

**الجواب:** د تشهد وئیل واجب دي لهذا ستا د پاره ضروري ده چه ته به په تفکر او تد بر (سوچ) کولو باندې اِکتفا نه کوې بلکه دخپل وَس اوطا قت موافق به تلفظ کوې که ته خپل الفاظ نه اورې لیکن دا یقین حاصل وي چې ماپه ژبې سره خروف صحیح ادا کړی نو دا هم کافي ده.(۱) فقط

## په بس (لارئ) کښې بغیر قبلې نه د ادا شوي مونځ اعاده واجب ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه کله د سفر دوران کښې ډرائیور د مونځ د پاره ګاډې نه اودروي نو بغیر د قبلې د مخ کولو نه په اشارې سره مونځ جائز دي که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتي : مولوي عبدالله مدرس عربي هائي سکول لتمبر ضلع کرک...۱۹۷۲ء\۱۱\۲۲

(۱) قال العلامة الحصکفی: (و) ادنی الجهر اسماع غیره و ادنیٰ المخافتة اسماع نفسه، قال ابن عابدین: اعلم انهم اختلفوا فی حد وجود القرأة علی ثلاثة اقوال فشرط الهندوانی و الفضلی لوجودها خروج صوت یصل الی اذنه وبه قال الشافعی وشرط بشر المریسی واحمد خروج الصوت من الفم وان لم یصل الی اذنه لکن بشرط کونه مسموعا فی الجملة حتی لو ادنیٰ احد صماخه الی فیه یسمع ولم یشترط الکرخی و ابوبکر البلخی السماع و اکتفیا بتصحیح الحروف. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۳۹۴ جلد ۱ فصل فی القرأة)

**الجواب**: په غیر جاندار سورلئ کښې قبلې ته مخ کول ضروري دي، (في الدار المختار علی هامش ردالمحتار ص۷۱۴ جلد۱)**(۱)** اوکه د وخت د تنګئ په وجه بغير د قبلې نه مونځ ادا کړې شو نو روستو به واجب الاعاده وي. (بالاصل المذکور فی البحر ص۱۴۹جلد۱) وهوالموفق

## د مونځ متعلق د مختلفو سوالونو جوابونه

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه! (۱) د ناستې په مونځ کښې به د رکوع په وخت کښې لاس چرته کيښودې کيږي؟ (۲) آيا منفرد به په سجده سهوه کښې دواړو طرفونو ته سلام ګرځوي؟ (۳) د مابنام په دريم يا د ماسخو تن مازيګر په څلورم رکعت کښې چه سړې شريک شي نو اوس به د امام د فراغت نه پس د يو رکعت نه پس قاعده کوي که دوه رکعتو نه پس؟ (۴) د طلاق مغلظ ورکولونه پس چه کوم سړې دغه ښځه د خان سره ساتي دې سړي ته به د مونځ کولو اجازت ورکولې کيږي يا منع کولې به شي. ؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالرحمٰن وانده شهاب خيل لکی مروت... ۱۹۷۲ء۲۵\۱۲

**الجواب**: (۱) که ګرانه نه وي نو په زنګو نانو باندې به لاس کيښودل افضل وي (ما خوذ از شامی) **(۲)** (۲) سلام به يو طرف ته (ښي طرفته) ګرځوي په

**﴿۱﴾** قال العلامة الحصكفی: والمربوطة بلجة البحر ان كان الريح يحر كها شديدا فكالسائرة والافكالواقفة ويلزم استقبال القبلة عند الافتتاح وكلما دارت (قوله ويلزم استقبال القبلة) ای فی قولهم جميعا بحر وان عجز عنه يمسک عن الصلاة امداد عن مجمع الروايات ولعله يمسک مالم يخف خروج الوقت لما تقرر من ان قبلة العاجز جهة قدرته وهذا كذلک والا فما الفرق فليتأمل وانما لزمه الاستقبال لانها فی حقه كالبيت حتی لا يتطوع فيها مومئا مع القدرة على الركوع والسجود بخلاف راكب الدابة. (ردالمحتارهامش الدرالمختار ص۵۶۳ جلد ۱ مطلب فی الصلاة فی السفينة باب صلاة المريض)

**﴿۲﴾** قال ابن عابدين: (قوله ان يبلغ الركوع) ای يبلغ اقل الركوع بحيث تنال يداه ركبتيه وعبارته فی الخزائن عن القنية الی ان يصير اقرب الی الركوع:
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۳۲۸ جلد ۱ قبيل مبحث القرأة)

د یکنبې د امام او منفرد څه فرق نشته البته دواړه طرفته سلام ګرځول مونځ نه فا سدوي. خلا فا للبعض (شامي) ﴿۱﴾ (۳) د مفتی به قول مطابق به دیو رکعت نه پس قعده کوي. (شامي) ﴿۲﴾ (۴) داسې ګناه ګار سړې د جمع د مونځ یا جمات نه منع کول حرام دي. (القرآن) ﴿۳﴾ وهوالموفق

## د سورلئ او پیاده مزل په حالت کښې د مونځ حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په سورلئ یا پیدل تلو په حالت کښې د مونځ څه حکم دې؟ او د دې آیت به څه مطلب وي (وان خفتم فرجالاً او رکباناً...الایه) بینوا توجروا

المستفتي : محمد امین........۱۹۷۴ء\۴\۲

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: (یجب بعد سلام واحد عن یمینه فقط) لانه المعهود وبه یحصل التحلیل وهو الاصح بحر عن المجتبیٰ وعلیه لو اتی بتسلیمتین سقط عنه السجود.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۴۶،۵۴۵ جلد ۱ باب سجود السهو)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویقضی اول صلاته فی حق قرأة وآخرها فی حق تشهد فمدرک رکعة من غیر فجر یاتی برکعتین بفاتحة وسورة وتشهد بینهما وبرابعة الرباعی بفاتحة فقط ولا یقعد قبلها . قال ابن عابدین: (قوله ویقضی اول صلاته فی حق قرأة) هذا قول محمد کما فی مبسوط السرخسی وعلیه اقتصر فی الخلاصه وصرح الطحاوی والاسبجابی والفتح والدرر والبحر وغیرهم وذکر الخلاف کذلک فی السراج لکن فی صلاة الجلابی ان هذا قولهما وتمامه فی شرح الشیخ اسمعیل وفی الفیض عن المستصفیٰ لو ادرکه فی رکعة الرباعی یقضی رکعتین بفاتحة وسورة ثم یتشهد ثم یأتی بالثالثة بفاتحة خاصة عند ابی حنیفة وقالا رکعة وسورة وتشهد ثم رکعتین اولا هما بفاتحة وسورة وثانیتهما بفاتحة خاصة. وظاهر کلامهم اعتماد قول محمد (قوله وتشهد بینهما) قال فی شرح المنیة ولولم یقعد جاز استحسانا لا قیاسا ولا یلزمه سجود السهو لکون الرکعة اولی من وجه.
(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۴۴۱ جلد ۱ قبیل باب الاستخلاف)

﴿۳﴾ قال الله وتعالیٰ: ومن اظلم ممن منع مساجد الله ان یذکر فیها اسمه وسعی فی خرابها.
(سورة البقرة پاره: ۱ رکوع: ۱۴ آیت: ۱۱۴

**الجواب:** اعلم ان الراجل هو القائم علی الرجلین سواء کان ماشیاً او لا کما ان الراکب هو الواقف علی المرکب سواء کان ذاهبا اولا. لکن الفقهاء الکرام اتفقوا علی کون العمل الکثیر مفسداً کما صرحوا به والمشی المتابع عمل کثیر فیکون مفسداً وهو مقتضی الاحتیاط، فافهم نعم لو ورد مشاة اورکبانا لقدم النص علی الاصل لتقدیم المحتمل علی الاصل خلاف الاحتیاط، وکذا الراکب هو الساکن وانما الماشی هو المرکب فالتقابل ایضا یقتضی الاحتیاط﴿۱﴾. وهوالموفق

## د دواړوسجدو مینځ کښې جلسه نه کول د مونځ د راګرځولو سبب دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي که څوک سړې د دوو سجدو په مینځ کښې جلسه نه کوي یعني صرف اشاره کوي نو آیا دا مونځ کیږي؟بینوا توجروا

المستفتي: مسعود صدیقي محله موچي پوره کابلي ګیټ پشاور... ۱۹۹۱

**الجواب:** کله چه جلسه د (سبحان الله) وئیلو مقدار نه کمه وي نو مونځ واجب الاعاده دي. (۲) وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: فلایجوز علی الدابة بلا عذر لعدم الحرج کما فی البحر (قوله راکبا) فلاتجوز صلاة الماشی بالاجماع بحر عن المجتبیٰ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۵۱۶ جلد۱ مطلب فی الصلاة علی الدابة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وتعدیل الارکان ای تسکین الجوارح قدر تسبیحة فی الرکوع والسجود وکذا فی الرفع منهما علی مااختاره الکمال. قال ابن عابدین: لو ترکها او شیئا منها ساهیا یلزمه السهو ولو عمدا یکره اشد الکراهة ویلزمه ان یعید الصلاة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۳۴۲ جلد۱ باب صفة الصلاة)

# باب سُنن الصلوة

## د فرض مونځ نه پس اوږده دُعا کول يا د اللهم انت السلام د مقدارحکم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د مونځ نه پس د امام يا مقتدي په ناسته باندې د اوږدې دُعا څه حکم دې؟ او حال دا چه په روايتونو کښې خو صرف د اللهم انت السلام مقدار راغلې دې.آيا ددې نه زياته ناسته جائز نه ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم.....۱۹۷۴ء\۴\۱۲

**الجواب:** د فرض مونځ نه پس د ذکر مقدار د فقهائې کرامو د تصريح مطابق د (اللهم انت السلام په مقدار يا څه کم وزيات دې.

**کما فی ردالمحتار ص ۴۹۵ جلد ۱ وقول عائشة رضی الله عنها بمقدار لا يفيد انه کان يقول ذلک بعينه بل کان يقعد بقدر ما يسعه ونحوه من القول تقريباً فلا ينا فی ما فی الصحيحين من انه ﷺ کان يقول فی دبر کل صلوٰة مکتوبة لا اله الا الله الخ(۱). وهوالموفق**

## په تشهد کښې اشاره او د فقهائې کرامو اقوال

**سوال:** علمائې کرامو دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په تشهد کښې اشاره سنت ده که نه؟ دغه رنګې مجدد الف ثاني رحمه الله په خپلو مکتوباتو کښې دا حرام ليکلې.اودغه شان په جامع الرموز، خلاصة الفتاوی، فتاوی ظهيريه،فتاوی هنديه کښې هم دي.چه (والمختارانه لايشير والاکثرون لايرون الاشارة) تحقيقي جواب اوليکئ او تسلي اوکړئ؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالرحمان مدرسة الحسينيه شهداد پور سانګهړ.....۱۹۷۵ء\۱۲\۹

---

**(۱) ( ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۹۱ جلد ۱ قبيل فصل فی القراءة)**

**الجواب**: متاخرین علمائي کرام د اشارې دحلال والي او حراموالي په باره کښې مختلف دي. ډېر علماء ورته جائز او سنت وائي او ډېر ورته نا جائز او مکروه وائي د هغې نه مجدد الف ثاني رحمه الله هم شمار کړې شویدې. البته راجح جواز او سنت کیدل معلومیږي ځکه چه د فعلي او قولي مرفوع حدیثونو نه فعل معلومیږي انکار نه معلومیږي نو نسخ به څنګه صحیح شي.

**واما حدیث اسکتوا فی الصلوٰۃ ففیه انکار علی رفع الیدین فی الصلاۃ او عند السلام کما لا یخفیٰ علی من راجع الی مسلم ولیس فیه انکار علی الاشارۃ، والنسخ لا یثبت بالرائ والقیاس وما قیل ان احادیث الاشارۃ مضطربة فیقال بالمنع ثم بالتوسع کما فی الرفع عند التحریمة علی ان الضعیف یثبت به الاستحباب وماقیل ان البخاری لم یروها فیقال الحجه هو الحدیث دون البخاری فقط کما یقال فی مسئلة رفع الیدین، وقد صرحوا ان عدم کون الحدیث علی شرط البخاری لا یقتضی عدم الصحة فلیراجع،**

دغه رنګې څمونږ متقدمین امامانو نه په ظاهرالروایت کښې د اشارې متعلق نه نفی شته او نه اثبات او په نادرالروایة کښې اثبات موجود دي.

**کما فی الموطا للامام محمد واما لی ابی یوسف رحمهما الله تعالیٰ، وفی البحر ان المصیر الیٰ نادرالروایة واجب عند علم الظاهر، فما قالوا ان ظاهر الروایة هی عدم الاشارۃ فقد ضلوا واضلوا افهم ، لم یفرقوا بین عدم الروایة وروایة العدم،**

او دغه رنګې چه په متا خرین علماؤ کښې چا اشارې ته ترجیح ورکړې هغه علماء کرام په جامع بین الفقه والحدیث کښې محققین دي.

**بخلاف ما قال بعد مها هی ان قولهم مخالف عن الروایة والدرایة کما فی فتح القدیر واما ما نسب الی الامام الربانی فقال شیخنا ومرشدنا مولانا محمد عبد المالک الصدیقی المجددی قدس سره ان هذا المکتوب موضوع نسبه الی شیخه ، فقال البعض انه لم یبلغه الاحادیث وفیه مافیه، وقیل تحقیقه مخالف عن تحقیق اهل الفنّ وما قالوا انها ما ذکرت فی ظاهر الروایة فلم یمیزوا بین عدم الروایة و روایة العدم، وما قالوا انها لم یذکرها صاحب الهدایة قلنا قد ذکرها فی مختارات النوازل ولم یذکرها فی الهدایه لعدم ذکرها فی القدوری وجامع الصغیر وغیره، وماقالوا ان المسنون هو**

افتراش الاصابع الی القبلة، قلنا نعم ذلک مسنون فی اول الوضع خلافا للشوافع فانهم یحلقون الکف من اول الوضع فافهم وتدبر. وهوالموفق

## په تشهد کښې د اشارې حکم د خلاصه کیدانی والا د عبارت وضاحت

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د تشهد په حالت کښې د شهادت ګوته اوچتول ددې اثبات د احنافو په بعضې کتابونو کښې شته اوبعضې د نفی قول کوی. په فتاوی ودودیه (پښتو) کښې ئې دا دمونځ د سنتونه ګرځولې او د خلاصه کیدانی په پنځم باب کښې ئې ,,اشاره بالسبابة کاهل الحدیث،، د محرماتو په بیان کښې ذکرکړې. نو ددې په باره کښې راجح قول څۀ دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: هدایت الله نعیم کندی اکازی تهکال پشاور.... ۱۹۷۴ء۱۹۱۹

**الجواب**: محترم المقام دامت برکاتکم: د اسلام علیکم نه پس دې دا خبره واضحه وی چه راجح اومحقق قول دادې چه اشاره سنت او محکم ده.

لانه ثبت فی الاحادیث المرفوعة فعلها وترغیبها وتقریرها وکذا ثبت فی الاثار فعل الصحابة بعد وفاته ﷺ ولم یرو عن ابی حنیفة رحمه الله فی الظاهر الروایة شئ من النفی او الاثبات وهی ساکتة، نعم فی غیر الظاهر ثبت اثباتها کما فی الموطأ وامالی ابی یوسف وقال صاحب البحر اذا لم یثبت الحکم فی الظاهر فوجب المصیر الی غیر الظاهر، نعم اختلف المتاخرون یعنی علمائنا فقال البعض بانها منسوخة فیکون العمل بها حراما وقال بعض الحنفیة وکذا الشوافع والموالک والحنابلة واهل الحدیث بعلم النسخ وهو الراجح کما حقق فی مقامه،

خلاصه داچه د تجقیق موافق اشاره سنت او محکم ده او خلاصي والا وغیره په نزد حرام او منسوخ ده او ده او په خلاصه کښې د اهلِ حدیث ذکر د مثال په طور باندې دې ځکه چه زمونږ محققین احناف علماء هم د اهل حدیثو سره شریک دي. وهو الموفق

## د (اللهم انت السلام) په وخت کښې لاس اوچتول

**سوال:** د فرض مونځ نه پس د اللهم انت السلام...الخ وئیلو په وخت کښې به لاسونه اوچتوو که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: ګل فراز نوشهره.......محرم الحرام ۱۳۹۵

**الجواب:** يرفع الايدى عند زيادة الكلمات الدعائيه وعند عدم الزيادة لم يثبت الرفع وكذا لا يقتضيه الاصل ﴿۱﴾ الا ان يقال ان الثناء على الكريم دعاء ﴿۲﴾ . وهو الموفق

## د پټکې د مسنون کېدلو حکم د زمانې په بدلېدو سره نه بدلیږي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه کوم ځائې د پټکي استعمال نه وي نو هغه ځائې کښې په پټکي سره مونځ کول جائز

﴿۱﴾ وفى المنهاج : اعلم انه لم يثبت مواظبة النبى ﷺ على ذكر خاص وكذا لم يثبت عند رفع الايدى عند مثل هذه الاذكار ، واما رفع الايدى عند الدعوات خارج الصلوٰة فقد ثبت باحاديث كثيرة قولية وفعلية فى الامهات الست وغيرها منها ما اخرجه ابن ابى حاتم وذكره الحافظ ابن كثير فى تفسيره ص ۱۷۲ جلد ۳ عن ابى هريره ان رسول الله ﷺ رفع يديه بعد ما سلم وهو مستقبل القبلة فقال اللهم اخلص الوليد بن الوليد الى آخر الدعاء الخ.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۷۱ جلد ۲ باب مايقول اذا سلم)

﴿۲﴾ قال العلامه سيد احمد الطحطاوى: قوله والدعاء هذا لا ينا فى الاتيان باللهم انت السلام الخ لانه ليس دعاء بل ثناء الا ان يراد بالدعاء ما يعم الذكر او هو بالنظر الى قوله فحينا الخ دعاء على ماقبله. (الطحطاوى شرح مراقى الفلاح ص ۳۱۳ فصل فى صفة الاذكار)

دي که نه؟ او دا خبره په کوم کتاب کښې لیکلې شویده چه کوم ځائې کښې د پټکې استعمال نه وي هلته په پټکي سره مونځ کول مکروه تحریمي دي. دکتاب حواله اولیکئ ډیره مننه به وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد نثار برطانیه..۱۹محرم۱۹۹۵

**الجواب**: مسنون عمل به ترقیامته پورې مسنون وي د معاشرې په انقلاباتو سره په سنتو کښې انقلاب نه راځي. (کمافی تنقیح الفتاوی ص۳ جلد۱) (۱) وهوالموفق

## د غیر مقلدینو رفع الیدین کول ځمونږ د تحقیق مطابق غلط دي. او هغوي د (ایها النبي) په ځائې علي النبي وئیل د احتیاط خلاف دي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) چه ځمونږ یو ملګرې (رفع الیدین) کوي او نورکسانو ته هم ددې ترغیب کوي نو آیا ده دپاره داسې کول او نورو ته ترغیب کول جائز دي؟ (۲) او دغه شان ځمونږ دا ملګرې په تشهد کښې ذ السلام علیک ایهاالنبی په ځائې باندې علی النبی وائي او دیته هم ترغیب ورکوي نوآیا داسې کول جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: ایم نثار محمد کوثر پړانګ چارسده.......۱۹۲۹ء۵\۵

**الجواب**: (۱) داسړې څۀ غیر مقلد شان معلومیږي لهذا دې ځمونږ د تحقیق په بنا باندې په غلطئ دي. (۲)

---

(۱) قال العلامه محمد امین ابن عابدین: وفی القنیه لیس للمفتي ولا للقاضی ان یحکما علی ظاهر الملهب ویترکا العرف...... واصلهاقوله علیه الصلاة والسلام ما رآه المسلمون حسناً فهو عند الله حسن (اقول) لکن صرحوا بان العرف المخالف للنص لا یعتبر بانه لایصح بیع الشرب مقصودا وان تعورف. (تنقیح الفتاویٰ الحامدیه ص۳ جلد ۱ قبیل کتاب الطهارة (مقدمه))

(۲) قال العلامه ابن عابدین: الدلیل الشرعی اقتضی العمل بقول المجتهد وتقلیده فیه فیما احتاج الیه وهو فاسئلوا اهل الذکر والسوال انما یتحقق عند طلب.....(بقیه حاشیه په راروان مخ....)

## د فاتحې او سورت په مېنځ کښې بسم الله وئيل

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د سورت نه مخکښې دامام دپاره هم په قلاره باندې بسم الله وئيل مستحب دې که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: اکرام الحق راوالپنډي..... ۱۳۱۱۱۹۷۲

**الجواب:** د فاتحې او سورت په مېنځ کښې بسم الله وئيل جائز غير مکروه (حسن) دي. (الدرالمختار ص۴۵۸ جلد ۱) **(۲)** وهو الموفق

## بغير پټکي نه د مونځ کولو حکم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بغير د پټکي نه د مونځ کولو څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: شفيق الرحمان مندنی چارسده........... ۱۲۱۱۰۱۱۹۸۲

---

(بقيه حاشيه) حکم الحادثة المعينة فاذا ثبت عنده قول المجتهد وجب عمله به واما التزامه فلم يثبت من السمع اعتباره ملزما الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۰۹ جلد۳ مطلب فيما اذا رتحل الى غير مذهبه باب التعزير)

﴿۱﴾قال العلامه الحصكفي: ويقصد بالفاظ التشهد معانيها مرادة له على وجه الانشاء كانه يحي الله تعالیٰ ويسلم على نبيه وعلى نفسه واولياء ه لا الاخبار عن ذلک قال ابن عابدين: ای لا يقصد الاخبار والحكاية عما وقع فی المعراج منه ﷺ ومن ربه سبحانه ومن الملائكة عليهم السلام.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۳۷۷ جلد ۱ قبيل مطلب فی جواز الترحم علی النبی ابتداء)

﴿۲﴾قال العلامه ابن عابدين: (قوله و لا تكره اتفاقا) ولهذا صرح فی الذخيرة والمجتبیٰ بانه ان سمی بين الفاتحة والسورة المقروء ة سرا او جهرا كان حسنا عند ابی حنيفة ورجحه المحقق ابن الهمام وتلميذه الحلبی لشبهة الاختلاف فی كونها اية من كل سورة بحر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۳۶۲ جلد۱ مطلب قرأة البسملة بين الفاتحة والسورة)

**الجواب:** بغیر د پټکي نه مونځ کول خلافِ اولیٰ دي په دې کښې د امام او غیر امام هیڅ فرق نشته. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په مونځ کښې سرباندې پټکې یا عمامه زدل مطلوب اومسنون دی

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بعضې خلق وائي چه جناب پيغمبر علیه السلام د خارجي عوارضو نه بغير سر عاری عن العمامه اوالقلسنوة پريخي دې او وائي چه په سر باندې پټکې يا ټوپۍ نه کيښودل هم سنت دي آيا دا صحيح ده؟ دغه شان د مونځ او غير مونځ د حالت حکم هم بيان کړئ؟ بينوا توجروا بالدلائل الواضحة المتقرره فی الدين النبوی صلی الله علیه وسلم

المستفتی: عبدالرحيم جلبئ صوابی........ ۲۱جو لائي ۱۹۷۳ء

**الجواب:** په مونځ کښې د سر پټول مطلوب او مسنون دي (کما صرحوا به) ﴿۲﴾ ليکن د مونځ نه بهر ئې پټول او د هغې اهتمام کول يو مباح کار او جائز دې، خو په دې شرط چه دا خالي سر ساتل د کافرانو او فاسقانو سره د مشابهت کولو د وجې نه نه وي.

**والا فيكون حراماً قال الله تعالىٰ ولا تركنوا الى اللذين ظلموا﴿۳﴾ وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم من تشبه بقوم فهو منهم﴿۴﴾ وصرح به الفقهاء في مواضع كثيرة. فقط**

---

**﴿۱﴾ قال الشيخ طاهر بن عبد الرشيد : و فی الاصل لا بأس بان يصلی الرجل فی ثوب واحد متوشحاً يؤم كذلك والمستحب ان يصلی الرجل فی ثلاثة اثواب قميص وازار وعمامة اما لو صلی فی ثوب واحد متوشحا به جميع بدنه كازار الميت يجوز صلوته من غير كراهة.**
**(خلاصة الفتاویٰ ص۷۳ جلد ۱ الفصل السادس فی ستر العورة)**

**﴿۲﴾ وفی الهنديه: وتكره الصلاة حاسرا رأسه اذا كان يجد العمامه وقد فعل ذلك تكاسلا اوتهاونا بالصلاة ولا بأس به اذا فعله تذللا وخشوعا بل هو حسن كذا فی الذخيرة.**
**(فتاویٰ عالمگيريه ص۱۰۶ جلد ۱ الفصل الثانی فيما يكره فی الصلاة وما لا يكره)**

**﴿۳﴾ (سورة هود: آيت:۱۱۳ پاره: ۱۲ ركوع: ۱۰)**

**﴿۴﴾ قال الطيبی: (قوله من تشبه بقوم فهو منهم) هذا عام فی الخلق والخلق والشعار واذا كان الشعار اظهر فی التشبيه ذكر فی هذا الباب. (شرح طيبی ص ۲۱۹ جلد۸ كتاب اللباس الفصل الثانی)**

## په تشهد کښې د اشارې ثبوت او د مجددالف ثاني رحمه الله مسلک

**سوال:** چہ مے فرمایند علماء دین ومفتیان کرام درین مسئلہ کہ اشارہ درحالت قعود بوقت شہادتین چہ حکم دارد، سنت است یا فرض، وجواب از قول امام ربانی مجدد الف ثانی رحمہ اللہ در باب منع از اشارہ چیست؟ بینوا بالدلائل الواضحة توجروا عند الله الحكيم العليم

المستفتی: عتیق اللہ متعلم دارالعلوم حقانیہ......۱۹۸۴ء/۸/۷

**الجواب:** اشارہ در وقت تشہد سنت زائدہ ومستحب است در قول راجح، لثبوتها بالاحاديث من غير نسخ ولثبوتها فى نادر الرواية عن ابى حنيفة رحمه الله وظاهر الرواية ساكتة عنها، وقال صاحب البحر فى مثله يصار الىٰ نادر الرواية ومشائخنا المتاخرون اختلفوا فيها فذهب الامام الربانى وغيره الى منعها وذهب الاكثرون ومن جمعوا بين علم الفقه والحديث وكذا متبعوا المجدد الى ثبوتها وتمام الكلام فى منهاج السنن شرح جامع السنن للامام الترمذى ص ١٦٦ جلد٢ فليراجع﴿١﴾. وهوالموفق

---

﴿١﴾وفى المنهاج: اعلم ان الاشارة بالسبابة من سنن الصلوٰة عن الائمة الثلاثة واما الامام ابو حنيفة فلم يرو عنه فى ظاهر الرواية شئ من النفى او الاثبات كما لا يخفىٰ على من راجع الى كتب ظاهر الرواية ومن جعل نفى الاشارة ظاهر الرواية فقداخطأ فى جعل عدم الذكر ذكر العدم نعم روى عنه فى غير ظاهر الرواية الاثبات كما فى موطأ محمد واما لى ابى يوسف وكذا صرح فى الكفاية والمحيط انه قال بسنيتها ابو حنيفة، وقال صاحب البحر فى باب قضاء الفوائت من البحر المسئلة اذا لم تذكر فى ظاهر الرواية وثبتت فى رواية اخرىٰ تعين المصير اليها، واختلف مشائخنا المتأخرون فى الاشارة قال بعضهم يشير وقال بعضهم لا يشير، والراجح الاشارة لان الاحاديث القولية والفعلية والتقريرية وردت فى فعلها دون منعها فكيف يصح دعوىٰ النسخ، على ان ادعاء النسخ لا بد فيه من النقل الصريح من اهل الفن كالطحاوى وغيره فان قيل احاديث الاشارة مضطربة، قلنا لم يقل احد من اهل الفن باضطرابه كما لم يقولوا باضطراب حديث رفع اليدين عند التحريمة وحديث......(بقيه حاشيه په راروان مخ....)

## د احکاماتو مدار په کتاب او سنت باندې دی په بخاري نه دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو مقلد حنفي سړې رفع الیدین شروع کړې دی او وائي چه ماته په عدم رفع الیدین باندې دلیل راکړئ او هغه هم صرف د بخاری شریف نه بل کتاب نه منم. ددې وضاحت اوکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ افتخارعلي شاه خطیب جامع مسجد تقوی نوشهره ۱۹۸۴ء۱۲۱/۷

**الجواب:** ددې سړي نه تپوس اوکړه چه ستاسو په نزد بخاري حجت دې که حدیث؟ او دا تپوس ترینه اوکړه چه کله په بخاري شریف کښې متضاد حدیثونه وي لکه د جلسه استراحت حدیثونه نو په هغې کښې ستا طریقه

---

(بقیه حاشیه) وضع الیدین تحت الصدر او تحت السرة، نعم قالوا ان اختلاف الکیفیات الواردة محمول علی اختلاف الاوقات والتوسع صرح به العینی والنووی ولان اثر الصحابة وردت فی فعلها دون منعها مثل اثر ابن عمر رواه احمد واثر معاذ بن جبل رواه الطبرانی واثر ابی هریره رواه عبد الرزاق واثر عقبة بن عامر رواه الحاکم فی تاریخه واثر الصحابة تکفی لاثبات الاستحباب وکذا هی دالة علی عدم النسخ ولان ظاهر الروایة ساکتة عنها وغیرها ناطقة بها فتعین المصیر الیها، ولان من رجح الاشارة من مشائخنا فهم الذین جمعوا بین الفقه والحدیث بخلاف من رجح نفیها، فان قیل لم یروالبخاری حدیث الاشارة ، قلنا لیس هو علی شرط البخاری والحجة عندنا وعند الامام البخاری هو الحدیث الثابت دون ما هو علی شرط البخاری، فان قیل لم یذکر صاحب الهدایة الاشارة قلنا لم یتعرض لها صاحب الهدایة فی الهدایة لا نفیا ولا اثباتا لعدم ذکرها فی ظاهر الروایة نعم ذکرها فی مختارات النوازل فان قیل ذکر فی ظاهر الروایة بسط الاصابع عند القعدة قلنا البسط عند اول القعود لا ینافی القبض عند الشهادة، فان قیل ورد فیه لفظ" وعلیه الفتویٰ" قلنا من قال ان لفظ" وعلیه الفتویٰ" آکد خالف عن قوله والتیٰ بخلافه، فعلم ان الاعتبار لقوة المدرک والدلیل عند الاختلاف بین الخواص وبه یحصل قطع النزاع وبه رفع عمل السلف والخلف.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۱۶۶ ، ۱۶۷ جلد ۱ باب ماجاء فی الاشارة)

څه ده؟ او دده نه تپوس او کړه چه په بخاري شریف کښې دا کوم ځائې کښې دي چه پیغمبر علیه السلام همیشه ترمرګه پورې رفع الیدین کړي او پریخودلې ئې نه دي.(۱)

## حدیث د ابن عمر رضی الله عنهما دمتن په لحاظ سره مضطرب دي

**سوال:** محترم جناب مولانامفتي محمد فرید صاحب دارالعلوم حقانیه! تیرو ورځو کښې ستاسو خواته یو غیر مقلد مولوي د ګکهړ منډې نه راغلې وو ستاسو نه ئې د یو حدیث ترجمه کوله. هغه چه دلته راغې د مفتیانو خلاف او خاص کر دحضرت مولانا سرفراز خان صفدرصاحب خلاف ئې پروپیګنډه شروع کړه چه هغوي غلطه ترجمه کوی او هغه حدیث د رفع الیدین په باره کښې دې رغیره وغیره خیربیاهم دي حدیث کښې درکوع نه پس چه کوم لفظ لا یرفعهما دې ددې تعلق د مخکښې سره دې او که د روستو سره دې؟ بینوا توجروا المستفتي قاري محمد یوسف ګکهړي منډي ګجرانواله ۵\ جمادي الثاني ۱۴۰۲

**الجواب:** دابن عمر رضی الله عنه حدیث د متن په لحاظ سره مضطرب دي معارف السنن او مشکل الاثار وغیره کتابونو ته په رجوع کولو سره تردد(شک شبه) نه پاتې کیږي. په دې سوال والا روایت کښې په ,,ان یرکع،، باندې جمله ختمه شویده.او ,,بعد ما یرفع راسه.، ظرف مقدم دې په خپل عامل لایرفعهما باندې که په قلمي یا پخواني نسخو کښې ددینه مخالف عبارت وي نو په هغې باندې اعتماد کول پکار دي.وهوالموفق

## د مونځ نه پس په زوره کلمات وئیل او په لاوډ سپیکر باندې په ښکاره ذکر کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه! (۱) د جمع مونځ نه

---

﴿۱﴾ عن براء بن عازب قال ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان اذا افتتح الصلوٰة رفع يديه الى قريب من اذنيه ثم لا يعود. (ابوداؤد شريف ص۱۱٦ جلد ۱ باب من لم يذكر الرفع عند لركوع)
عن علقمة قال قال لنا ابن مسعود الا اصلى بكم صلوٰة رسول الله صلى الله عليه وسلم فصلى ولم يرفع يديه الامرة واحدة مع تكبير الافتتاح رواه الترمذى وابوداؤد والنسائى.
(مشكواة المصابيح ص۷۷ جلد ۱ باب صفة الصلوٰة)

پس سمدستي د امام او مقديانو په زوره زوره سره د لا اله الا انت. الخ،
وئيل څنګه دي؟ چه د مسبوقينو په مونځ کښې خلل هم راځي بلکه اکثر
پکښې غلط هم شي. (۲) د ماسخوتن د مونځ نه پس امام او پنځه شپږ
مقتديانو په لاوډ سپيکر باندې په زوره زوره باندې. لا اله الا الله. وئيل
څنګه دي؟ او چه کله په جوش کښې راشي نو د خلې نه څه نو رڅه الفاظ هم
اوباسي چه هغې ته وجد وغيره وائي او حال دا چه دا عمل د ټولې محلې والا
او نو رو مونځ ګذارو په مونځ او آرام کښې خلل اچوي نو آيا دا جائز دي؟
بينوا توجروا

المستفتي: محمد نادرخان ضلع نوشهره.... ۲۵\شوال ۱۴۱۰هـ

**الجواب:** (۱) ذکر بالجهر جائز دې خوچه کله د مسبوق د پاره د ضرر (تکليف)
باعث وي نو بيا مکروه دې. (شامي) (۲) دا هم مکروه دي چه کله مونځ ګزارو
وغيره ته تکليف وي (شامي) ﴿۱﴾ البته چه کومو خلقو ته په لاوډ سپيکر
باندې ذکر کولو سره جذ به حاصليږي او بغير د لاوډ سپيکر نه ورته مزه نه
ورکوي نو دا ذکر کونکې ناجوړه دې﴿۲﴾ کوم اوريدونکی ته چه ضرر رسوي
او سندرې اوريدل ورته ضرر نه رسوي نو هغه هم ناجوړه دې. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدين عن الامام الشعرانی: اجمع العلماء سلفاً وخلفاً على استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغيرها الا ان يشوش جهرهم على نائم او مصل او قارئ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت بالذکر)

﴿۲﴾ قال العلامه آلوسی: عن ابن عمر وقد رأى ساقطا من سماع القرآن فقال انا نخشى الله تعالىٰ ومانسقط هؤلاء يدخل الشيطان فی جوف احدهم..... هذا نعت اولياء الله تعالىٰ قال تقشعر جلودهم تبکی اعينهم وتطمئن قلوبهم الى ذکر الله تعالىٰ ولم ينعتهم الله سبحانه بذهاب عقولهم والغشيان عليهم انما هذا فی اهل البدع وانما هو من الشيطان، واخرج ابن ابی شيبه عن ابن جبير قال الصعقة من الشيطان وقال ابن سيرين بيننا وبين هؤلاء الذين يصرعون عند قراة القرآن ان يجعل احدهم على حائط باسطا رجليه ثم يقرأ عليهم القرآن کله فان رمى بنفسه فهو صادق.
(تفسير روح المعانی ص۲۸۴ جلد۱۳ سورة الزمر آيت: ۲۳)

## په تشهد کښې اشاره بالسبابة د احادیثو نه ثابت ده

**سوال:** چه میفرمایند علماء دین دریں مسئله که اشارة بالسبابه لطفاازشمااستدعامینمایم، زیراکه فهم چیزاست وور دحمن مایان منفی است، ودیگر یک ادم میگند اورابدے دانند، که این وهابی شده است وپیش مایان عاجزان نه یک کتاب ونه این قدرعلمیت که برائے شان قناعت بدهم ونه بخودشان لنقدرحفظ ازعلم احادیث است، اگر این مسئله اشارت واضح موافق باکمال علمیت ووقوف خودنوشته شود، درهرکتاب که نفی اشارت میشودومیکند نام این کتاب ومرجوحیت قول این هم لطفاواضح شود؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالغفارافغانستان

**الجواب:** دریں باب بسیاراحادیث مرفوعه وارد شده اند (فليراجع الى مشكواة باب التشهد) وبعدازوفات پیغمبرعلیه السلام ازصحابه اشاره کردن ثابت شده است (فليراجع الى الموطأ للامام محمد) وائمه ما متقدمین درکتب ظاهر الروایه هیچ نه گفته اند، بے شک درغیر ظاهر الروایت به جواز تصریح کرده اند، شیخ ابی یوسف رحمه الله درامالی وامام محمد درموطأ وصاحب بحردرباب قضاء الفوائت گفته است، که دروقت عدم ظاهر الروایت واجب است مصیر به نادرالروایه وعلماء متاخرین دراشارة مختلف اند جمع عظیم برجوازقائل است، وجمع عظیم برعدم جواز، لاکن راجح جوازاست زیرانکه آن متاخرین که جامع بین الفقه والحدیث اند، مثل صاحب الفتح والبحر والشرح الكبير وردالمحتار قائل برجوازاند وصاحب الهدایة نیزبرجوازتصریح کرده است درمختارالنوازل وسکوت کرده است درهدایه وبحث دریں مسئله بسیاراست وفرصت نوشتن کم است لهٰذابریں اشارات اکتفاء باید کرد[1]۔ وهو الموفق

---

[1] (مر التفصيل فى الحاشية المحولة بمنهاج السنن شرح جامع السنن ص ١٦٦ جلد ١ باب ماجاء فى الاشارة)

## د فرضو او سنتو نه پس اجتماعي دعا د قولي حدیث په بنا باندې مسنون او د فعلي حدیث په بنا باندې غیر معمول ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د فرض مونځ نه پس یا د سنتو نه پس د پیغمبر ﷺ نه د [illegible] مونځ نه پس پیغمبر ﷺ په هیئت اجتماعي سره دعا غوښتلې وی نو وضاحت اوکړئ. واجرکم علي الله

المستفتي: محمد لقمان شمس آباد اټک..... ۱۴ صفر ۱۴۰۵

**الجواب:** پیغمبر علیه السلام په هیئت اجتماعي سره د دُعا کولو ترغیب ورکړې کما في الدارمي والفتح وغیره. (۱) او پخپله ئې نه د فرضو نه پس په هیئت اجتماعي سره دعا غوښتلې ده او نه د سنتو نه پس. او نه ئې (اللهُم انت السلام) په هیئت اجتماعي سره لوستلې. نو په هیئتِ اجتماعیه سره دعا غوښتلو کښې د فرضو او سنتو نه پس کښې هیڅ فرق نشته. د قولي حدیث په وجه د واړه مسنون دي او د فعلي حدیث په وجه باندې دواړه غیر معمول دي. فافهم. (۲) وهو الموفق

---

(۱) قال الحافظ ابن الحجر: واخرج الحاکم عن حبیب بن مسلمة الفهری سمعت رسول اللهﷺ یقول: لا یجتمع ملأ فیدعو بعضهم ویؤمن بعضهم الا اجابهم الله تعالیٰ. (فتح الباری شرح صحیح البخاری ص۳۰۸ جلد۱۴ باب التامین)

(۲) وفی المنهاج: والجواب عن الامر الاول انه معارض بالقرآن والاحادیث الصریحة فی مشروعیة الدعاء والذکر علی وجه الاجتماع قال الله تبارک وتعالیٰ قد اجیبت دعوتکما، وروی القرطبی عن ابی العالیه ان موسیٰ علیه السلام کان یدعو وهارون علیه السلام یؤمن، وقال النبیﷺ لا یجتمع ملأً فیدعو بعضهم ویؤمن بعضهم الا اجابهم الله تعالیٰ رواه الحاکم وذکره فی کنز العمال، وقال النبیﷺ ما اجتمع ثلاثة قط بدعوة الا کان حقا علی الله ان لا یرد ایدیهم رواه الدارمی وذکره الحافظ فی الفتح...... فالبین من الجواب الاول انه ثبت باحادیث قولیة مندوبیة الدعاء علی وجه الاجتماع ولم یثبت ما یعارضها لانه لم یثبت عن النبیﷺ فی روایة ما انه لم یدع علی وجه الاجتماع ... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د مونځ نه پس په (اللهم انت السلام) کښې د بعضې الفاظو زياتول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د فرض مونځ نه پس په (اللُهم انت السلام ومنک السلام) باره کښې د حينا ربنا بالسلام وادخلنا دارالسلام. زياتوالې کول شرعاً څه حکم لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالله تور ډهيره صوابي

**الجواب:** چونکه دا زياتوالې په مرفوع احاديثو او د صحابه کرامو په آثارو کښې موجود نه دې ﴿۱﴾ البته فقهائې کرامو دا ذکر کړې دې ﴿۲﴾ لهذا په ما ثور باندې اکتفا کول او په زيات باندې اعتراض نه کول اعتدال دې، وهو الموفق

---

(بقيه حاشيه) بخلاف اذان العيد فانه ثبت فيه رواية العدم فى سنن ابى داوٗد وغيره فالعجب من هذا القائل فى انه لم يفرق بين عدم الرواية وبين رواية العدم، ولو سلم ان النبى ﷺ لم يدع بعد الصلوٰة على وجه الاجتماع والانقل عنه البتة وهو التحقيق ايضاً فيقال ان القول هو الاقوىٰ من غيره الخ.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۷۴ جلد ۱ جلد ۲ مبحث الدعاء على هيئة الاجتماعية)

﴿۱﴾ عن عائشة رضى الله عنها: قالت كان رسول الله ﷺ اذا سلم لم يقعد الا مقدار ما يقول اللهم انت السلام ومنک السلام تباركت يا ذالجلال والاكرام رواه مسلم، وعن ثوبان رضى الله عنه قال كان رسول الله ﷺ اذا انصرف من صلوته استغفر ثلثا وقال اللهم انت السلام ومنک السلام تبارک يا ذالجلال والاكرام رواه مسلم.
(مشكواة المصابيح ص ۸۸ جلد ۱ باب الذكر بعد الصلوٰة الفصل الاول)

﴿۲﴾ قال العلامه شرنبلالى: بعد الفرض القيام الى اداء السنة التى تلى الفرض متصلا بالفرض مسنون غير انه يستحب الفصل بينهما كما كان عليه السلام اذا سلم يمكث قدر ما يقول اللهم انت السلام ومنک السلام اليک يعود السلام تباركت يا ذالجلال والاكرام وقال الطحطاوى تحت (قوله واليک يعود السلام) قال فى شرح المشكاة عن الجزرى واما ما يزاد بعد قوله ومنک السلام من نحو واليک يرجع السلام فحينا ربنا وادخلنا دارالسلام فلا اصل له بل مختلق بعض القصاص.

(مراقى الفلاح مع الطحطاوى ص ۱۷۰ فصل فى صفة الاذكار بعد الصلاة)

## د فرضو نه پس دعا کول

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بعضې خلق د فرض مونځ نه پس ماثور دُعا ګاڼي وئيل مکروه ګڼړي او په استدلال کښې د (عقائدالسنيه) عبارت پيش کوي. (والمختار عندالحنفية ان يشغل بعد اداء المكتوبة بالسنة ويكره ان يشتغل بالدعاء والتسبيح قبل اداء السنة) او حال دا چه په احاديثو کښې د فرض مونځ نه پس مختلف ذکرونه راغلي دي. لهذا که د احنافو د تير شوي قول څه تاويل وي نو اوليکئ؟ بينوا توجروا.

المستفتي: مولوي محمد يعقوب تحت نصرتي بنون.......۲\۱۴\۱۹۷۹

**الجواب**: د جمهور احناف مثلاً د ابن الهمام، ابن عابدين، ابن نجيم، او حلبی وغيره هم دا رائې ده.او د بعضې احنافو رائې دا ده چه د فرضو نه پس دې متصل دعا اوکړې شي مثلاً امام بقالي (بحواله شرح شرعة الاسلام) لهذا بهتر داده چه د سنتو نه پس دې دعا اوکړې شي﴿۱﴾ او دفرضو نه پس متصل دعا کول هم د حنفيت سره متعارض نه دي. اګر چه د جمهورو په نزد مکروه تنزيهي ده. رواه مسلم ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال الحلبی: واما ما روی من الاحاديث فی الاذکار عقيب الصلوٰة فلادلالة فيها علی الاتيان بها عقيب الفرض قبل السنة بل يحمل علی الاتيان بها بعد السنة ولا يخرجها تخلل السنة بينها وبين الفريضة عن كونها بعدها وعقيبها لان السنن لواحق الفريضة وتوابعها ومكملاتها فلم تكن اجنبية منهما فما يفعل بعدها يطلق عليه انه فعل بعد الفريضة وعقيبها. (غنية المستملی شرح منية المصلی ص ۳۳۱ قبيل فصل فی المكروهات)

﴿۲﴾ عن عائشة رضی الله عنها قالت كان رسول الله ﷺ اذا سلم لم يقعد الا مقدار ما يقول اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت يا ذالجلال والاكرام الحديث، وعلیٰ هامشه: قوله لم يقعد الا الخ...... وعلی هذا فلا وجه للاستدلال به علی ان ماثبت من الادعية بعد الصلوٰة كان يأتی بها ﷺ بعد السنة جمعا بينه وبين هذا الحديث والله اعلم. (صحيح المسلم ص ۲۱۸ جلد ۱ باب استحباب الذكر بعد الصلاة وبيان صفته)

وقال الحصكفی رحمه الله: ويكره تاخير السنة ال......(بقيه حاسيه په راروان مخ..)

## د سنتوپه دریم رکعت کښې به ثنا نه وئیلې کیږي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چې د سنت موکده دریم رکعت به د سبحانک اللهُم نه شروع کوې که د بسم الله نه؟ بینوا توجروا

المستفتي : عبدالرشید جهلم

**الجواب**: د بسم الله نه به ئې شروع کوي. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## په التحیات کښې مسواکۍ ګوتې سره د اشارې حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فر مائي چه ځمونږ ځائې کښې د دوه علمائې کرامو اختلاف دې یو عالم په مسواکې ګوتې سره اشارې ته سنت وائي او دویم د اشارې پریخو دلو ته مستحب وائي نو دې دواړو باره کښې فیصلې والا خبره اولیکئ او ځمو نږ راهنمائی اوکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتي:مولوي عبدالرحیم قلعه سیف الله بلوچستان.. ۱۰\۱۱\۱۹۹۰

**الجواب**: ځمو نږ (د احنافو فقه) ظاهرالروایت د اشارې د جائز او ناجائز کیدلو نه چپ ده البته په (نادرالروایت) کښې جواز لیکلې شوې دې.

**كما فى الموطأ والامالى وهى الراجعة لتائيدها بالاحاديث المرفوعه وآثار الصحابة ولان المتأخرين الذين اختاروها جامعون بين**

---

**(بقيه حاشيه) بقدر اللهم انت السلام الخ، قال الحلوانى لا بأس بالفصل بالاوراد واختاره الكمال قال الحلبى ان اريد بالكراهة التنزيهية ارتفع الخلاف. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ۳۹۱ جلد ۱ مطلب فيما لو زاد على العدد الوارد فى التسبيح)**

**﴿۱﴾ وفى الهنديه: واذا قام يفعل فى الشفع الثانى ما فعل فى الشفع الاول من القيام والركوع والسجود كذا فى المحيط ويقرأ الفاتحة فقط هكذا فى الكافى وتكره الزيادة على ذلك كذا فى السراج الوهاج.**

**(فتاوىٰ عالمگيريه ص ٧٦ جلد ۱ سنن الصلاة وآدابها وكيفيتها)**

الفقه والحدیث﴿۱﴾ (والتفصیل فی منهاج السنن) ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د بسم الله په پریخودلو سره سجده سهو یا د مونځ راګرځول لازم نه دي

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) په هر رکعت کښې بسم الله لوستل سنت دي که واجب؟ (۲) او نه لوستلو سره پرې سجده سهو لازمیږي که نه؟ (۳) او نه وئیلو سره به مونځ صحیح وي که راګرځول به ئې واجب وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عالم خان لنډیواه لکي مروت.....۲۲\۱محرم ۱۴۰۱

**الجواب:** په هررکعت کښې بسم الله وئیل سنت دي د سنتو په پریخودلو سره قضاء او راګرځول نه لازمیږي. ﴿۳﴾

**لما فی شرح التنویر وسمی غیر الموتم بلفظ البسملة سراً فی اول کل رکعة ولو جهریة بحذف یسیر هامش ردالمحتار ص۴۵۷ جلد۱ ﴿۴﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین: وفی المحیط انها سنة یرفعها عند النفی ویضعها عند الاثبات وهو قول ابی حنیفة ومحمد وکثرت به الاثار والاخبار فالعمل به اولیٰ...... وقال فی الشرح الکبیر قبض الاصابع عند الاشارة هو المروی عن محمد فی کیفیة الاشارة وکذا عن ابی یوسف فی الامالی وهذا فرع تصحیح الاشارة وعن کثیر من المشائخ لا یشیر اصلا وهو خلاف الدرایة والروایة فعن محمد ان ما ذکره فی کیفیة الاشارة قول ابی حنیفة ...... وهذا اما اعتمده المتاخرون لثبوته عن النبی ﷺ بالاحادیث الصحیحة ولصحة نقله عن ائمتنا الثلاثة فلذا قال فی الفتح ان الاول خلاف الدرایة والروایة.....واستضئ بمصباح الحقیق فی هذا المقام فانه من منح الملک العلام. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۳۷٦ جلد۱ مطلب مهم فی عقد الاصابع عند التشهد)

﴿۲﴾ (مر التفصیل فی ذیل هذا الباب فلیراجع)

﴿۳﴾ قال الحصکفی: (وسننها) ترک السنة لا یوجب فساداً ولا سهوا بل اساءة لو عامداً غیر مستخف، قال ابن عابدین، ای بخلاف ترک الفرض فانه یوجب الفساد وترک الواجب فانه یوجب سجود السهو. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۳۵۰ جلد۱ مطلب سنن الصلاة)

﴿۴﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۳٦۲ جلد۱ قبیل مطلب لفظة الفتویٰ آکد من لفظة المختار)

## د مونځ نه پس (اللهُم انت السلام) څنګه وئیل ګیږي

**سوال**: علمائي کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه کله امام د مونځ نه پس اللهُم انت السلام وائي نو کوم طرفته به مخ کوي، دارنګې دا دُعا ده که نه؟ بعضې خلق دیته دُعا نه وائي جواب راکړئ مهرباني به وي؟ بینوا توجروا

المستفتي: شاد محمد کوهاټ......۲۸\۱محرم ۱۴۰۱ھ

**الجواب**: اللهُم انت السلام الخ یو ذکر دې دعا نه ده، ددې ذکر کولو په وخت کښې لاس اوچتول ثابت نه دي. پیغمبر ﷺ او صحابه کرام رضی الله عنهم په هیئت اجتماعي سره دا ذکر (اللهُم انت السلام) نه دې کړې بلکه ځان ځان له ئې کړې دې. لهذا هر سړې دې قبلې ته مخ کړي اوکوي دې، ﴿۱﴾وهوالموفق

## د دُعا بعدالسنن په مسئله کښې د افراط او تفریط نه مونږ بیزاره یو

**سوال**: علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فر مائي چه دعا بعد السنت علي هیئت الاجتما عیه جائز ده یا نه؟ ستاسو حضراتو د فتوې نه خو جواب ښکاره دې خو د خیرالمدارس ملتان مفتي صاحب د عدم جواز قائل دې. ځمو نږ په علاقه کښې خلق د دارالعلوم حقانیه په فتوی باندې عمل کوي لیکن بعضې ترینه انکاریان دی. او دا پوستړ هم ستاسو په خد مت کښې حاضر دې دواړو طرفته پکښې دلائل او د هغې رد موجود دې اوس مونږ څه اوکړو دچا خبره اومنو؟ مدلل جواب راولیګئ مهرباني به وي؟

بینوا توجروا

المستفتي: ملک جهانزیب افریدي دره بازار دره آدم خیل.... ۱۲ محرم ۱۴۰۵

**الجواب**: پیغمبر ﷺ په هیئت اجتماعي سره نه دفرضونه پس دعاکړې ده او

---

﴿۱﴾ وعن ثوبان رضی الله عنه : قال کان رسول الله ﷺ اذا انصرف من صلوته استغفر ثلاثا وقال اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت یا ذا الجلال والاکرام رواه مسلم. (مشکواة المصابیح ص۸۸ جلد ۱ باب الذکر بعد الصلوٰة الفصل الاول)

نه د سنتو نه پس او نه ئې اللهم انت السلام الخ په هیئت اجتماعي سره
وئیلې، البته پیغمبر ﷺ په جمعې سره ددعا ترغیب ورکړې کما في
کنزالعمال وغیره، نو په هیئت اجتماعي سره د مونځ نه پس دعا منع نه ده نه
د فرضو نه پس اونه د سنتو نه پس ممنوع صرف التزام(لازم ګرځول) دي.

**والمختار هو بعد الرواتب عند الجمهور وبعد الفرائض عند البقالي وتمام الكلام في المقالات.**

**د اشتهار الجواب:** ځمونږ مسلک او د صوبه سرحد د علماؤمسلک دیوبندي
مسلک دې.ددې پوستر په مضمون کښې افراط او تفریط موجود دې مونږ
د بریلویت اوسلفیت دواړو نه بیزاره یو، دعا بعدالسنن بهیئة الاجتماعیة
پیغمبر علیه السلام نه د فرضونه پس کړې اونه د سنتو نه پس. ومن ادعٰی فعلیه
البیان،البته پیغمبر علیه السلام په جمعې سره ددعا ترغیب ورکړې او د فقهاء
اکثریت دعا بعدالسنت افضل او بهتر ګرځولې.اختلاف په فضیلت کښې
دې په جواز او عدم جوازکښې نه دې، البته التزام د هغه څه چه لازم نه وي
په دواړو صورتو نو کښې مکروه دې،کومو علماؤ چه بعد السنن. دعا ته
بدعت وئیلې مونږ دهغوې سره متفق نه یو اکثرفقهاؤ دُعاد سنتو نه پس
افضل ګرځولې، البته امام بقالي رحمه الله بعد الفرائض بهترګنړلې،وهومختار
اکثرالاکابر، کوم خلق چه دا وائې چه پیغبر علیه السلام بعد السنن دعا نه ده کړې
لهٰذا دا بالاجماع بدعت دې نو د هغوي نه تپوس کول پکار دي چه د حدیثو
په کوم کتاب کښې دي چه کړې ئې نه دې،ځکه چه په عدم ذکر او ذکر العدم
کښې فرق موجوددې اوکه دا اومنلې شي چه پیغمبر علیه السلام دا دعا نه دې کړې.

**والانقل عنه البتة وهو التحقيق ايضا فيقال ان القول هو الاقوىٰ من غيره انه ثبت باحاديث قولية مندوبية الدعاء على وجه الاجتماع ولم يثبت ما يعارضها لانه لم يثبت عن النبي ﷺ في رواية ما انه لم يدع على وجه الاجتماع بخلاف اذان العيد فانه ثبت فيه رواية العلم في سنن ابي داؤد وغيره. وهوالموفق**

## په جمعې سره دعا کول مندوب دي بدعت نه دي.

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د پنځ وخته مونځونو پس که د فرضونه پس متصل وي او که د سنتونه پس وي اجتماعي دعا صحيح ده که نه؟ بعضې خلق چه د حجاز په زمکه او مکه مکرمه کښې ئې سبق وئيلې وي هغوي د مونځونو پس اجتماعي دعا ته يعني د فرضو نه پس او خصوصاً د سنتونو پس ته ناجائز او بدعت وائي او مسلمانان د مونځونو نه پس د دعا ګانو نه منع کوي، د شريعت او علمائې احناف د مسلک په رڼا کښې ددې څه حل دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد اقبال ډنډل تيکشن تربت مکران بلوچستان ۱۷ رمضان ۱۴۰۵

**الجواب:** پيغمبر عليه السلام د فرضو نه پس د دعا ترغيب ورکړي.

**كما فى حديث الترمذى قيل يا رسول الله ﷺ اى الدعاء اسمع قال جوف الليل الاخر ودبر الصلوات المكتوبات﴿۱﴾**

او د دبرالمکتوبات په مراد کښې اختلاف دې بعضې محدثين سمدستي او روستو مراداخلي او بعضې غيرمتصل مراد اخلي او د (دُبُرْ)اطلاق په دواړو باندې کيږي، ځکه چه دې دواړو کښې يو هم په فرائضو باندې مقدم نه ده، ﴿۲﴾ اودا خبره دې واضحه وي چه ددې د پاره ډير اداب دي چه په دې حديث کښې نشته او په نورو حديثونو کښې مذکور دي (مثل.رفع اليدين، التثليث، التحميد، الصلاة، التامين) بعضې ددې ادابو نه هيئت اجتماعى دې.

**لحديث الحاكم وكنزالعمال لا يجتمع ملا فيدعوا بعضهم ويؤمن بعضهم الا اجابهم الله، ولحديث الدارمى وابى نعيم ما اجتمع ثلاثة قط بدعوة**

---

﴿۱﴾ (سنن الترمذى ص۱۸۸ جلد۲ باب ماجاء فى جامع الدعوات)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدين: واما ما ورد من الاحاديث فى الاذكار عقيب الصلاه فلا دلالة فيه على الاتيان بها قبل السنة بل يحمل على الاتيان بها بعدها لان السنة من لواحق الفريضة وتوابعها ومكملاتها فلم تكن اجنبية عنها فما يفعل بعدها يطلق عليه انه عقيب الفريضة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۹۱ جلد۱ قبيل مطلب فى ما لو زاد الخ)

الاکان حقا علی الله ان لا یرد ایدیهم (ذکره الحافظ فی فتح الباری)﴿۱﴾
پس په جمعي سره دعا کول مندوب دي ناجائز او بدعت نه دی، البته لغوي بدعت دي ځکه چه پیغمبر علیه السلام هیئت اجتماعي سره نه د فرضو نه پس دعا غوښتلې او نه د سنتو نه پس ونظیره الازار والسراویل. وهو الموفق

## احناف د سنتو نه پس او بقالي دفرضو نه پس دعا افضل ګڼړي

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بعضې علماء فرمائي چه د سنتو نه پس په جمعې سره دعا کول حرام او بدعت سيئته دې او بعضې وائي چه مستحب او بد عت حسنه دې قول فيصل ذکر کړئ مهرباني به وي؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي سيف الرحمان برول بانډه ضلع دير...... ۲۵ \ ۱۷ \ ۱۹۷۰

**الجواب:** دا خبره دې واضحه وي چه ددعا بعد السنن په هيئت اجتماعي سره په خير القرون کښې معمول نه وو. نه د فرضونه پس او نه د سنتو نه پس ﴿۲﴾ (ومن ادعی فعليه البيان والدليل ولن ياتوا به ولو كان بعضهم لبعض ظهيراً) البته دقولي حديث نه دعا کول ثابت دي، وهوحديث د بر الصلوت المكتوبات ﴿۳﴾ او دا حديث په دواړو باندې صادق دې.

**لان الدعاء بعد الرواتب يصدق عليه انه دبر المكتوبات لا انه قبل المكتوبات، وايضاً صرح العلامة الشامی وابن الهمام ان ما يفعل بعد الرواتب يطلق عليه انه دبر المكتوبات فليراجع وصرح فی البحر والخلاصه**

---

﴿۱﴾ (فتح الباری شرح صحيح البخاری ص۳۰۸ جلد۱۴ باب التامين)

﴿۲﴾وليعلم ان الدعاء المعمول فی زماننا من الدعاء بعد الفريضة رافعين ايديهم علی الهيئة الكذائية لم تكن المواظبة عليه فی عهده عليه الصلاة والسلام الخ. (العرف الشذی علی الترمذی ص۸٦ جلد۱ باب ماجاء فی كراهية ان يخص الامام نفسه بالدعاء)

﴿۳﴾ عن ابی امامة قال قيل يا رسول الله ای الدعاء اسمع قال جوف الليل الاخر ودبر الصلوات المكتوبات رواه الترمذی. (مشكوٰة المصابيح ص۸۹ جلد۱ باب الذكر بعد الصلاة الفصل الثانی)

وارشاد الساری وغیره ان الدعاء عند الحنفیة بعد الرواتب نعم قال البقالی المعتزلی انه بعد الفرائض ﴿۱﴾ فعلم ان فی الامر توسعاً والاولیٰ هو الاتیان بعد الرواتب واما الهیئة الاجتماعیه فهی من اداب الدعاء کالحمد والصلوٰة وغیره لحدیث ذکر فی معارف السنن وغیر واحد من کتب الاحادیث﴿۲﴾. وهوالموفق

## دعا بعد السنت او بعدالفرض باندې التزام بدعت او همیشوالي جائز دي

**سوال:** علمائي دين دي مسئلې باره کښې څه فرمائې چه بعضې اهل علم وائي چه دفرض مونځ نه پس په هیئتِ اجتماعي سره دعا کول بهترين او افضل دي. او د سنتو نه پس په هیئت اجتماعي سره ددعا کول هیڅ ثبوت نشته، بعضې اهل علم د سنتو نه پس دعا لازم ګڼړي. مهرباني اوکړئ فیصلې والا خبره اوکړې ډیره ښه به وي؟ بینوا توجروا،

المستفتي: ناصر شاه محله سیدان جلبئ صوابي ۱۹۷۲/ ۱۲/ ۵

---

﴿۱﴾ وفی شرح شرعة الاسلام ویغتنم الدعاء بعد المکتوبة قبل السنة علی ماروی عن البقالی(المعتزلی فی الاصول، الحنفی فی الفروع مثل صاحب الکشاف)من انه قال الافضل ان یشتغل بالدعاء ثم بالسنة وبعد السنن والاوراد علی ماروی عن غیره وهو المشهور المعمول فی زماننا فانه مستجاب بالحدیث.

(تعلیق الکوکب الدری ص ۲۹۱ جلد۲) (وهکذا فی السعایه ص ۲٦۱ جلد۲ باب صفة الصلاة)

﴿۲﴾ قال الله تبارک وتعالیٰ: قد اجیبت دعوتکما ، وروی القرطبی عن ابی العالیة ان موسیٰ علیه السلام کان یدعو وهارون علیه السلام یؤمن، وقال النبی علیه السلام لا یجتمع ملاً فیدعو بعضهم ویؤمن بعضهم الا اجابهم الله تعالیٰ رواه الحاکم وذکره فی کنز العمال وقال النبیﷺ ما اجتمع ثلاثة قط بدعوة الا کان حقا علی الله ان لا یرد ایدیهم رواه الدارمی وذکره الحافظ فی الفتح...... ثبت باحادیث قولیة مندوبیة الدعاء علی وجه الاجتماع.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۷۴ جلد۲ مبحث الدعاء علی الهیئة الاجتماعیة)

**الجواب:** واضحه دوي چه دعا پـه التزام سره بدعت دي برابره خبره ده کـه د فرضو نه پس وي او که د سنتو نه پس وي، لیکن د التزام پـه مطلب ډیر خلق نه پوهیږي د التزام مطلب او معنٰی ده یو څیز لازم او واجب ګڼړل یا د یو څیز په کونکي یا پریخودونکي باندې د واجب پشان انکار کول او بد ګڼړل او صرف همیشوالي او پابندئ ته التزام نه وائي ګني نو تهجد، اوابین، چاشت وغیره نورمستحبات به ټول بدعات شي.(والامر لیس کذالک لانهم لا یعتقدونها واجبات ولا ینکرون علی تارکها مثل الانکار علی تارک الواجب) او پـه فقـه حنفي کښې دا ذکر دي چه د جمهورو احنافو پـه نزد د سنتو نـه پس دعا کول بهتر ده او د امام بقالي رحمه الله پـه نزد د فرضـو نه پس بهتر ده او هم دې لره د دیو بند اکثر اکابر ینو مختار(غوره) ګرځولې.《۱》 لهذا دیکښې سختي کول نه دي پکار او پـه دې ښارونو ښه داده چه د سنتو نـه پس دعا اوکړیشي چه د عامو فقهاؤ نه مخالفت رانشي او فتنه جوړه نه شي ګني نو د امام بقالي رحمه الله پـه قول باندې هم عمل کول جائز دي چه دَې پـه فروعاتو کښې حنفي دې او پـه اصولو کښې معتزلي دې.دهغوی پـه قول باندې عمل کول هم جائزدی.

**وان شئت الاطلاع علی دلائل الطرفین فراجع الی المقالات《۲》. وهوالموفق**

---

《۱》 مفتی اعظم حضرت مولانا مفتي کفایت الله صاحب فرمائي: د دعا بعد السنن والنوافل حکم دادې چه که څوک ئې څه قسم التزام نه کوي او بهتر او افضل ئې نه ګڼړي او په پریخو دونکي باندې ملامتیا نه کوي او د جمعې اهتمام نه کوي او امام ددې پابند نه کړې شي نوکه د سنتو نه پس کوم خلق اتفاقي طورباندې موجود وی کـه هغوی دعا اوغواړی نوجائزده.(کفایت المفتی ص ۳۴۰ جلد۳ سنن او نوافلو نـه روستو د اجتماعي ثبوت شته که نه، فصل اول) 《۲》 د مقالاتو نه دا د دعامقاله د فائدې عام کولو دپاره په مخکښې صفحاتو کښې دا نقل کولې شي.(ازمرتب)

# غنية الطالب

## فى الدعاء بعد المكتوبة والرواتب

**د دعا فضيلت**: دعا كول عبادت دي پيغمبر عليه السلام فرمائي (الدعاء هو العبادة رواه الترمذى(۱) او الله (ج) دعا عبادت ګرځولي دي. (وقال ربكم ادعوني استجب لكم ان الذين يستكبرون عن عبادتى سيدخلون جهنم داخرين)(سورة المومن)(۲) دعا دعبادت مغز دي. پيغمبر عليه السلام فرمائي الدعاء مخ العبادة (رواه الترمذى) (۳) دعا د عبدت اصل دي يعني كامل عبادت دي ځكه چه عبادت هغه تنظيم او عا جزئ ته وائي چه د يوذات په غيبي تسلط باندې دلالت كوي او په دعا كښې دا دلالت په واضحه طريقه موجود دې.

**دعا او تقدير**: بعضي خلق وائي چه تقدير نه بدليږي نو په دې وجه دعا كول بې فائدې دي، ليكن دا يو فاسد خيال دې.(۴) ځكه چه هركله يوڅيز عبادت وي او د الله (ج) د طرفنه مطلوب وي اود پيغمبرانو عليهم السلام معمول وي هغه عبث (بې فائدې) نشي كيدلې، او په عالمِ اسباب (دنيا) كښې چه څنګه د نورو اسبابو او ذريعو استعمال د تقدير سره متصادم نه دي دغه شان دعا هم يو سبب او ذريعه ده نو د تقدير سره به متصادم نه وي.

(۱) (جامع الترمذى ص۱۷۳ جلد۲ ابواب الدعاء باب ماجاء فى فضل الدعاء)

(۲) (سورة المومن آيت، ٦۰ ركوع، ۱۱ پاره: ۲۴)

(۳) (جامع الترمذى ص۱۷۳ جلد۲ باب ماجاء فى فضل الدعاء ابواب الدعوات)

(۴) عن سلمان الفارسى قال قال رسول الله ﷺ لا يرد القضآء الا الدعاء ولا يزيد فى العمر الا البر رواه الترمذى. (مشكواة المصابيح ص۱۹۵ جلد۱ كتاب الدعوات الفصل الثانى)

# د دعــا آداب

د دعا کولو ډېر آداب دي چه د هغې خپله درجه کښې لحاظ کول ډېر اهم دي.

(الف) دواړه لاسونه اوچتول. کمافی البیهقی یرفع یدیه فی الدعاء (۱) لیکن په مونځ کښې به عام طور سره نه شی اوچتولي.

**کما فی مصنف ابن ابی شیبه ان رسول الله ﷺ لم یکن یرفع یدیه حتی یفرغ من صلاته**

(ب) د دعا نه مخکښې حمد او ثنا او درود وئیل.

**لحدیث ابی داؤد اذا صلیت فقعدت فاحمد الله بما هو اهله وصل علی ثم ادعه﴿۲﴾**

(ج) ناجائز سوال نه کول. لحدیث مسلم یستجاب لعبدمالم یدع باثم اوقطیعة رحم(۳)

(د) په توجه سره غوښتل او د قبلیدلو یقین کول. لحدیث الترمذی ادعوالله **وانتم موقنون بالاجابة واعلموا ان الله لا یستجیب دعاء من قلب غافل لاه ﴿۴﴾.**

(ه) په عزم او اصرار سره دعا کول. لحدیث البخاری اذا دعااحدکم فلیعزم المسئلة

---

**﴿۱﴾ عن انس قال کان رسول الله ﷺ یرفع یدیه فی الدعاء حتی یری بیاض ابطیه. (مشکواة المصابیح ص۱۹۶ جلد۱ ابواب الدعوات الفصل الثالث)**

**﴿۲﴾ عن فضالة بن عبید قال بینما رسول الله ﷺ قاعد اذ دخل رجل فصلی فقال اللهم اغفرلی وارحمنی فقال رسول الله ﷺ عجلت ایها المصلی اذاصلیت فقعدت فاحمد الله بما هو اهله وصل علی ثم ادعه قال ثم صلی رجل آخر بعد ذلک فحمد الله وصلی علی النبی ﷺ فقال له النبی ﷺ ایها المصلی ادع تجب رواه الترمذی وروی ابوداؤد والنسائی نحوه. (سنن الترمذی ص۱۸۶ جلد۲ باب ماجاء فی جامع الدعوات)**

**﴿۳﴾ عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ یستجاب للعبد مالم یدع باثم او قطیعه رحم الخ رواه مسلم. (مشکواة المصابیح ص۱۹۴ جلد۱ کتاب الدعوات الفصل الاول)**

**﴿۴﴾ سنن الترمذی ص۱۸۶ جلد۲ باب ماجاء فی جامع الدعوات)**

وعن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ لا یقولن احدکم اللهم اغفرلی ان شئت اللهم ارحمنی ان شئت لیعزم المسئلة فانه لا مکره له﴿۱﴾.

(و) د دعا الفاظ درې څلې وئیل.

لحدیث مسلم وابی داؤد ان رسول الله ﷺ کان یعجبه ان یدعو ثلاثا﴿۲﴾.

(ز) د قبلیدلو جلتي نه کول حوصله او همت اوچت ساتل.

لحدیث البخاری یستجاب للعبد ما لم یعجل﴿۳﴾.

(ح) په آخره کښې آمین وئیل لحدیث ابی داؤد ختم بآمین فقد اوجب﴿۴﴾

(ط) آخره کښې په مخ لاسونه رابښکل.

لحدیث ابی داؤد قال علیه الصلاة والسلام فاذا فرغتم فامسحوا بها جوهکم﴿۵﴾

(ی) د حرامو نه بچ کیدل.لحدیث مسلم مطعمه حرام و مشربه حرام وملبسه حرام وغذی بالحرام فانی یستجاب لذلک رواه مسلم﴿۶﴾.

(ک) په جمعي سره دعا کول حضرت موسی علیه السلام او هارون علیه السلام په هیئت اجتماعي سره دعا کړې وه الله (ج) فرمائی:

قد اجیبت دعوتکما ، وفی تفسیر القرطبی ص ۳۷۵ جلد۸ عن ابی العالیه کان موسیٰ علیه السلام یدعو وهارون علیه السلام یؤمن﴿۷﴾

---

﴿۱﴾ (صحیح البخاری ص۹۳۸ جلد۲ باب لیعزم المسئلة فانه لا مکره له کتاب الدعوات)
﴿۲﴾ (سنن ابی داؤد ص۲۲۰ جلد۱ باب فی الاستغفار کتاب الصلاة)
﴿۳﴾ (صحیح البخاری ص۹۳۸ جلد۲ باب یستجاب للعبد ما لم یعجل کتاب الدعوات)
﴿۴﴾ (سنن ابی داؤد ص۱۴۲ جلد۱ باب التأمین وراء الامام)
﴿۵﴾ (سنن ابی داؤد ص۲۱۶ جلد۱ باب الدعاء کتاب الصلاة)
﴿۶﴾ (مشکواة المصابیح ص۲۴۱ جلد۱ باب الکسب وطلب الحلال الفصل الاول)
﴿۷﴾ (تفسیر قرطبی ص۳۷۵جلد۸ سورة یونس آیت ۸۹ رکوع: ۱۴)

او پیغمبر علیه السلام په جمعي سره ددعا ترغیب ورکړې دي:
**کما رواه الحاکم و ذکر فی کنز العمال قال النبی صلی الله علیه وسلم لا یجتمع ملأ فیدعو بعضهم ویؤمن بعضهم الا اجابهم الله تعالیٰ وکما رواه الدارمی وذکره الحافظ فی الفتح ما اجتمع ثلاثة قط بدعوة الا کان حقا علی الله ان لا یرد ایدیهم﴿۱﴾**
اوعلامه مرغیناني په هدایه کتاب الحج کښې لیکلي دی: والاجابة فی الجمع ارجیٰ(۲)

ل) د قبلید لو په وختو نو کښې دعا کول. دغه وختو نه ډیر دي خو دلته ینځه ذکر کیږي. (۱) داذان وخت(۲) د صحیح جنګ په وخت کښې(۳) د باران په وخت کښې، کما فی حدیث ابی داؤد ثنتان لا تردان الدعاء عندالنداء وعند **الباس حین یلحم بعضهم بعضا وفی روایة وتحت المطر﴿۳﴾**
(۴) د شپې په آخري حصه کښې(۵)د فرض مونځ نه پس،
**کما فی حدیث الترمذی قیل یا رسول الله ای الدعاء اسمع قال جوف اللیل الاخر ودبر الصلوات المکتوبات﴿۴﴾.**

**د ذکر وغیره د پاره ټولګي جوړول:** عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په هیئت اجتماعي سره ذکرکولو باندې انکار کړې دې. کما رواه الحاکم باسناده(۵) نو ددې روایت دا معلومیږي چه ټولګي جوړول ناجائزدي ددې جواب دادې چه پیغمبر علیه السلام په هیئت اجتماعي سره ددعا کولو ترغیب ورکړې او دغه شان ئې په هیئت اجتماعیه سره د ذِکر کولو ترغیب هم ورکړې. کما فی حدیث الترمذی اذا **مررتم بریاض الجنة فارتعوا، قالوا وما ریاض الجنة قال حلق الذکر﴿۶﴾**

---

﴿۱﴾ (فتح الباری شرح صحیح البخاری ص۳۰۸ جلد۱۴ باب التأمین)
﴿۲﴾ ( هدایه علی صدر فتح القدیر ص ۳۶۹ جلد۲ باب الاحرام کتاب الحج)
﴿۳﴾ وفی روایة تحت المطر رواه ابوداؤد والدارمی الا انه لم یذکر وتحت المطر. (مشکواة المصابیح ص ۶۶ جلد ۱ باب فضل الاذان واجابة الموذن الفصل الثانی)
﴿۴﴾ (سنن ترمذی ص ۱۸۸ جلد۲ باب ماجاء فی جامع الدعوات)
﴿۵﴾ (مسند دارمی ص ۶۸ جلد ۱ باب فی کراهه اخذ الرائ)
﴿۶﴾ (سنن ترمذی ص ۱۸۹ جلد ۲ باب ماجاء فی تهد التسبیح بالید)

**وکما فی حدیث مسلم، ان رسول الله ﷺ خرج علی حلقة من اصحابه فقال ما اجلسکم ههنا قالوا، ذکر الله فی آخره اتانی جبرائیل علیه السلام فاخبرنی ان الله تعالیٰ یباهی بکم الملائکة﴿۱﴾ وکما فی حدیث ملائکة سیاحین هم ای الذاکرون قوم لا یشقی بهم جلیسهم ﴿۲﴾.**

حدیث د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه موقوف دي او حدیث موقوف د حدیث مرفوع په مقابله کښي مرجوح او متروک وي. ﴿۳﴾ او یا داچه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د نیکو په شمارلو او دګناهونو شمارلو په پریخودلو باندي انکار کړي دي نه د ټولګو په جوړولو باندي،

**کما فی سنن الدارمی ص ۶۱ جلد ۱ فقال عبد الله بن مسعود ما هذا الذی اراکم تصنعون قالوا یا عبد الرحمن حصی نعدبه التکبیر والتهلیل والتسبیح قال فعدوا سیأتکم فاناضامن ان لا یضیع من حسناتکم**

اودا ممکنه ده چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ددي فعل نه دخپل حیثیت نه په زیات اهتمام کولو باندي انکار کړي وي.

---

**﴿۱﴾(رواه مسلم، مشکوٰة المصابیح ص۱۹۸ جلد ۱ باب ذکر الله والتقرب الیه الفصل الثالث)**

**﴿۲﴾عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ ان لله ملائکة یطوفون فی الطرق یلتمسون اهل الذکر فاذا وجدوا قوما یذکرون الله تنادو ...... قال هم الجلساء لا یشقی جلیسهم رواه البخاری وفی روایة مسلم قال ان لله ملائکة سیارة فضلا یبتغون مجالس الذکر فاذا وجدوا مجلساً فیه ذکر قعدوا معهم ...... فیقول وله غفرت هم القوم لا یشقی بهم جلیسهم. (مشکوٰة المصابیح ص۱۹۷ جلد ۱ باب ذکر الله والتقرب الیه)**

**وعن ابی هریرة او عن ابی سعید الخدری قال قال رسول الله ﷺ ان لله ملائکة سیاحین والارض فضلا عن کتاب الناس...... فیقول هم القوم لا یشقی لهم جلیس هذا حدیث حسن صحیح وقدروی عن ابی هریرة من غیر هذا الوجه. (سنن الترمذی ص ۱۹۹ جلد۲ باب ای الکلام احب الی الله)**

**﴿۳﴾ قال العلامه السید شریف علی الجرجانی: المرفوع هو ما اضیف الی النبی ﷺ خاصة من قول او فعل او تقریر سواء کان متصلا او منقطعاً...... والموقوف وهو مطلقا ما روی عن الصحابی من قول او فعل متصلاً کان او منقطعاً وهو لیس بحجة علی الاصح الخ. (الرسالة فی فن اصول الحدیث للسید شریف علی الجرجانی ص ۲،۳ الملحقه بالترمذی)**

**د لفظ دبر تشریح** :د دبر الصلوة په دوه مطلوبونو باندې اطلاق کیږي یو د سلام نه مخکښې باندې،اودا مطلب واضح دې،ځکه چه دُبرشئ د یوڅیز روسته جز ته وئیلې شی،او دویم اطلاق روستو او د مونځ نه بهر باندې هم کیږي لکه چه د مسلم شریف په حدیث کښې راغلی دی.معقبات لا یخیب قائلهن دبر کل صلاة ثلاث وثلثون تحمیدة واربع وثلاثون تکبیرة.(۱).

او دغه شان دا حدیث په ترمذی شریف کښې هم راغلې دې.

**فائده**:.دبر المکتوبات دفرضونه پس ته وائي که متصل وي او که منفصل وي د متصل پورې خاص نه دي ځکه چه پیغمبر ﷺ د دعا او تسبیحاتو دواړو ترغیب په لفظ د (دبر) سره ورکړې او دا ناممکن ده چه دواړه عملونه په یو وخت کښې فرضونو پسې متصل اوکړې شي.که مخکښې شی دعا اوکړې نو تسبیحات به دبرالفرائض نه شي،او جمع بین التسبیحات والدعاء به دسنتو خلاف شي.او حال دا چه دا دهیچا قول هم نه دې،چه دعا مخکښې اوکړې شی او روسته به تسبیحات اوکړې شي یا ددې په عکس سره، په دیکښې یو هم د سنتو نه خلاف نه دي، نو معلومه شوه چه د فرضو او دعا فصل (جدا والي) په تسبیحاتو سره جائزدې،اودغه شان د فرضواو تسبیحاتو فصل په دُعا سره جا ئز دې نو لازمه شوه دا خبره چه لفظ دُبر دا تصال تقاضا نه کوي. نو چه کله د فرضو او دُعا فصل په تسبیحاتو سره د دعا بعد المکتوبات د پاره مُضِر نه دې ځکه چه تسبیحات سنن مرغوبه دي نو دغه شان به دفرضو او د عا فصل په سنت مونځ سره هم ضرر والا نه وي بلکه بالکل به هیڅ ضرر نه ورکوي. ځکه چه د سنت مونځ اتصال د فرضو سره ډیر

(۱)عن کعب بن عجرةُ قال قال رسول اللهﷺ معقبات لا یخیب قائلهن او فاعلهن دبر کل صلوٰة مکتوبة ثلث وثلثون تسبیحة وثلث وثلثون تحمیدة واربع وثلثون تکبیرة رواه مسلم.(مشکواة المصابیح ص ۸۹ جلد ۱ باب الذکر بعد الصلوات)

زیات دي په نسبت سره اتصال د تسبیحاتو فرضونو پورې او د قیامت په ورځ به سنت مونځ د فرضو قائم مقام جوړ یږي نه تسبیحات، فقهائې کرامو تصریح کړې ده چه کوم ذکر وغیره د مؤکد سنتو نه وروستو اوشي هغې ته به دبر المکتوبات وئیلي کیږي. علامه شامي په رد المحتار کښې فرمائي:

**واما ما ورد من الاحادیث فی الاذکار عقیب الصلاة فلا دلالة فیه علی الاتیان بها قبل السنة بل یحمل علی الاتیان بها بعدها لان السنة من لواحق الفریضة وتوابعها ومکملاتها فلم تکن اجنبیة عنها، فما یفعل بعدها یطلق علیه انه عقیب الفرائض، انتهیٰ(ص ۴۹۴ جلد ۱)﴿۱﴾**

او محقق ابن الهمام فتح القدیر کښې فرمائي ﴿۲﴾

**وما ورد انه ﷺ کان یقول دبر کل صلاة لا اله الا الله وحده...... الی ان قال...... لا یقتضی وصل هذه الاذکار بل کونها عقیب السنة من غیر اشتغال بما لیس هو من توابع الصلاة یصحح کونه دبرها، انتهیٰ (ص ۳۱۳ جلد ۱)﴿۲﴾.**

**په هیئت اجتماعي سره دعا کول:** په اهل علمو باندې دا خبره څه پټه نه ده چه پیغمبر علیه السلام په بعضې وختونو کښې په هیئت اجتماعي سره د جُمعې مبارکې په خطبه کښې دعا کړې په بخاري شریف (ص ۱۴۰ جلد ۱) کښې روایت دې.

**فرفع رسول الله ﷺ یدیه یدعو ورفع الناس ایدیهم مع رسول الله ﷺ یدعون﴿۳﴾**

اوبعضې وختونو کښې ئې انفرادی طورسره د سحرنه پس دعا کړې ده. یا ئې مخ قبلې طرف ته کړې،

**کما روی الحاکم وابن ابی شیبه ان رسول الله ﷺ رفع یدیه بعد ما سلم وهو مستقبل القبلة فقال، اللهم اخلص الولید الی آخره (وذکر الحافظ ابن کثیر فی تفسیره ص ۱۷۲ جلد۳) اویابه مخ قوم طرف ته وو ، کما روی ابن ابی شیبه فی مصنفه قال ابو الاسود صلیت مع رسول الله ﷺ فلما سلم انحرف ورفع یدیه ودعا﴿۴﴾.**

**﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۹۱ جلد ۱ قبیل مطلب فی ما لو زاد علی العدد الوارد عقب الصلاة)**

**﴿۲﴾(فتح القدیر ص ۳۸۳، ۳۸۴ جلد ۱ باب النوافل)**

**﴿۳﴾(صحیح البخاری ص ۱۴۰ جلد ۱ باب رفع الناس ایدیهم مع الامام فی الاستسقاء)**

**﴿۴﴾ وفی منهاج السنن: واما رفع الایدی عند الدعوات خارج الصلوٰة فقد ثبت باحادیث کثیرة قولیة وفعلیة فی الامهات الست وغیرها منها ما اخرجه ابن ابی حاتم وذکره الحافظ ابن کثیر فی تفسیره ص ۱۷۲ جلد۳ عن ابی هریرة ان رسول الله ﷺ رفع یدیه......(بقیه حاشیه په راروان مخ..)**

د فرضو یا سنتو نه پس په هیئت اجتماعي سره ددعـ کولو متعلق دا حادیثو ذخیره چپ ده.د دعا کولو متعلق هم روایت نشته اود نه کولو متعلق هم نشته. دیته عدم ذکر او عدمِ روایت وائي او که څوک دا دعویٰ اوکړي چه پیغمبر علیه السلام دا دعا نه ده کړې نو هغه په پیغمبر علیه السلام باندې افتراء اوکړه. او دغه شان که څوک دا دعویٰ اوکړي چه پیغمبر علیه السلام دا دعا کړې ده نو هغه هم افتراء اوکړه.

اوکه څوک دا وائي چه که دا دعا ئې کړې وې نو روایت شوې به وې نو دهغه مخالف به دا اووائي که دا دعا ئې نه وې کړې نودا نه کول به روایت شوې وو. لکه چه د اختبر د مونځ د پاره اذان او اقامت نه دې شوې او دا نه کیدل روایت شوې دي. (کما فی روایة ابی داؤد ص۱۶۹ وغیره) (۱) بهرحال په جَمعي سره ددې دعا متعلق او دغه شان د اللهُم انت السلام متعلق دعا ګانونه داحادیثو ذخیره چپ ده او د عدمِ ذکر او ذکر دَ عدم په مینځ کښې فرق نه کول غباوت یا غوایت دې. (۲)

---

(بقیه حاشیه) بعد ما سلم وهو مستقبل القبلة فقال اللهم اخلص الولید بن الولید الی آخر الدعاء وفی سنده علی بن زید بن جد عان وهو متکلم فیه والراجح انه لا ینزل عن درجة الحسن کیف وقال یعقوب هذا حدیث صحیح وقال العجلی وابن عدی یکتب حدیثه وقال ابن دقیق العید، علی بن زید وان ضعف فقد ذکر بالصدق...... واما اخرجه ابن ابی شیبة فی مصنفه من حدیث الاسود العامری عن ابیه هو عبد الله بن حاجب بن عامر قال صلیت مع رسول اللهﷺ الفجر فلما سلم انصرف ورفع یدیه. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص۱۷۲ جلد۲ باب ما یقول اذا سلم) (تفسیر ابن کثیر ص۱۷۰ جلد۱ سورة النساء آیت:۹۸)

(۱) عن ابن عباس ان رسول اللهﷺ صلی العید بلااذان ولا اقامة وابابکر وعمر او عثمان شک یحیٰ. (سنن ابی داؤد ص۱۷۰ جلد۱ باب ترک الاذان فی العید)

(۲) حضرت لعلامه مفتي اعظم کفایت الله دهلوي رحمه الله فرمائ چه که د شیخ (عبدالحق محدث دهلوي) مراد داوي لاس اوچتول او آمین آمین وئیل وئیل ثابت نه دي نود هغې جواب دادي چه په احادیثو کښې ددې خبرې نه ذکر کیدل چه پیغمبر علیه السلام به دعا کښې لاس اوچتول ددې خبرې دلیل نه دې چه لاس ئې نه اوچتول. دیو څیز په نه ذکر کولو سره د هغې عدم (نیشتوالې) نه لازمیږي.,,فان عدم الثبوت لایستلزم ثبوت العدم وهذا ظاهرجداً. . لکه چه د روایتونو نه دا نه دې ثابت شوي چه لاسونه ئې اوچتول نو دغه شان دا هم په یو روایت کښې نشته چه لاسونه ئې نه اوچتول. (کفایت المفتي ص ۳۴۸ جلد ۳ فصل سوم فرائض کے بعد دعا کی مقدار کیاهے)

**د پیغمبر علیه السلام په قول فعل او تقریر سره ثابت کار بدعت نه دي**

د پیغمبر علیه السلام قول او تقریر ته حدیث وائي (۱) نو یو کار به هله د سنتو نه خلاف او بدعت وي چه نه د پیغمبر علیه السلام د قول نه ثابت وي او نه د فعل یا تقریر نه نو دا دعوي کول چه دا کار بدعت دې ځکه چه پیغمبر علیه سلام نه دي کړي غباوت یا غوایت دې.

**د مونځ نه پس په هیئت اجتماعي سره دعا کول** :د مونځ نه پس په هیئت اجتماعي سره دعا کولو نه د پیغمبر عله السلام فعل چپ دې البته د پیغمبر علیه السلام قول ثابت دې هغه حدیث د د بر المکتوبات دې رواه الترمذي(۲) او په دې حدیث کښې نه د رفع الیدین ذکر شته او نه د حمد وصلوة او نه د آمین او په مخ لاس رانښکل شته. او نه پکښې د انفراد او اجتماع ذکر شته لیکن قاعده دا ده چه ,,اذا ثبت الشي ثبت بادابه ولوازمـــه،، بهر حال په دې دعا کښې به ددې د آدابو لحاظ اوساتلې شي برابره خبره ده که دا دعا د فرضو نه پس وي او که د سنتو نه پس وي.

**د دعا بعد السنت باره کښې د فقهاؤ اقوال:**

په شرح شرعة الاسلام کښې ئې لیکلي دی:

**ویغتنم بعد المکتوبة قبل السنة علی ما روی عن البقالی (المعتزلی فی الاصول، الحنفی فی الفروع مثل صاحب الکشاف) من انه قال الافضل ان یشتغل بالدعاء ثم بالسنة، وبعد السنن والاوراد علی ما روی عن غیره وهو المشهور المعمول فی زماننا فانه مستجاب بالحدیث (تعلیق الکوکب الدری ص ۱ ۲۹ جلد۲) قلت ومثل قول البقالی مروی عن الامام**

---

**﴿۱﴾ قال الشیخ عبد الحق الدهلوی: اعلم ان الحدیث فی اصطلاح جمهور المحدثین یطلق علی قول النبی صلی الله علیه وسلم وفعله وتقریره ومعنی التقریر انه فعل احد او قال شیأً فی حضرته صلی الله علیه وسلم ولم ینکر ولم ینهه عن ذلک بل سکت وقرر.**

**(مصطلحات علم الحدیث الملحقه بالمشکواة المصابیح ص ۳ للشیخ عبد الحق الدهلوی)**

**﴿۲﴾قیل یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ای الدعاء اسمع قال جوف اللیل الاخر و دبر الصلوات المکتوبات. (سنن ترمذی ص۱۸۸ جلد۲ باب ماجاء فی جامع الدعوات)**

جعفرالصادق فی الطبرانی ﴿۱﴾ پس د امام بقالي رحمہ اللہ په نزد باندې د فرضونه پس دعا کول افضل دي او ديته د اکثر اکابرينو ميلان دې او د جمهورو په نزد بعدالسنن افضل ده، او فقهائي کراموداقول غوره کړي. دعلامه ابن الهمام او ابن عابدين رائې مخکښې ذکر شوې ابن نجيم صاحب د بحرالرائق فرمائي

**لکن عندنا السنة مقدمة على الدعاء الذى هو عقب الفراغ (ص۳۰۴ جلد۸)**

او صاحب د مراقي الفلاح علامه حسن شرنبلالي فرمائی:

**ويستحب للامام بعد سلامه ان يتحول الى جهة يساره لتطوع بعد الفرض ويستحب ان يستقبل بعده اى بعد التطوع وعقب الفرض ان لم يكن بعده نافلة، يستقبل الناس...... ثم يدعون لانفسهم وللمسلمين رافعى ايديهم ثم يمسحون بها وجوههم انتهىٰ بحذف (الطحطاوی ص۲۵۳ تا ۲۵۷)**

او په (الا شباه والنظائر کښې ابن نجيم او په شرحة اشهاه کښې حموی فرمائی: (الاشتغال بالسنة عقيب الفرض افضل من الدعاء،ص۱۲۷، ۱۲۸)

صاحب د خلاصه الفتاوی علامه طاهربن عبدالرشيد البخاري فرمائي (بعدالفريضة الاشتغال بالسنة اولى من الاشتغال بالدعاء ص۹۵ جلد۱)

او علامه قسطلاني په ارشاد الساري شرح دبخاري کښې فرمائي:

**وعند الحنفية يكره له المكث قاعداً ليشغل بالدعاء لان القيام الى السنة بعد اداء الفريضة افضل من الدعاء والتسبيح والصلاة (ص۱۴۴ جلد۲).**

**په التزام او دوام کښې فرق:** التزام د مالا يلزم او دَ يو څيز د هغې د حيثيت نه زيات اهتمام کول بد عات دي، الله تعالىٰ نه هغې انصارو باندې انکار کړيدې چا چه د احرام پر حالت کښې خپلو کورونو ته د شا طرفنه د راتللو اهتمام کړې وو، الله تعالىٰ فرمائی: وليس البر بان تاتوا البيوت من

---

**﴿۱﴾ وفى السعاية نقلا عن المواهب للقسطلانى نقلا عن الحافظ بن الحجر اخرج الطبرانى من رواية جعفر بن محمد الصادق قال الدعاء بعد المكتوبة افضل من الدعاء بعد النافلة كفضل المكتوبة على النافلة.**

**(سعايه شرح هدايه ص۲۵۸ جلد۲ باب صفة الصلاة)**

ظهورها ولکن البر من اتقی، واتوا البیوت من ابوابها (سورة البقرة) ﴿۱﴾
او عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په هغه خلقو باندې انکار کړې وو کومو چه د مونځ نه پس ښي طرفته ګرځیدل لازم ګڼړل.

**قال لا یجعل احدکم للشیطان شیأ من صلاته یری ان حقاً علیه ان لا ینصرف الا عن یمینه (بخاری ص ۱۱۸ جلد ۱)﴿۲﴾**

او ملا علي قاري رحمه الله فرمائي:

**من اصر علی امر مندوب وجعله عزما ولم یعمل بالرخصة فقد اصاب منه الشیطان من الاضلال (مرقاة ص ۳۵۳ جلد۲)﴿۳﴾.**

التزام په دوه قسمه دې یو حقیقي دې چه یو څیز واجب نه وي او د لزوم او وجوب عقیده ئې اولري. اودا د نذر په صورت کښې جائزدې اود نذرنه علاوه مکروه او بدعت دې، دویم التزام حکمي دې. چه یو څیز واجب او لازم نه ګڼړي لیکن د خپل حیثیت نه ئې زیات اهتمام کوي لکه په عبدالله بن سلام رضی الله عنه باندې چه ازمائش راغلې وو او الله (ج) د هغې نه انکار اوکړو او دا آیت نازل شو.

**یا ایها الذین آمنوا ادخلوا فی السلم کافة ولا تتبعوا خطوات الشیطان (بقرة) ﴿۴﴾**

---

﴿۱﴾ (سورة البقرة پاره: ۲ رکوع: ۷ آیت: ۱۸۹)

﴿۲﴾ (صحیح البخاری ص ۱۱۸ جلد ۱ باب الانفتال والانصراف عن الیمین والشمال)

﴿۳﴾ (مرقاة المفاتیح شرح مشکواة المصابیح ص ۳۵۳ جلد ۲ باب الدعاء فی التشهد)

﴿۴﴾ قال العلامه حافظ عماد الدین ابن کثیر: یقول الله تعالیٰ امراً عباده المؤمنین به المصدقین برسوله ان یأخذو بجمیع عری الاسلام وشرائعه والعمل بجمیع اوامره وترک جمیع زواجره ما استطاعوا من ذلک...... وزعم عکرمه انها نزلت فی نفر ممن اسلم من الیهود وغیرهم کعبد الله بن سلام واسد بن عبید وثعلبة وطائفه استأذنوا رسول الله صلی الله علیه وسلم فی ان یسبتو وان یقوموا بالتوراة لیلاً فامرهم الله باقامة شعائر الاسلام والاشتغال بها عما عداها، وفی ذکر عبد الله بن سلام مع هؤلاء نظر، اذ یبعد ان یستأذن فی اقامة السبت وهو مع تمام ایمانه یتحقق نسخه ورفعه وبطلانه والتعویض عنه باعیاد الاسلام.
(تفسیر ابن کثیر ص ۳۲۴ جلد ۱ سورة البقرة آیت: ۲۰۸)

او دغه شان د انصارو آزمائش چه د (ليس البر ان تاتوالبيوت من ظهورها) (۱) سره ئې انکار نازل شو. البته په التزام او دوام کښې فرق کول ضروري دي. التزام بالمستحب ممنوع دي او دوام بالمستحب مطلوب دي.

**قال رسول الله ﷺ خير العمل ماديم عليه وقال رسول الله ﷺ احب الاعمال الى الله ادومها وان قل، رواه البخارى ومسلم عن عائشة رضى الله عنها (۲)**

د التزام او دوام په مينځ کښې د عموم او خصوص من وجه نسبت دي کوم خلق په د فرضو يا سنتو نه پس هميشه دعا کوي او التزام ئې کوي نو هغوي ددوام او التزام دواړو مرتکب شو. او کوم کس چه د فرض يا سنتو نه پس کله کله دعا کوي او التزام کوي نو هغه التزام اوکړو او دوام نه. اوکوم کس چه دفرضو يا سنتو نه پس هميشه دعاکوي ليکن نه ورته لازم وائي او په پريخو دونکي باندې انکار هم نه کوي نو هغه دوام اوکړو او التزام نه او د بدعت نه بچ شو البته د عوامو د اصلاح د پاره کله کله د فرضو اوسنتو نه پس دعا نه کول مناسب دي چه په التزام کښې مبتلا نه شي.

**د سنتو نه روستو درې ځلې دعا کول مباح ده:**

حضور ﷺ د زيارت القبور په وخت کښې درې ځلې دعا کړې.

**كما فى مسلم (ص ۳۱۲ جلد ۱) جاء النبى ﷺ البقيع فقام فاطال القيام ثم رفع يديه ثلاث مرات ثم انحرف (۳)**

او د فرضو يا سنتو نه پس درې ځلې دعا کول نه مطلوب دي اونه ممنوع دي بلکه مباح کار دې اوهرهغه مباح چه په هغې باندې د عوامو عقيده سنت جوړه شي هغه مکروه جوړيږي.

**كما فى شرح الكبير كل مباح يودى اليه اى الى اعتقاد الجهلة سنيتها فمكروه (۵۷۳) (۴)**

---

(۱) (سورة البقرة پاره: ۲ رکوع: ۷ آيت: ۱۸۹)

(۲) (مشكواة المصابيح ص ۱۱۰ جلد ۱ باب القصد فى العمل الفصل الاول)

(۳) (صحيح مسلم شريف ص ۳۱۳ جلد ۱ فصل فى التسليم على اهل القبور والدعاء لهم)

(۴) (غنية المستملى المعروف بالكبيرى ص ۵۶۹ فصل فى مسائل شتىٰ)

## د مونځ نه پس د څو معمولاتو باره کښې فقهي مسئلې

د کوم مونځ نه پس چه سنت نه وي نو دامام خو ښه ده چه په خپل ځائې کینې او که پاسي لیکن قبلې طرفته به د. اللهم انت السلا م (الخ) د مقدار نه زیات نه کیني. (بدائع) او د ترمذي شریف دحدیث په بنا باندې د سحر اود ماښام د مونځ د فرضو نه پس د اشهد ان لا اله الا الله...الخ.. لس ځلې وئیلو په مقدار باندې ناسته پکښې داخل نه ده. (مراقي الفلاح وطحاوی ص۲۵۲، ۲۵۳) او چه کله کیني نو د هغه خو ښه ده چه ښې طرفته مخ اړوي او که کس طرفته او یا خلقو ته مخ کوي لیکن دا هله چه مخا مخ څوک مونځ کونکې نه وي. (بدائع) او د کوم مونځ نه پس چه سنت وي نو امام دې د اللهم انت السلام... الخ په مقدار کیني بیا دې سنت اوکړي. (مراقي الفلاح وطحطاوی ص۲۵۲) سنت دې هغه ځائې کښې نه کوي کوم ځائې کښې چه ئې فرض کړۍ وي (بدائع ص ۱۶۱ جلد۱) البته که څوک مقتدي ئې د فصل (جداوالي) او انتظار نه پس دغه ځائې کښې سنت اوکړي نو دا جائز دي (حدیث ابوداؤد)(۱) (تمت المقالة في الدعاء)

## د فرض اوسنتوپه مینځ کښې کیناستل او اللهم انت السلام دواړه سنت دي

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د فرضو او سنتو په مینځ کښې صرف دا کیناستل سنت دي او که نه د اللهم انت السلام لو ستل هم په سنتو کښې شامل دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: لعل مرجان هنګو.........۲۴\۸\۱۹۷۲ء

---

(۱) عن الازرق بن قیس...... فقال الرجل الذی ادرک معه التکبیرة الاولیٰ من الصلوٰة یشفع فوثبت الیه عمر فاخذ بمنکبیه فهزه ثم قال اجلس فانه لم یهلک اهل الکتاب الا انهم لم یکن بین صلواتهم فصل فرفع النبیﷺ بصره فقال اصاب الله بک یاابن الخطاب. (سنن ابی داؤد ص ۱۵۱ جلد۱ باب فی الرجل یتطوع فی مکانه الذی صلی فیه المکتوبة)

**الجواب**: دواړه سنت دي (۱) وهوالموفق

---

(۱) قال ابن عابدين رحمه الله: (قوله الا بقدر اللهم) لما رواه مسلم والترمذی عن عائشة رضی الله عنها قالت كان رسول اللهﷺ لا يقعد الا بمقدار ما يقول اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت يا ذالجلال والاکرام واما ما ورد من الاحاديث فی الاذکار عقيب الصلاة فلا دلالة فيه على الاتيان بها قبل السنة بل يحمل على الاتيان بها بعدها لان السنة من لواحق الفريضة وتوابعها ومكملاتها فلم تكن اجنبية عنها فما يفعل بعدها يطلق عليه ان عقيب الفريضة وقول عائشة بمقدار لا يفيد انه كان يقول ذلک بعينه بل كان يقعد بقدر ما يسعه ونحوه من القول تقريبا فلا ينا فی ما فی الصحيحين من انهﷺ كان يقول فی دبر كل صلاة مكتوبة لا اله الا الله وحده لا شريک له له الملک وله الحمد وهو على كل شئ قدير اللهم لا مانع لما اعطيت ولا معطی لما منعت ولا ينفع ذا الجد من الجد وتمامه فی شرح المنية.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۹۱ جلد ۱ مطلب هل يفارقة الملكان اداب الصلاة)

...

# باب آداب الصلوة

## د فرضو ادا کولو نه پس به امام سنت کوم ځائي کښې کوي؟

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بعضې خلق وائي د ماسپښين. ماښام او ماسخوتن مونځونو نه پس د امام د پاره په محراب کښې سنت کول مکروه دي. آيا دا خبره صحيح ده؟ بينوا توجروا،

المستفتي: ملک جهانزيب آفريدي دره آدم خيل کوهاټ.... ۳۰ اګست ۱۹۸۹ء

**الجواب:** دکومو فرضونو نه پس چه سنت وي نو د فرض کولو والا امام د پاره مستحب دي چه مخکښې شي يا روستو شي يا ښي طرفته شي يا ګس طرفته شي او يا کور ته لاړ شي (۱) فقط

## د پټکي سره مونځ کول د ډير ثواب ذريعه ده

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د امام دپاره پټکې ضروري دې که نه؟ او دا هم واضحه کړئ چه د پټکي ترلو ثواب او يا درجې زيات دي ايا دا صحيح ده؟ بينوا توجروا،

المستفتي: فضل کريم صوابي........۲۷\ذي قعده۱۳۹۵هـ

**الجواب:** پټکې وهل د هر مسلمان د پاره د خير کار دې او مستحب دي، خصوصاً دمونځ په وخت کښې د ډير ثواب ذريعه ده.

كما فى الفردوس الديلمى عن جابر ركعتان بعمامة خير من سبعين ركعة بلا عمامة

---

(۱) قال الحصكفى: يستحب للامام التحول ليمين القبلة الخ و قال العلامه ابن عابدين رحمه الله: وان كان بعدها تطوع وقام يصليه يتقدم او يتأخر او ينحرف يمينا او شمالاً او يذهب الى بيته فيتطوع ثمة. (ردالمحتار ص ۳۹۲ جلد ۱ مطلب فيما لو زاد على العدد الوارد فى التسبيح عقب الصلاة آداب الصلاة)

وفيه ايضاً الصلوٰة فى العمامه عشر الاف حسنة كما فى كشف الحقائق ص۷۷﴿۱﴾
او د امام سره ددې خاص کول جها لت دې.....وهوالموفق

## اللهم انت السلام وئيلو وخت كنبې لاس اوچتول

**سوال:** علمائې دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د اللهم انت السلام وئيلو وخت کښې لاسونه اوچتول بدعت دې که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: حبيب الله خان ايبټ آباد............۲۶\۳\۱۹۸۵

**الجواب:** فعل درسول ﷺ د اللــهم انــت الــسلام وئيلو وخت کښې د لاس اوچتولو نه خاموش دې ددې متعلق نه اثبات روايت شوې او نه نفي او دسکوت (چپوالي) نه نفي جوړول کم فهمي يا بد فهمي ده. وهوالموفق

## د فرضو مونځ نه پس جهراً دعا كول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د فرض مونځ نه پس جهراً دعا کول پکاردي که په پټه،او مستحب کومه طريقه ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد سليمان کراچي.............۱۲\جمادي الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دمونځ نه پس دامام په جهر سره دعا کول غوښتل او د مقتديانو آمين وئيل جائز دي. (لحديث ورد بذالک کما فی فتح الباری) ﴿۲﴾ ليکن مسبوق وغيره ته د تکليف په وجه باندې ناجائز دي (حموي) ﴿۱﴾ وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال القارى: وكذا ما اورده الديلمى من حديث ابن عمر مرفوعاً: صلاة بعمامة تعدل خمسا وعشرين...... ومن حديث انس مرفوعا الصلاة فى العمامة بعشرة آلاف حسنة قلت: مروى ابن عمر نقله السيوطى عن ابن عساكر فى جامعه الصغير مع التزامه بانه لم يذكر فيه الموضوع. (الموضوعات الكبرىٰ للقارى ص۱۴۷ رقم حديث: ۵۶۳)

﴿۲﴾ قال الحافظ ابن حجر العسقلانى: قوله (باب التامين) يعنى قول آمين عقب الدعا ذكر فيه حديث ابى هريرة اذا امن القارى فأمنوا، والمراد بالقارى...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## د پټکي شرعي حیثیت او مقدار

**سوال:** علمائي دین دي مسئلې باره کښې څه فر مائي چه پټکې به صرف د مونځ د پاره وهلي کیږي او که په نو رو وختو نو کښې به هم سنت وی؟ ددې شرعي حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتي:روح الامین فائنل شعبه نفسیات پشاور یونیورستي

**الجواب:** پټکې د مونځ او بغیر د مونځ نه دواړو حالتونو کښې سنت دې(۱) د پټکي څه شرعي اندازه نشته البته پیغمبر علیه السلام درې نیم گزه او شپږ گزه دوه قسمه (مختلف رنګونو والا) استعمال کړي دي. (سعایه و زرقانی) وهو الموفق

(بقیه حاشیه) هنا الامام اذا قرأ في الصلاة ویحتمل ان یکون المراد بالقاری اعم من ذلک..... واخرج الحاکم عن حبیب بن مسلمة الفهری سمعت رسول الله ﷺ یقول: لا یجمع ملأ فیدعو بعضهم ویؤمن بعضهم الا اجابهم الله تعالیٰ. (فتح الباری شرح صحیح البخاری ص۳۰۸ جلد۱۳ باب التامین)

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: وفي حاشیة الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفاً وخلفاً علی استحباب ذکر الجماعة في المساجد وغیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم او مصل او قاریٔ. (ردالمحتار ص۴۸۸ جلد۱ مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)

(۲) پټکې تړل د رسول الله ﷺ په سنتو کښې یو سنت دې د پیغمبرانو او نیکانو خلقو د لباس حصه ده علامه قسطلاني لیکي. درسول الله ﷺ یو پټکې وو چه هغې ته به ئې سحاب وئیلې او ددې پټکي لاندې به ئې په سر باندې تاؤ شوې ټوپۍ کیښودله.(المواهب مع زرقانی ص۹ جلد۵) او په شرح دمواهب کښې دي چه د پیغمبر ﷺ یو پټکې شپږ گزه اویو دولس گزه وو او په سعایه کښې دي چه ملاعلی قاری رحمه الله په خپله رساله عمامه کښې ذکر کړې چه ځمونږ بعضې حنفي علماؤ ذکر کړې چه پیغمبر علیه السلام به همیشه کوم پټکې استعمالولو د هغې اوږ د والې د اوو گزه او په جُمعه او اخترونو کښې به ئې دولس گزه پټکې وهلو. اوددې تائید د علامه جزری د قول نه هم کیږي چه هغه په تصحیح المصابیح کښې ذکرکړې دې.

حتی اخبرنی من الق به انه وقف علی شیئ من کلام الشیخ محی الدین النووی ذکر فیه انه علیه السلام کان له عمامة قصیرة وعمامة طویلة وان القصیرة کانت سبعة ازرع والطویلة اثنی عشر،

(باقی حاشیه په راروانه صفحه)

## د فرض د ادا کولو نه پس د اللهم انت السلام په مقدار کیناستل یا دا وئیل دواړه ثابت دي.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د فرضو او سنتو په مینځ کښې د اللهم انت السلام په مقدار کیناستل سنت دي یا هم دا دعا وئیل سنت دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: لعل مرجان کوهاټ............۲۲\رجب۱۳۹۳ھ

(بقیه حاشیه) حافظ ابن القیم په زاد المعاد (ص۷۲جلد ۱) او ملاعلي قاري په مرقاة کښې او مجد الشیرازی وغیره سیر والؤ ذکر کړي دي چه پیغمبر علیه السلام به څنګه ټوپئ استعمالوله دغه شان به ئې عمامه هم استعمالوله نو پیغمبر علیه السلام پټکې اکثر د ټوپئ دپاسه وهلو، او کله به ئې بغیر د پټکي نه صرف ټوپئ هم پسر کوله. او بغیر د ټوپئ نه به ئې پټکې هم وهلو او که دا اعتراض اوکړیشي چه په ترمذي کښې مرفوع روایت دې (ان فرق ما بیننا وبین المشرکین العمائم علی القلانس) نو دهغې یو جواب محدثینو دا ذکر کړې دې چه امام ترمذی وئیلې دي اسناده لیس بالقائم. او په منهاج السنن کښې دي چه دې حدیث کښې د پیغمبر علیه السلام په اعتجار باندې انکار مراد دې.

رسول الله صلی الله علیه وسلم نه صرف په احرام کښې سرتور سر کیدل ثابت دي عام طور سره به د هغوي صلی الله علیه وسلم په سر باندې پټکې یا ټوپئ پرته وه. اودا د فرشتو سنت دي په (تفسیر ابن کثیر ص۵۲۳جلد۱) کښې څو روایتونه ددې متعلق راغلې دي صحابه کرامو به هم خپل سرونه په ټوپئ یاعمامه سره پټول د عبدالله بن عتیک او عبدالله بن عدي نه د هر یو دعمامې ذکر په بخاري شریف کښې راغلې دې، دغه شان دحدیثو په کتابونو کښې د انس بن مالک عمار بن یاسر او حضرت ابو الدرداء رضی الله عنه پشان صحابه کرامو د عمامې ذکر راغلې دې دغه شان دنورو صحابو دعمامې او شملې پریخودلو د کیفیت تذکره هم د حدیثو په کتابونو کښې موجود دي. د تابعینو او تبع تابعینو متعلق دعمامې استعمال روایت شوې دې ابن بطال مالکي رحمه الله فرمائي چه امام مالک بیان کړي دي چه هغوي یحيٰ بن سعید، ربیعه او ابن هرمند رحمه الله کښې هر یو پټکې وهونکې موندلې دي او زه د ربیعه په مجلس کښې ووم، په هغې کښې یودیرش شرکاء وو هریو پټکې وهونکې وو. حضرت حسن بصري رحمه الله فرمائي چه قوم به په عمامه او ټوپئ باندې سجده کوله. (بخاري ص۵٦جلد۱) ازمرتب.

**الجواب:** دومره اندازه باندې فصل کول هم سنت دي او اللهم انت السلام یا نور ماثور ذکرونه وئیل هم سنت دي (لثبوت کلیهما بالحدیث) **(۱)** وهوالموفق

## د سنتو او فرضو په مینځ کښې خوراک څښاک کول یا خبرې کول

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د سحر په مونځ کښې د فرضو او سنتو په مینځ کښې د ماسپښین دمونځ د سنتو او فرضو په مینځ کښې خوراک څښاک او خبرې کول جائز دي که نه؟ په دې سره د سنتو راګرځول لازم دي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي نصیب خان حسن خیل شمالي وزیرستان... ۱۰\۱۱نومبر ۱۹۸۹

**الجواب:** د فرضو او سنتو په مینځ کښې دا کارونه د ثواب کمونکي دي لیکن راګرځولو باعث نه دي. (شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ص۴۵۷ جلد۱) **(۲)** وهوالموفق

## په مونځ کښې د خشوع ختمیدلو د خطرې د وجې نه سترګې پټول

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه که د توجه او خشوع ساتلو دپاره په مونځ کښې سترګې پټې کړې شي نو په دې کښې به څه قباحت وي که نه؟ بنیوا توجروا

المسنفتي: عبدالحلیم بقلم خود.........۱۷\۱۱\۱۹۷۳ء

---

**﴿۱﴾ وعن عائشة رضی الله عنها قالت کان رسول الله ﷺ اذا سلم لم یقعد الا مقدار ما یقول اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت یا ذا الجلال والاکرام رواه مسلم.**

**وعن ثوبان رضی الله عنه قال کان رسول الله ﷺ اذا انصرف من صلوته استغفر ثلثا وقال اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت یا ذاالجلال والاکرام رواه مسلم.**

**(مشکواة المصابیح ص۸۸ جلد۱ باب الذکر بعد الصلوٰة الفصل الاول)**

**﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ولو تکلم بین السنة والفرض لا یسقطها ولکن ینقص ثوابها، وقیل تسقط. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۰۳ جلد۱ مبحث مهم فی الکلام علی الضجعة بعد سنن الفجر باب الوتر والنوافل)**

**الجواب**: که دسترګو کهلاؤ ساتلو وخت کښې د خشوع ختميدو خطره وي نو بندول يې جائز دي بلکه بهتر دي. (شامي ص ۲۰۴ جلد ۱) (۱) وهواموفق

## امام د پاره د پټکي مقدار

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د جمات د امام د پاره د پټکي مقدار کم نه کم څومره پکار دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: مثل زاده ترلاندي صوابي: ۱۹۷۹ء\۱\۵\۱۲

**الجواب**: د پيغمبر عليه السلام پټکې مختلف قسمونه کښې وو ليکن سنت په هريو پټکي سره اداکيږي لکه چه قميص، څادر اولنګ هر څومره چه وي سنت پرې اداکيږي دا ضروري نه ده چه دمنقول په اندازه باندې وي. (۲) وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: وتغميض عينيه للنهى الا لكمال الخشوع. (قوله الالكمال الخشوع) بان خاف فوت الخشوع بسبب رؤية ما يفرق الخاطر فلا يكره بل قال بعض العلماء انه الاولى وليس ببعيد حلية وبحر . (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص۴۷۷ جلد ۱ مطلب اذا تردد الحكم بين سنة وبدعة كان ترک السنة اولى، باب ما يفسد الصلاة وما يكره فيها)

﴿۲﴾العمامة ما اعتم بالرأس ولاحدلها شرعاً نعم ذكر فى شرح المواهب كانت له صلى الله عليه وسلم عمامة قصيرة ستة اذرع وعمامة طويلة اثنا عشر ذراعاً وكما فى الطبرانى ولكن قال ابن حجر لا اصل له (مواهب ص۹۹) وفى السعاية ذكر على القارى فى رسالته فى العمامة ذكر بعض علماء نا الحنفية ان العمامة التى كان يلبس دائما طولها سبعة اذرع والتى تلبس فى الجمعة والعيدين طولها اثنا عشرة ذراعا ويؤيده ما ذكره الجزرى فى تصحيح المصابيح قد تتبعت الكتب وتطلبت من كتب السير والتواريخ لا قف على قدر عمامته صلى الله عليه وسلم فلم اقف على شئ حتى اخبرنى من اثق به انه وقف على شئ من كلام الشيخ محى الدين النووى ذكر فيه انه عليه السلام كان له عمامة قصيرة وعمامة طويلة وان القصيرة كانت سبعة اذرع و الطويلة اثنى عشر (مواهب) وقال الشيخ احمد عبد الجواد اللومى عن ابن القيم: لم تكن عمامته صلى الله عليه وسلم كبيرة يوذى الرأس حملها ولا صغيرة لا تقى الرأس من حر ولا برد بل كانت وسطاً بين ذلک وخير الامور الوسط (اتحافات ص۱۵۵). ......(ازمرتب)

## د عمامې د دوؤ شملو حکم

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د عمامې دوه شملې پريخودل جائز دي يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي : حامد انور............... ۱۹۷۵ء۳۱\۱۲\

**الجواب:** بين الکتفين دوه عذبه (عذبه شمله عمامه) جائز دی (۱) (اشعة اللمعات شرح مشکوة) وهوالموفق

## د عمامې د پاره درومال استعمال او د عمامې مقدار

**سوال:** : ائي دين دې مسئلې باره کښې څه فر مائي چه نن صبا د رومال کوم رواج د، آيا ددې په سر باندې په تړلو سره د عمامې سنت ادا کيږي؟ او دغه شان د احاديثو په رڼا کښې دعمامې کم مقدار او زيات مقدار څومره ګزه پورې ثابت دي؟ او آيا عمامه صرف د امام د پاره سنت ده يا د مقتدي او منفرد د پاره هم؟ بينوا توجروا

المستفتي حبيب ګل............... ۱۹۷۴ء

**الجواب:** دا خبره دې واضحه وي چه عمامه پسر ول د هر مسلمان د پاره سنت دي (لثبوتها بالاحاديث القولية) او فقهائې کرامو د ا د مونځ په مستحباتو

(۱) وفي المنهاج: وكما ثبت ارسال العذبة بين الكتفين كذلک ثبت ارسالها من الجانب الايمن نحو الاذن في حديث امامة، اخرجه الطبراني في الكبير ...... وكذلک ثبت ارخاء ها بين يدى المعتم ومن خلفه في حديث عبد الرحمن بن عوف رواه ابوداؤد وفي اسناده شيخ مجهول وفي حديث ثوبان اخرجه الطبراني في الاوسط...... اعلم ان سدل الطرف الاسفل يسمى عذبة في الاصطلاح واما غرز الطرف الاعلى وارساله من خلفه فيسمى عذبة لغة وهو ثابت في رواية ابي الشيخ من رواية ابن عمر، كان رسول الله ﷺ يدير كور العمامة على راسه ويغرزها من وراءه ويرخي لها ذوابة بين كتفيه.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۱۲ جلد۵ باب سدل العمامة بين الكتفين)

کنبې شمار کړې دي (کما في شرح الکبیر ص ۳۲۴﴿۱﴾ په دې کنبې د امام او غیر امام حکم یو شان دې صرف د امام پورې خاص کیدل په څه دلیل سره نه دي ثابت ﴿۲﴾ او دا خبره هم ده چه عمامه هرهغې کپړې ته وائي. چه د سرنه تاوکړې شی، کما في التعلیق الممجد. اودا معنی په رومال کنبې هم شته دې،لهذا د عربي لغت په رنړا کنبې به دا عمامه وي. اګر چه څمونږ په لغت کنبې دیته عمامه نه وئیلې کیږي.او دعمامې دپاره څه شرعاً مقدار نه دې مقرر نو د رومال په وړوکوالي باندې څه نقصان نه لازمیږي.البته ملاعلي قاری په مرقاة کنبې لیکلې دي.چه دپیغمبر علیه السلام وړه عمامه اووه شرعي ګزد وه،او لویه عمامه دولس شرعي ګزه وه لیکن په دې سره دا نه لازمیږي چه ددې خاص مقدار نه کمه زیاته عمامه به مسنون نه وي. کما في الرداء و الازار.﴿۳﴾ وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامه حلبی: المستحب ان یصلی الرجل فی ثلثة اثواب ازار وقمیص وعمامة ولو صلی فی ثوب واحد متوشحا به جمیع بدنه کما یفعله القصار فی المقصرة جاز من غیر کراهة...... ولکن فیه ترک الاستحباب.

(غنیة المستملی ص۳۳۷ فصل فیما یکره فی الصلاة)

﴿۲﴾ قال العلامه عبد الحئی اللکهنوی: وقد ذکروا ان المستحب ان یصلی فی قمیص وازار وعمامة ولا یکره الاکتفاء بالقلنسوة ولا عبرة لما اشتهر بین العوام من کراهة ذلک.

(عمدة الرعایه علی هامش شرح الوقایه ص۱۹۸ جلد۱ قبیل باب الوتر والنوافل)

وفی منهاج السنن: ان العمامة سنة ولها فضیلة مثل سائر السنن الزائدة واما روایات فضیلة الصلوٰة فیها خمسا وعشرین صلاة او سبعین صلاة وعشرة الاف حسنة فباطلة وموضوعة صرح به القاری وغیره.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۲۱۲ جلد۵ باب سدل العمامة بین الکتفین)

﴿۳﴾ وفی منهاج السنن:والعمامة هی ما اعتم بالرأس ولاحد لها شرعا نعم ذکر فی شرح المواهب کانت له ﷺ عمامة قصیرة ستة اذرع عمامة طویلة اثنا عشر ذراعا وفی السعایة ذکر علی القاری فی رسالته فی العمامة ذکر بعض علماء نا الحنفیة ان العمامة التی کان یلبس دائما طولها سبعة اذرع والتی تلبس فی الجمعة والعیدین ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## سجدې ته تللو وخت کښې به لاسونه په زنګونانو ږدې که زوړند به ئې ساتي

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي. چه پيغمبر علیه السلام به کله د قومې نه سجدې ته تللو نو لاسونه به ئې په زنګونانو کيښودل يا زوړند به وو؟ څمونږ دپاره بهتره طريقه کومه ده چه په زنګونانو باندې لاس کيښودلې شي يا زوړند لا سونه وي؟ بينوا توجروا المستفتي: نامعلوم..... ۲۳\۸\۱۹۷۳ء

**الجواب:** د سجدې نه اوچتيدلو وخت کښې په پتونانو يا زنګونانو باندې ځان تينګول د حديث او فقهې نه ثابت دي. ﴿۱﴾ ليکن سجدې ته تللو وخت کښې اعتماد کول ثابت نه دي لهذا د عذرنه بغير داسې نه کول بهتر دي. وهوالموفق

## ذکر اذکار د فرضو نه پس بهتر دي يا دسنتو نه پس ؟

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د ماښام دمونځ نه پس

---

(بقيه حاشيه)طولها اثنا عشرة ذراعا ويويده ما ذكر الجزرى فى تصحيح المصابيح قدتتبعت الكتب وتطلبت من كتب السير والتواريخ لا قف على قدر عمامته عليه السلام فلم اقف على شئ حتى اخبرنى من اثق به انه وقف على شئ من كلام الشيخ محى الدين النووى ذكر فيه انه عليه السلام كان له عمامة قصيرة وعمامة طويلة وان القصيرة كانت سبعة اذرع والطويلة اثنى عشر انتهى.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۲۳۷ جلد ۱ باب مافى المسح على الجوربين والعمامة)

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفى: ويكره للنهوض على صدور قدميه بلا اعتماد وقعوده استراحة، قال ابن عابدين: (قوله بلا اعتماد) اى على الارض قال فى الكفاية اشاربه الى خلاف الشافعى فى موضعين احدهما يعتمد بيديه على ركبتيه عندنا وعنده على الارض والثانى الجلسة الخفيفة قال شمس الائمة الحلوانى الخلاف فى الافضل حتى لوفعل كما هو مذهبنا لا بأس به عند الشافعى ولو فعل كما هو مذهبه لا بأس به عندنا كذا فى المحيط.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ۳۷۴ جلد ۱ باب آداب الصلاة)

درې څلور ځلې کلمه شریفه او لوستله او آیة الکرسي وغیره بیا دهغې نه پس م دعا اوغوښتله او دهغې نه پس مې سنت ادا کړل نو آیا دا صحیح ده که د فرضو نه پس سمدستي سنت کول ضروري دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: علي شاه......۱۹مارچ ۱۹۷۵

**الجواب:** د سنتو نه پس افضل دي ﴿۱﴾ البته فرضو پسې سمدستي لوستل هم جائز دي، وهوالموفق

## د امام د پاره (ربنا لک الحمد) وئیل اونه وئیل دواړه جائز دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه امام به د سمع الله لمن حمده نه پس (ربنا لک الحمد) وائي که نه؟ که اووائي نو په مونځ کښې ورسره فرق راځي که نه؟ بینوا توجروا، المستفتي: عزیز الحق پوسټ بکس نمبر ۱۴۲۱ جده سعودي عرب

**الجواب:** امام د سمع الله لمن حمده نه پس ربنا لک الحمد وئیلې شي. څمونږ مذهب کښې دې مسئلې کښې اختلاف دې دې کښې توسع ده ډیرو فقهاؤ وئیلو ته ترجیح ورکړې ده. ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د امام نه د پټکي دو هلو او مونځ ورکولو مطالبه کول صحیح نه ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو سړې د خلقو په مخکښې دا اووائي چه په سر باندې پټکي کیښودل د رسول الله ﷺ سنت دې او کوم علماء چه په سر باندې پټکي نه ږدي هغه لعنتیان او خبیثان دي،

﴿۱﴾ قال العلامه حسن بن عمار الشرنبلالی: قال الکمال عن شمس الائمة الحلوانی انه قال لاباس بقراءة الاوراد بین الفریضة والسنة فالاولیٰ تاخیر الاوراد عن السنة، فهذا ینفی الکراهة. (مراقی الفلاح شرح نورالایضاح ص ۳۱۲ فصل فی صفة الاذکار)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله لغیره) ای لمؤتم ومنفرد لکن سیأتی ان المعتمد ان المنفرد یجمع بین التسمیع والتحمید وکذا الامام عندهما وهو روایة عن الامام جزم بها الشرنبلالی فی مقلمته. (ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۳۵۳ جلد ۱ باب صفة الصلاة)

ددې ویونکې څه حکم دې؟ ځکه چه څمونږ په معاشره کښې اکثر علماء پټکې نه وهي بلکه اکثر ټوپئ یا قراقلې اچوي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبدالرازاق پی او ایف واه کینټ... ۱۹۹۱ء۱۱۱۹

**الجواب**: عمامه تړل سنتِ رسول ﷺ او سنتِ ملائکه دي.﴿۲﴾ اوددې تړل د هر مسلمان د پاره سنت زائده او مستحب دي.﴿۳﴾ د علمائې کرامو یا ائمه کرامو پورې ددې خاص کول غلطي ده﴿۴﴾ البته د کپړې او څرمنې ټوپئ

---

﴿۱﴾فی منهاج السنن: ان العمامة سنة ولها فضيلة مثل سائر السنن الزائدة واما روايات فضيلة الصلوٰة فيها خمساً وعشرين صلاة او سبعين صلاة وعشرة آلاف حسنة فباطلة وموضوعةصرح به القارى وغيره، وتمام هذه المسائل فى التحفة الاحوذى.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۱۲ جلد۵ باب سدل العمامة بين الكتفين)

﴿۲﴾ قال العلامه حافظ ابن كثير: (قوله من الملائكة مسومين) قال معلمين و كان سيما الملائكة يوم بدر عمائم سود ويوم حنين عمائم حمر وروى من حديث حصين بن مخارق عن سعيد عن الحكم عن مقسم عن ابن عباس قال لم تقاتل الملائكة الا يوم بدر...... عن ابن عباس قال كان سيما الملائكة يوم بدر عمائم بيض قدارسلوها فى ظهورهم ويوم حنين عمائم حمر ......حدثنا هشام بن عروة عن يحيٰ بن عباد ان الزبير رضى الله عنه كان عليه يوم بدر عمامة صفراء مقجرابها فنزلت الملائكة عليهم عمائم صفر.

(تفسير ابن كثير ص۵۲۳ جلد۱ سوره آل عمران آيت۱۲۵)

﴿۳﴾ قال فى شرح الوقايه: السنة ما واظب النبى عليه السلام عليه مع الترک احيانا فان كانت المواظبة المذكورة على سبيل العبادة فسنن الهدىٰ وان كانت على سبيل العادة فسنن الزوائد كلبس الثياب والاكل باليمين وتقديم الرجل اليمنىٰ فى الدخول ونحو ذلک.

(شرح الوقايه ص۶۹ جلد۱ الولاء والتيامن فى الوضوء كتاب الطهارة)

﴿۴﴾قال العلامه حسن بن عمار بن على: والمستحب ان يصلى فى ثلاثة اثواب ازار وقميص وعمامة وقال الزيلعى والافضل ان يصلى فى ثوبين لقوله عليه السلام اذا كان لاحدكم ثوبان فليصل فيهما يعنى مع العمامة لانه يكره مكشوف الرأس.

(امداد الفتاح شرح نور الايضاح ص ۲۲۹ باب شروط الصلوٰة واركانها)

باندې كفايت كول جائز دي ﴿ ١ ﴾ او كوم سړي چه ئې بالكل پرېږدي يا د سپكوالي او بې پرواهي او نار استئ په وجه ئې بالكليه پرېږدي نو هغه د بيهقي د حديث ,, لعنتهم ولعنهم الله وكل نبى يجاب والتارك لسنتى،، په وجه باندې ملعون دې ﴿٢﴾

**نوټ**: د ماحول او معاشرې په وجه باندې سنتِ رسول پرېښودل د ضعيف ترين ايمان علامت دي. فقط

---

**﴿١﴾ وقال فی منهاج السنن: فی الغرائب رجل صلی مع قلنسوة ولیس فوقها عمامة او شئ آخر یکره وما ذکره الفردوس الدیلمی عن جابر رکعتان بعمامة خیر من سبعین رکعة بلاعمامة، وبالجملة ان ترک العمامة ترک الاولیٰ نعم جاز ترک مالایکون مطلوباً شرعا عند مصلحة العوام.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۲۲۵ جلد۲ باب ماجاء فی الصلوٰة فی الثوب الواحد)**

**﴿٢﴾ وقال فی منهاج السنن: ذکر العلی القاری ایضا والمجد الشیرازی وغیرهما من ارباب السیر ان النبی ﷺ کان یلبس القلانس تحت العمائم وبغیر العمائم ویلبس العمائم بغیر القلانس انتهیٰ، فان قیل قد روی الترمذی مرفوعا ان فرق ما بیننا وبین المشرکین العمائم علی القلانس قلنا قال الترمذی اسناده لیس بالقائم وقیل قصده ﷺ الانکار علی الاعتجار. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص۲۳۷ جلد۱ باب ماجاء فی المسح علی الجوربین والعمامة)**

**قال العلامه عبد الحئی اللکهنوی: وقد ذکروا ان المستحب ان یصلی فی قمیص وازار وعمامة ولایکره الاکتفاء بالقلنسوة ولا عبرة لما اشتهر بین العوام من کراهته ذلک. (عمدة الرعایه علی هامش شرح الوقایه ص۱۹۸ جلد۱ قبیل باب الوتر النوافل)**

# باب تسوية الصفوف

## آيا يو نابالغ به د بالغينو په صف کښې اودريږي؟

سوال: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه کله د بالغينو په صف کښې ځائې وي او نابالغ يواځې وي نو د بالغينو په صف کښې او دريدلې شي؟ بينوا توجروا

المستفتي: کرک استاد بهرت بنون.....۱۹۷۵ء/۱/۱۱/۲۰

الجواب: دا نابالغه د بالغينو په صف کښې اودريدلې شي. (کما فى الدرالمختار)(۱) وهو الموفق

## په مخکښې ځائې قبضه کول او قرآن نه د شاکولو حکم

سوال: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه (۱) چه يو کس د پاره د جمات په اولني صف کښې رومال يا ټوپئ کيښودل د ځائې قبضه کولو د پاره څنګه دې. (۲) په مخکښې صف کښې مونځ ګزار ناست دې او زيد روستو صف کښې ناست دې په قرآن مجيد کښې تلاوت کوي چه د هغې په وجه د خلقو شاګانې قرآن مجيد طرفته کيږي نو آيا د زيد دا طريقه جائز ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالرحمان، حميد علي پارک اچره لاهور.....۱۹۸۷/۹/۸

جواب (۱) دا منع نه دي البته څوک د خپل ځائې نه پاځول مکروه دي. (۲)

---

(۱) قال الحصكفى ثم الصبيان ظاهره تعددهم فلو واحداً دخل الصف. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ۴۲۲ جلد ۱ مطلب فى الكلام على الصف الاول)

(۲) قال العلامة ابن عابدين : (قوله وليس له) قال فى القنية له فى المسجد موضع معين يواظب عليه وقد شغله غيره قال الاوزاعى له ان يزعجه وليس له ذلک عندنا، اى لان المسجد ليس ملكا لاحد بحر عن النهاية قلت ......

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

(۲) قران مجید او دینی کتابو نو طرفته بنپې خورول مکروه دي شا کول ورنه مکروه نه دي. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د سختې ګرمئ دوجې نه اولنې صف پريخودل

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه د يوجمات په يو حصه باندې چت دې او جنوبي حصه بغير د چت نه ده اوس يو مشر عالم دين خلق په زور باندې په ګرمئ کښې په اولني صف کښې په اودريدو باندې مجبورکوي چه د اولني صف فضيلت زيات دې اوحال دا چه ګرمي هم سخته ده نودې صورت کښې به مقتديان څه کوي؟ بينوا توجرو

المستفتي: فضل حليم بونير.....۲۹\۷\۱۹۷۸

**الجواب:** د سختې ګرمئ د وجې نه د جماعت پريخودل هم جائز دي﴿۲﴾ نو اولني صف پريخودل به ولې جائز نه وي؟ البته چه کله ګرمي د برداشت قابله وي نو د اولني صف فضيلت حاصلول پکار دي. (لان من ابتلى ببليتين فليختر اهونهما). فافهم

---

(بقيه حاشيه) وينبغي تقييده بما اذا لم يقم عنه على نية العود بلا مهلة كما لو قام للوضوء مثلا ولا سيما اذا وضع فيه ثوب لتحقق سبق يده تأمل.

(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۴۹۰ جلد ۱ قبيل باب الوتر والنوافل)

﴿۱﴾ وفي الهنديه: مد الرجلين الى جانب المصحف ان لم يكن بحذائه لا يكره وكذا لو كان المصحف معلقا في الوتدوهو قد مد الرجل الى ذلک الجانب لا يكره كذا في الغرائب. (فتاوىٰ عالمگيريه ص ۳۲۲ جلد ۵ الباب الخامس في آداب المسجد والقبلة والمصحف الخ)

﴿۲﴾ قال الحصكفي: ولا (يجب الجماعة) على من حال بينه وبينها مطر وطين وبرد شديد قال العلامةابن عابدين رحمه الله: (قوله وبرد شديد) لم يذكرا الحر الشديد ايضا ولم ارمن ذكره من علمائنا ولعل وجهه ان الحر الشديد انما يحصل غالبا في صلاة الظهر وقد كفينا مونته بسنية الابراد نعم قد يقال لو ترک الامام هذه السنة وصلى في اول الوقت كان الحر الشديد عذر تأمل.

(ردالمحتار ص ۴۱۱ جلد ۱ باب الامامة)

## قسم کښې حانث کیدلو واله سره په صف کښې مونځ کول جائز دي

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو سړې د جمعې د مونځ نه پس په جمات کښې قسم اوخوړلو چه فلانکې کار به کووم. اوس هغه د قسم نه خلاف کوي او هغه کار نه کوي. نو آیا ده سره په یو صف کښې د جمعې مونځ کول جائز دي؟ بینوا توجروا

المستفتي:زردار خان حویلیان هزاره..... ۱۴\۸\۱۱۹۷۲

**الجواب:** داهل سنت والجماعت دا مسلک دې چه دګناه په وجه باندې نیکئ ته نقصان نه رسیږي(۱). او دګناه په وجه باندې څوک د نیک کار نه بندول ګناه ده. لهذا ددې وعدې خلاف کونکې سړې مونځ صحیح دې او دې د جمات نه ویستل او صف نه ویستل لویه ګناه ده ددې نه بچ کیدل ضروري دي. البته د فاسقانو سره تعلقات ختمول پکار دي چه هغوي د خپلو کارونو نه واپس شي او توبه اوباسي. فقط

## د جمات په ړکیدلو باندې د سړک بل طرفته صفونه جوړول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه که جمات د خلقو نه

---

**(۱)** قال الامام نعمان بن ثابت: نقول المسئلة مبینة مفصلة: من عمل حسنة بشرائطها خالیة عن العیوب المفسدة والمعانی المبطلة ولم یبطلها حتی خرج من الدنیا فان الله تعالیٰ لا یضیعها بل یقبلها منه ویثیبه علیها وماکان من السیئات دون الشرک والکفر ولم یتب عنها حتی مات مؤمنا فانه فی مشیئة الله تعالیٰ ان شاء عذبه وان شاء عفاعنه ولم یعذبه بالنار ابداً، قال الملا علی قاری فی شرحه: وفی اقتصار حکم الامام الاعظم رحمه الله علی الریاء والعجب دون سائر الآثام اشعار بان باقی السیئات لا تبطل الحسنات بل قال الله تعالیٰ: ان الحسنات یذهبن السیئات وذلک للحدیث القدسی سبقت رحمتی غضبی.

(شرح القاری علی الفقه الاکبر ص۷۷، ۷۸ الطاعات بشروطها مقبولة الخ)

ډک شي او دجمات مشرقي طرفته په څوارلس فټه کښې متصل سړک دې خلق دومره فاصله پریږدي او بل طرفته صفونه جوړوي نوددې خلقود اقتداء څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محمد وزیربتګرام هزاره.....۲۳\۱صفر۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دې خلقو باندې ضروري ده چه دا فاصله ډکه کړي او مونځ اوکړي ګني نو اقتداء به ئې صحیح نه وي.

**لمافی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۴۷ جلد ۱ ویمنع من الاقتداء طریق تجری فیه عجلة او نهر...... یسع صفین فاکثر الا اذا اتصلت الصفوف فیصح مطلقا﴿۱﴾**

اوکه په عیدګاه کښې داسې فاصله وي نو اداکیږي (لما في الهندیه ص ۸۷ جلد ۱)﴿۲﴾ وهوالموفق

## په صفونو کښې د بوډاګانو. حوانانو. ماشومانو اوښځو ترتیب

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په مونځ کښې به په اولني صف کښې بوډاګان بیا ځوانان بیا ماشومان او په آخري صف کښې به ښځې اودریږي ددې شرعي څه ثبوت دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: ولي الله تبوک سعودي عرب. ۱۴۰۲

**الجواب:** دا مسئله صحیح ده په حدیث شریف کښې راغلي دي (لیلنی منکم اولوا الاحلام والنهی ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم، رواه مسلم) ﴿۳﴾ نو اهل

---

**﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۳۳ جلد ۱ باب الامامة مطلب الکافی للحاکم جمع کلام محمد فی کتبه التی هی ظاهر الراویة)**

**﴿۲﴾ وفی الهندیه: وفی مصلی العید الفاصل لا یمنع الاقتداء وان کان یسع فیه الصفین او اکثر. (فتاویٰ هندیه ص۸۷ جلد ۱ الفصل الرابع فی بیان ما یمنع صحة الاقتداء وما لایمنع)**

**﴿۳﴾ (مشکواة المصابیح ص۹۸ جلد ۱ باب تسویة الصف الفصل الاول)**

علم او اهل عقل به درجه په درجه صفونه جوړوي مثلاً اول سړي بالغان بیا نابالغه وغیره (۱)

## په شاتني صف کښې یواځې اودریدل اود مخکښې صف نه سړي راروستو کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چې کله اولنې صف ډک شي اوروستو یو مونځ گذار راشي د دویم د راتللو امید نه وي نودې صورت کښې د اولني صف نه مونځ کونکي شاته رابنکل ضروري دي که نه؟ او که دغه شان اونه کړي نوځان له اودریدل مکروه تحریمي دي یا تنزیهي؟ بینوا توجروا

المستفتي: اکرام الحق نشتر آباد راولپنډي.... ۱۲\ذي الحجه ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** په دې زمانه کښې بهتر داده چه یواځې اودریږي. (فلیراجع الی الشرح الکبیری ص۳۱۷(۲) وردالمحتار ص۶۰۵ جلد۱ ،ناقلاً عن القنیه) اوبعضې فقهاؤ فرمائیلي دي چه که په صف کښې څوک پوهه سړې ووهغه دې راروستو کړي گینې یواځې دې اودریږي. (ردالمحتار ص ۵.۶)(۳) اوداصل حکم متعلق تصریح ملاؤ نه شوه. لیکن ظاهري طور سره کراهتِ تنزیهي معلو میږي ځکه چه د خالي والي موجود کیدلو سره سره هم پیغمبر علیه لسلام د مونځ راکرځولو حکم نه دې کړې نود فُرجې (خالي والي) نه موجودیدلو وخت کښې به حکم اسان وي. فقط

---

(۱) قال العلامة الحصکفی رحمه الله : الرجال ثم الصبیان ثم الخنالی ثم النساء.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۲۲ جلد ا باب الامامة)

(۲) قال العلامة الحلبی رحمه الله: والقیام وحده اولی فی زماننا لغلبة الجهل علی العوام فاذاجره یفسد صلوته انتهیٰ. (الشرح الکبیر ص ۳۴۹ فصل فی بیان ما الذی یکره فعله فی الصلاة)

(۳) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وقد منا کراهة القیام فی صف فیه فرجة بل یجذب احدامن الصف ذکره ابن الکمال لکن قالوا فی زماننا ترکه اولیٰ فلذا قال فی البحر یکره وحده الا اذا لم یجد فرجة (قوله وقد منا) ای فی باب الامامة عند قوله ویصف الرجال حیث قال ولو صلی علی رفوف المسجدان وجد فی صحنه مکانا کره کقیامه فی صف خلف صف فیه فرجة، ولعله یشیر بذلک الی انه لو لا العذر المذکور کان انفراد المأموم مکروها (قوله لکن قالوا) القائل صاحب القنیة فانه......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## امام پسې چه صف پوره شي نو دویم صف کښې یواځې اودریدل

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه که د پیش امام شاته یو صف پوره شي نو مقتدي په دویم صف کښې یواځې اودریدلې شي که نه؟
بینوا توجروا

المستفتي: محمد سلیم صدیقي پوسټ نمبر ۶۳۰ مسقط عمان.....۵۱۱۱۱۱۹۷۴

**الجواب:** په صف کښې یواځې اودریدل مکروه دي ﴿۱﴾ لیکن مونځ صحیح دي.
لحدیث زادک الله حرصاً ولا تعد ﴿۲﴾ ولم یامره بالاعادة ههنا ﴿۳﴾. فافهم. وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) عزا الی بعض الکتب اتی جماعة ولم یجد فی الصف فرجة قیل یقوم وحده ویعذر وقیل یجذب واحدا من الصف الی نفسه فیقف بجنبه والاصح ماروی هشام عن محمد انه ینتظر الی الرکوع فان جاء رجل والاجذب الیه رجلا او دخل فی الصف ثم قال فی القنیة والقیام وحده اولیٰ فی زماننا لغلبة الجهل علی العوام فاذا جره تفسد صلاته.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۲۸ جلد ۱ باب من یفسد الصلاة ومایکره فیها)

﴿۱﴾ قال العلامه حصکفی: وقد منا کراهة القیام فی صف خلف صف فیه فرجة للنهی وکذا القیام منفرداً وان لم یجد فرجة بل یجذب احداً من الصف ذکره ابن الکمال لکن قالوا فی زماننا ترکه اولیٰ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۲۸ جلد ۱ باب مکروهات الصلاة)

﴿۲﴾ وعن ابی بکرة انه انتهیٰ الی النبی ﷺ وهو راکع فرکع قبل ان یصل الی الصف ثم مشی الی الصف فذکر ذلک للنبی ﷺ فقال زادک الله حرصا ولا تعد رواه البخاری.
(مشکواة المصابیح ص ۹۹ جلد ۱ الفصل الاول باب الموقف)

﴿۳﴾ قال العلامه علی بن سلطان محمد: ذهب الجمهور الی ان الانفراد خلف الصف مکروه غیر مبطل وقال النخعی وحماد وابن ابی لیلی ووکیع واحمد مبطل والحدیث حجة علیهم فانه علیه السلام لم یأمره بالاعادة ولو کان الانفراد مفسداً لم تکن صلاته منعقدة لاقتران المفسد بتحریمتها.
(مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ص ۱۸۵ جلد۳ قبیل الفصل الثاني باب الموقف)

## په جمات کښې د مونځ ادا کونکي مخې ته د جمات نه بهر یا دننه د تیریدلو حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه یو سړې په جماعت کښې دننه یا په صحن (غولي) انګړ کښې مونځ کوي او دویم سړې د جماعت نه بهر لرې مخامخ تیریږي آیا هغه به ګناه ګاروي او دغه شان د جمات او غیر جمات څه فرق شته دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: حبیب الله.. ۳۰\۳\۷۴

**الجواب**: محقق ابن همام دا غوره کړې چه په جمات او غیر جمات کښې فرق نشته یعني په جمات کښې هم لږ لرې تیریدل جائز دي (ای ما لایقع علیه بصر المصلی الخاشع) (کمافی فتح القدیر ص۲۸۸ جلد ۱)《۱》 وهوالموفق

## که یو کس په اولني صف کښې سنت شروع کړل او جماعت اودریدلو نو څه به کوي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چې یو سړې په اولني صف کښې سنت شروع کړي او لږ ساعت پس جماعت اودریږي او س صف خو یودې نو دا سړې به سنت پوره کړي او جماعت کښې به شریک شي یا سنت پریږدي شاته لاړ شي سنت اوکړي بیا په فرض جماعت کښې شریک شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبدالغني.... ۳ جون ۱۹۷۵

---

《۱》قال العلامة ابن الهمام : وفی النهایة الاصح انه ان کان بحال لو صلی صلاة الخاشعین نحو ان یکون بصره فی قیامه فی موضع سجوده وفی موضع قدمیه فی رکوعه والی ارنبة انفه فی سجوده فی حجره فی قعوده والی منکبه فی سلامه لا یقع بصره علی المار لا یکره ومختار السرخسی مافی الهدایه وما صحح فی النهایة مختار فخر الاسلام رجحه فی النهایة. (فتح القدیر ص ۳۵۴ جلد ۱ باب ما یفسد الصلاة ومایکره فیها)

**الجواب**: سنت دي اوکړي او امام سره دې شریک شي (ردالمحتار) ﴿۱﴾
وهوالموفق

## په صفونو کښې د اوګو او ګیټو ملاوهلونه مراد برابرول دي

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په مونځ کښې ګیټې او اوګې ملاوهل پکار دي یابغیر د ملاوولو نه اودریدل پکار دي؟ او حال دا چه دا دواړه په یو وخت کښې ملاوول ګران دي؟ بینوا توجروا
المستفتي: غلام حیدر چارسده...

**الجواب**: صفونه نیغ ساتل مطلوب دي اوکومو روایتونو کښې چه کعب د کعب سره اوګه د اوګې سره او رکبة د رکبة سره د ملاؤولو حکم راغلې دې د هغې نه مراد بربرول دي دا نه چه حقیقي معنی ئې مراد ده.
**لانها متعذر فی آنٍ واحد، فافهم ﴿۲﴾ وفی البحر ص۳۵۳ جلد ۱ وینبغی للقوم اذا قاموا الی الصلوٰة ان یتراصوا ویسدوا الخلل ویسووا بین مناکبهم فی الصفوف ﴿۳﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: قال فی شرح المنية والا وجه ان يتمها لانها ان كانت صلاة واحدة فظاهرالخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۵۲۸ جلد ۱ قبیل مطلب فی كراهة الخروج من المسجد بعد الاذان باب ادراک الفريضة)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: واما الزاق المنكب بالمنكب والركبة بالركبة والكعب بالكعب فالمراد منه المحاذاة دون المعنى الظاهر بدليل مارواه ابوداؤد وحاذوا بين المناكب وحاذوا بالاعناق...... واما ما يفعله اهل الظاهر من حمل الا لزاق على الحقيقة فلا سلف لهم فيه على ان الزاق الكعب بالكعب والركبة بالركبة والمنكب بالمنكب حقيقة فی وقت واحد عسير جداً بل محال.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۱۰۳ جلد۲ باب ماجاء فی اقامة الصفوف)

﴿۳﴾ (البحر الرائق ص۳۵۳ جلد ۱ باب الامامة)

## بغير د ضرورت نه صفونه پريخودل او دامام نه لري اودريدل

**سوال:** علمائي دين دي مسئلې باره کښې څه فرمائي چه يو سړې جمات ته راشي او دامام په اقتداء کښې نيت اوتړي خو صف پريږدي او ځان له اودريږي نو ددې کس د مونځ څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالرحيم پيښور ښار

**الجواب:** که دا سړې صفونه پريږدي او يوائې د امام اقتداء کوي نو دده مونځ جائز خو خلاف اولی دې.

**كما فى الهنديه ص۸۸ جلد۱ ولو اقتدىٰ بالامام فى اقصى المسجد والامام فى المحراب فانه يجوز كذا فى شرح الطحاوى وان قام على سطح داره المتصل بالمسجد لا يصح اقتداءه﴿۱﴾. وهو الموفق**

﴿۱﴾ (فتاوىٰ عالمگيريه ص۸۸ جلد۱ الفصل الرابع فى بيان مايمنع صحة الاقتداء وما لا يمنع)

# باب الامـــامـــة

## فـــصل فی الـــجماعـــة

### تارک الجماعت فاسق او منافق دي

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جمات کښې روزانه اذان کيږی اود کلی خلق اذان اوری اوجمات ته حاضری نه کوی اوداذان د مطلب اومقصد نه هم خبر دی.دداسې خلقو دپاره شرعی حکم څه دې؟

بينوا توجروا

المستفتی:محمدنذيزعباسی ساکن ډهير آزاد کشمير..... ۲۰/محرم ۱۳۹۲هـ

**الجواب**: تارک الجماعت فاسق ﴿۱﴾. اومنافق دې.﴿ ۲ ﴾ .وهوالموفق.

---

﴿۱﴾قال العلامه ابن نجيم: وذكر فی غاية البيان معزيا الی الاجناس ان تارک الجماعة يستوجب اساءة ولا تقبل شهادته اذا تركها استخفافا بذلک ومجانة اما اذا تركها سهوا او تركها بتاويل بان يكون الامام من اهل الاهواء او مخالفا لمذهب المقتدی لا يراعی مذهبه فلا يستوجب الاساءة وتقبل شهادته.
(البحر الرائق ص ۳۴۵ جلد ۱ باب الامامة)

﴿۲﴾عن عبد الله بن مسعود قال لقد رائيتنا وما يتخلف عن الصلاة الا منافق قد علم نفاقه او مريض ان كان المريض ليمشی بين رجلين حتی يأتی الصلاة وقال ان رسول الله ﷺ علمنا سنن الهدیٰ وان من سنن الهدیٰ الصلاة فی المسجد الذی يوذن فيه.
(مشكواة المصابيح ص ۹۶ جلد ۱ باب الجماعة الفصل الثالث)

## څوک فاسق او فاجر به دَجمې دَمونځ نه نشی منع کولې

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښې څه فرمائی چه يو سړی خپلې ښځې نه بدعی طلاق يعنی درې طلاقه ورکړل .چه دَهغې متعلق دَ علاقه کشمير ټولو علمائي کرامو دَښځې اوخاوند په مينځ کښې دَجدايئ حکم کړې دې. ليکن هغه دواړه پيښور ته لاړل اوهلته کښې دواړه اوسيږی او په زنا کښې اخته دی.ددې ټولو خبرو اقرار دَدغې سړی پلار هم کړې دې اود ماسپخين د مونځ نه پس ئې دَامام صاحب دَتپوس په جواب کښې اووئيل چه ورسره په م ښادئ کښې شريک يم اوتعلق ورسره ساتم.اوهغوی سره تګ راتګ هم کيږی. نودَ جماعت امام صاحب مونځ واپس راوګرځولو او دَهغه پلار ته ئې اووئيل چه ترڅو پورې تادَخپل ځوئ سره تعلق پريخودې نه وی نو دَجمعې مونځ ته مه راځه.دغې سړی بل جمات ته دَمونځ دپاره تلل شروع کړل دَهغه دويم جمات امام ورته اووئيل چه ستا مونځ جائز دې صرف په پلار والی باندې کافر کيږې نه.نو اوس دَدې مسئلې حقيقت څه دې؟ بينوا توجروا.

المستفتی:صاحب حق کانګړه شبقدر فورټ پيښور..۲۰/جمادی الثانی ۱۳۸۹ھ.

**الجواب:** دَدې طلاق دَورکونکی پلار دَجمعې دَمونځ يا جمات نه منع کول حرام دی الله تعالی فرمائی.

**ومن اظلم ممن منع مساجد الله ان يذکر فيها اسمه ﴿۱﴾ وقال ارء يت الذی ينهیٰ عبداً اذاصلیٰ﴿۲﴾ وايضاً ما منع النبی ﷺ الثلثة الذين خلفوا عن المسجد والجماعة ﴿۳﴾**

دغه شان ددې کار اعاده بالکل دَ ناپوهئ نتيجه ده.اودَداسې تعزير پوره کول ډير زيات ګران دی.ځکه چه فسق او فجورصرف زنانه ده بلکه جواری کول شراب ځکل،سودی کار کول،ږيره خرئيل او مونځ باقاعده نه کول دا ټول

**﴿۱﴾** (سورة البقرة پاره: ۱ آيت: ۱۱۴ رکوع: ۱۴)

**﴿۲﴾** (سورة العلق پاره: ۳۰ آيت: ۹، ۱۰ رکوع: ۲۱)

**﴿۳﴾** (الصحيح البخاری ص ۶۳۵ جلد ۲ باب حديث کعب بن مالک کتاب المغازی)

کارونه موجب د فسق دی. نودوی دَجمات او مونځ نه ولې نه منع کوی.
مختصرداچه دویم امام په حقه دې اوپه دې سړی (یعنی پلار) او نورو مسلمانانو
باندې ضروری دی چه د دې زناکارسره تعلق ختم کړی. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## دَ " من ام قوما وهم له کارهون " او " صلوا خلف کل بروفاجر " حدیثونو کښې تطبیق

**سوال:** ما یقول العلماء الراسخون فی هذه المسئلة ان الامام اذا صار فاسقا بعد ما تقلدوه عادلاً هل یستحق العزل، وهل یجوز لاهل الحل والعقد من اهل المحلة ان یعزلوه استدلالا بقوله علیه السلام لا یقبل صلوٰة من ام قوما وهم له کارهون؟ وبعضهم یقولون یجوز الصلوٰة خلفه ولا یستحق العزل استدلالا بقوله علیه السلام صلوا خلف کل بروفاجر ،فما التطبیق بین الحدیثین؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید حبیب شاه معرفت شیخ الحدیث مولانا محمد احمد صاحب شیر گڑھ......۱۹۷۳ء/۳/۱۹

**جواب:** اعلم ان الصلوٰة جائزة خلف الفاسق لقوله علیه السلام صلوا خلف کل بروفاجر (الحدیث) ﴿۲﴾ لکنها مکروهة تحریماً کما فی منحة الخالق علی

---

﴿۱﴾ قال القاری علی بن سلطان محمد: رخص للمسلم ان یغضب علی اخیه ثلاث لیال لقلته ولا یجوز فوقها الا اذا کان الهجر ان فی حق من حقوق الله تعالیٰ فیجوز فوق ذلک...... واجمع العلماء علی ان من خاف من مکالمة احد وصلته ما یفسد علیه دینه او یدخل مضرة فی دنیاه یجوز له مجانبته وبعده ورب صرم جمیل خیر من مخالطة تؤذیه...... فان هجرة اهل الاهواء والبدع واجبة علی مر الاوقات ما لم یظهر منه التوبة والرجوع الی الحق، فانه ﷺ لمّا خاف علی کعب بن مالک واصحابه النفاق حین تخلفوا عن غزوة تبوک امر بهجر انهم خمسین یوماً. (مرقاة المفاتیح شرح مشکوٰة ص ۷۵۹ جلد۸ باب ماینهی عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

﴿۲﴾ (اخرجه البیهقی کتاب الجنائز باب الصلوٰة علی من قتل نفسه غیر مستحل لقتلها (ص ۱۹ جلد۴) والدارالقطنی باب صفة من تجوز الصلاة......(بقیه حاشیه په بله صفحه)

هامش البحر ص ۳۴۹ جلد ۱، قال الرملی ذکر الحلبی ف شرح منیة المصلی ان کراهة تقدیم الفاسق والمبتدع کراهة التحریم انتهیٰ﴿۱﴾ قلت وهذا عند وجود غیر الفاسق لما فی البحر ص ۳۴۹ جلد ۱ وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والا فلا کراهة کما لا یخفیٰ﴿۲﴾ وجاز عزله عند عدم الفتنة کما یدل علیه ما فی ردالمحتار ص ۵۰۲ جلد ا واذا قلد عدلا ثم جار وفسق لا ینعزل ولکن یستحب العزل ان لم یستلزم فتنة انتهیٰ﴿۳﴾ قلت وجه الدلالة واضحة لان امام الحی ادون حالا من الامام الکبیر وقلت ایضا هذا عند تحقق الامام الغیر الفاسق والافلا ضیر فیه فافهم. وهوالموفق

## په کومو صورتونو کښې دَ جمعې پريخودل جائز دي

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په لاندينی صورتونو کښې سړې جمات ته لاړشی دَجمعې سره مونځ اوکړی يا په کور کښې پاتې شی اوځان له مونځ اوکړی.(۱).چه ښځې ته دَخاوند په غيرموجودګۍ کښې دَ تکليف رسيدلو غالب ګمان وی.(۲).ښځې ته دَخاوند په غيرموجودګۍ کښې دَتکليف رسيدلو شک وی.(۳).ښځې ته دَخاوند په غيرموجودګۍ کښې صرف دَطبيعت دَخرابيدلو خطره وی.(۴).چا سره دَوعدې پوره کولو وخت وی.

---

(بقیه حاشیه) معه والصلاة علیه ص۵۷ جلد۲ وبنحوه اخرجه الطبرانی فی الکبیر رقم: ۱۳۶۲۲ (حاشیه امداد الفتاح ص ۲۴۴ بیان من تکره امامتهم) وعن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ الجهاد واجب علیکم مع کل امیر برا کان اوفاجرا وان عمل الکبائر والصلاة واجبة علیکم خلف کل مسلم برا کان او فاجرا وان عمل الکبائر ...... رواه ابوداؤد. (مشکواة المصابیح ص ۱۰۰ جلد ۱ باب الامامة)

﴿۱﴾ (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

﴿۲﴾ (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۰۵ جلد ۱ باب الامامة)

(۵) سخت معذوره دې په جمات کښې ستر" وغیره ښکاره کیږی. تفصیلی جواب راولیګئ، ډیره مهربانی به وی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالحمید ایس وی درازنده ډیره اسماعیل خان ..... ۱۹۷۲ء ۲ / ۲۵.

**الجواب**: په اولنی او آخرنی صورت کښې دَجمعې پریخودل جائز دی (۱) فقط.

## دَ "اقتداء" دَصحیح والی دپاره دَ امام رضامندی شرط نه ده

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو امام دَخپلو مقتدیانو نه دَتنخواه مطالبه اوکړی او اووائی چه څوک دَتنخواه ورکولو نه انکاریان وی هغوی دې ما پسې مونځ نه کوی. دَشریعت په رنړا کښې ددې څه حکم دې ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: غنی الرحمن ارمړپایان نوشهره.

**الجواب**: دَامامت په عوض کښې اجرت (تنخواه) اخستل او ورکول جائز دی (۲). البته امام پسې دَاقتداء دَصحیح والی دپاره ددغې امام رضامندی شرط نه ده. (۳) . وهو الموفق.

## که څان له ئې دَ مازیګر مونځ کړې وی نو په دویم ځل به ئې دَ جمعې سره نه کوی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو سړې څان له دَ

---

(۱) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولا علی من حال بینه وبینها مطر وطین وبرد شدید وظلمة کذلک وریح لیلا لا نهارا وخوف علی ماله او من غریم او ظالم او مدافعة احد الاخبثین، قال ابن عابدین (قوله او ظالم) یخافه علی نفسه او ماله.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۶۱۴ جلد ۱ باب الامامة)

(۲) قال العلامة الحصکفی: ویفتی الیوم بصحتها لتعلیم القرآن والفقة والامامة والاذان.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۳۸ جلد ۵ باب الاجارة الفاسدة)

(۳) قال الحصکفی: والامام ینوی صلاته فقط ولا یشترط لصحة الاقتداء نیة امامة المقتدی بل لنیل الثواب عند اقتداء احدبه قبله کما بحثه فی الاشباه.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۳۱۲ جلد ۱ مبحث النیة باب شروط الصلاة)

مازیګر مونځ اوکړی. او هغه ته دَجمعې کیدلو یانه کیدلو تعلق هیڅ معلومات نه وی اوس داسړې په یوجمات تیریږی چه هغوی دَمازیګرمونځ کوی نودې ورسره په دویم ځل باندې مونځ کولې شی یا نه ؟ بینوا توجروا

المستفتی: سعد الله خان فیروزسنزلیبارټریزنوشهره.....۲۳/ربیع الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** کوم کس چه دَمازیګرمونځ یوځل اوکړی که ځان له وی او که جمعې سره وی په دویم ځل دَمازیګرمونځ نشی کولې. ﴿۱﴾. (شامی). وهو الموفق.

## په مسجدحرام او مسجدنبوی کښې دَ حنفیانو شوافعو پسې اقتداء

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ خلق په خپل کلی کښې دَیوې نوې خبرې ښکارشوې یو. دلته یو مشردې هغه فرمائی چه زمونږ حنفی المسلک مسلمانانو مونځ په بیت الله شریف اوحرم نبوی ﷺ کښې دَهغې امام پسې چه شافعی المسلک وی نه کیږی. او حال داچه مونږ ټولو هغوی پسې مونځونه کړې دی. سره دَ سند نه زر ته زره فتوی غوښتونکی یم؟ بینوا توجروا.

المستفتی: الحاج حافظ محمد اسماعیل......۱۵/۲/۱۹۷۳ء.

**الجواب:** که دَامام نه (چه په فروعو کښې مخالف وی) دَمونځ فساد متحقق شوې نه وی. نودَهغه پسې مونځ مکروه نه دې.

**یدل علیه ما فی ردالمحتار ص۵۲۶ جلد ۱ وفی حاشیة الاشباه للخیر الرملی الذی یمیل الیه خاطری القول بعدم الکراهة اذا لم یتحقق منه مفسد انتهیٰ﴿۲﴾ یقول العبد الضعیف ان قول الرملی یؤیده ما تعامله السلف لا نهم اقتدوا**

---

**﴿۱﴾ قال الحصکفی: وان صلی ثلاثا منها ای الرباعیة اتم منفرداً ثم اقتدیٰ بالامام متنفلاً ویدرک بذٰلک فضیلة الجماعة حاوی الا فی العصر فلا یقتدی لکراهة النفل بعده. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۲۷ جلد ۱ باب ادراک الفریضة)**

**﴿۲﴾ (ردالمحتار ص۶۱۲ جلد ۱ مطلب فی الاقتداء بشافعی ونحوه هل یکره ام لا، باب الامامة)**

بعضهم ببعض مع الاختلاف فی الفروع﴿۱﴾. وهوالموفق

## دَ ملازمت دَ خطرې په وجه حنفیت پرېخودل اودَ نورو مذهبونو په طریقې سره مونځ کول

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه امام حنفی المسلک دَملازمت په وجه باندې خپل دَحنفی مونځ طریقه پرېږدی اودَنورمذهبونو په طریقه باندې مونځ ورکوی.تردې چه وتر"هم په دوه سلامونوباندې کوی.آیا چرته یوحنفی دپاره په دې طریقې سره امامت کول جائز دی که نه ؟

بینوا توجروا.

المستفتی:جهان نثاربشام سوات.............ز ۱۹۹۰ء/۸/۵.

الجواب:که دا امام ډیر مجبور نه وی نو دا ضمیرفروشی جائز نه ده.﴿۲﴾ .کښې نودَمجبورئ په حالت کښې سخت منکرات هم جائزکیږی.﴿۳﴾ .وهوالموفق.

## دَتراوشتې نه بچ کیدلو دَ پاره دویم جماعت "اهون البلیتین" دې.

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱).زمونږ دَجمات چه کوم امام تیر شوې دې هغه دَموجوده امام استاد دې.او اوس هغه استاد دده نه ناراضه دې.(۲).امام صاحب دَمولانایوسف قریشی صاحب هم شاګرد دې.

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابراهیم الحلبی: ولهذا ذکر فی المحیط انه لو صلی خلف فاسق او مبتدع احرز ثواب الجماعة لکن لا یحرز ثواب المصلی خلف تقی کیف وقد صلی الصحابة والتابعون خلف الحجاج وفسقه ما لا یخفی...... وعلیه یحمل عمل الصحابة والتابعین فی الاقتداء بالحجاج. (غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص۴۷۵ فصل فی الامامة)

﴿۲﴾ فی الهندیه: حنفی ارتحل الی ملهب الشافعی رحمه الله تعالیٰ یعزر کذا فی جواهر الاخلاطی، قال الصحیح قوله ارتحل الی مذهب الشافعی یعزر ای اذا کان ارتحاله لالغرض محمود شرعا . (فتاویٰ عالمگیریه ص۱۶۹ جلد۲ فصل فی التعزیر)

﴿۳﴾ قال الله تعالیٰ: انما حرم علیکم المیتة والدم ولحم الخنزیر وما اهل به لغیر الله فمن اضطر غیر باغ ولا عاد فلا اثم علیه ان الله غفور رحیم .

(سورة البقرة آیت:۱۷۳ پاره: ۲ رکوع:۵)

هغه ترینه هم ناراضه دي (۳) ددې امام نه ټولي محلې والا هم خفه دی آیا دده اقتدا صحیح ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی: گل جنان ولد حاکم خان ............ ۲۸/جنوری ۱۹۷۵ء.

**الجواب**: چه په کومو وجوهاتو باندې ټول خلق خفه دی دهغې د وضاحت نه مخکښې مونږ دجواب ورکولو نه معذور یو. وهوالموفق.

## په دویم ځل تپوس

**سوال**: تفصیل او وجوهات داسې دی چه زمونږ په محله کښې د دریو رونړو بچی دی. د دوه رونړو بچی وائی چه دجمات دپاره متفقه طور امام ساتل پکار دی. لیکن د دریم رور اولاد وائی چه داموجوده امام به ساتلې کیږی. لیکن دخلقو اکثریت په دې باندې متفق دی چه موجوده امام دامامت نه لرې کړیشی اوبل امام په متفقه طور سره مقرر کړیشی او دا دویم امام ددغې کلی دې اوهمیشه دتره ځامنوسره په زمکه وغیره جهگړې کوی. لیکن موجوده امام هم دخپل امامت نه نه لرې کیږی. او وائی چه هرڅنګه وی څه به امامت کوم، نوددې وجې نه په یو جمات کښې په یو وخت باندې دوه امامان مونځ ادا کوی. آیا دا جائز دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: گل جنان ضلع بنوں.......... ۲۴/فروری ۱۹۷۵ء.

**الجواب**: محترم بغیر څه وجې نه امام معزول کول جائز نه دی. اوپه یو وخت کښې دوه جماعتونه کول مکروه دی. (۱) . البته دجنګ جهگړې او شر او فتنې په نسبت سره اهون البلیتین دی. (۲) . نوتکرار او تعدد خه دې. خو تلوار او تعصب شر دې. وهوالموفق.

---

**(۱) قال العلامه حصكفي: ويكره تكرار الجماعة باذان واقامة في مسجد محلة لا في مسجد طريق او مسجد لا امام له ولا مؤذن. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص۴۰۸ جلد ۱ مطلب في تكرار الجماعة في المسجد)**

**(۲) قال العلامه عبد القادر الرافعي: (قوله الا لفتنة) اى الا اذا خيف حصول فتنة من عزله بسبب فسقه فلا يسعى في عزله لان ضرر الفتنة فوق ضرر خلعه.**

**(تقريرات الرافعي حاشيه ابن عابدين ص ۶۹ جلد۷ باب الامامة)**

## په سټیټ بینک کښې امامت کول

**سوال**:علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په سټیټ بینک کښې ملازمت یا امامت کول صحیح دی یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی:سراج الاسلام جامع مسجد کوچی بازارمحمدعلی جوهرپیبنور۳/صفر۱۴۰۴ھ

**الجواب**:دَبینک ملازمت تعاؤن علی المعصیت دې چه دا ممنوع دی.(۱) .او دا امامت بذات خود جائز دې البته دَسود منافع یو امام یا ملازم ته دَعوض(بدلې) په طور ورکول جائز نه دی.(۲) .وهوالموفق.

## په سر تور سر دَ امامت کولو حکم

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه آیا امام په سرتور سر باندې امامت کولې شی؟ او حال دا چه امام سره کپړه هم شته خو هغه کیږدی

---

﴿۱﴾ عن جابر قال لعن رسول اللهﷺ اکل الربوا و موکله و کاتبه و شاهدیه وقال هم سواء رواه مسلم. (مشکواة المصابیح ص ۲۴۴ جلد ۱ الفصل الاول باب الربوا)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: ان التصدق من الحرام کفران کان علی رجاء الثواب لان فیه استحلال المعصیة وهو کفر اذا ثبت کونها معصیة بدلیل قطعی سواء کان حراماً لعینه او لغیره وهو الراجح فالاصل فیه ان یرد الی المالک او ورثته فان لم یمکن الرد فسبیله التصدق علی الفقراء کما فی الهدایة وغیرها ولکن لا علی وجه رجاء الثواب من هذا المال نفسه بل ینوی فراغ الذمة او ایصال الثواب الی المالک فیثیبه الله تعالیٰ بامتثال امر الشریعة کما صرح به ابن القیم وفی شرح الاشباه انه جاز اخذ الحرام کالربا للفقیر، ویدل علی جواز التصدق علی الفقراء وعلی جواز اخذهم حدیث عاصم بن کلیب اخرجه ابوداؤد فی سننه فی باب اجتناب الشبهات من کتاب البیوع من حدیث اجابة النبیﷺ داعی امرأة وفی آخره اطعمیه الاساریٰ.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۳۴ جلد ۱ مبحث التصدق من الحرام)

وائی چه داهم سنتِ رسول دی نو آیاپه سرتورسر مونځ ورکول جائزدی؟

بینوا توجروا

المستفتی:صوفی گل رحمن پیپلزکالونی فیصل آباد....۷/رمضان ۱۴۰۲هـ

**الجواب**:دَ احرام په حالت کښې اودَتواضع (عاجزئ) په صورت کښې سرتور سر مونځ کول جائز دی البته په تواضع او تصنع (ځان ښودلو) کښې فرق کول ضروری دی.اودَنوي تهذیب والو دپاره دَ دلیل نیولو محل جوړیدل لویه فتنه ده.﴿۱﴾ .وهوالموفق.

## دَ زنانو د پاره جمات ته مونځ دپاره تلل صحیح نه دی

**سوال**:علمائي دین دي مسئلي باره کښې څه فرمائی! ﴿۱﴾.آیا زنانه اوسړی (غیرمحرم) په جمات کښې دَجمعې مونځ کولې شی چه په جمات کښې دَپردي انتظام هم نه وی.اویو بل ښه وینی او حال دا چه مونږ ورته څوځلې وئیلي دی چه زنانه دې په کورونوکښې مونځونه کوی ځکه چه مکه مکرمه کښې هم داسې کیږی.دَمسئلې وضاحت اوکړئ؟﴿۲﴾.په دې ښځوکښې څو زنانه په نیم بربنډلباس کښې هم جمات ته راځی او دَجمات په احاطه(حدود) کښې یوه کمره (کوټه) ده چه په هغې کښې جامې بدلې کړی اومونځ کوی اوداجامې هم داسې وی چه مونږ ورته په پاکستان کښې تیډی جامې وایو نو آیا دَدوی په دې کښې مونځ کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:محمداسحاق هانگ کانگ .........۱۹۷۴ء/۲/۱۱.

**الجواب**: محترم المقام دامت برکاتکم،دَ"السلام علیکم" نه پس دې داخبره واضحه وی چه کله سړی او زنانه یوامام پسې مونځ کوی نو دَبرابر والی

---

**﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: وصلاته حاسرا ای کاشفا رأسه للتکاسل ولابأس به للتذلل اما للاهانة بها فکفر فی ردالمحتار قال فیه اشارة الی ان الاولیٰ ان لا یفعله وان یتذلل ویخشع بقلبه فانهما من افعال القلب. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۷۴ جلد ۱ مطلب فی الخشوع باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)**

په صورت کښې دَسړی مونځ فاسد یږی، دَمحاذات نه مراد دا دې چه زنانه نبی یا کس طرفته دَسړی سره بغیر دَخه رکاوټ نه اودریږی یا دَسړی نه مخکښې اودریږی اګرکه سړې ترینه لرې وی.(۱) په حرم شریف کښې دَ محاذات نه دَ حفاظت دپراهتمام کولې شی لیکن دَعوامو دَبدنظمئ په وجه باندې انتظام کونکی عاجزه شی.(۲) دَښځې دپاره نیم بربنډ کیدل حرام دی لیکن دَعورت، پټولو په صورت کښې که ټیټه ی لباس هم وی مونځ ئې صحیح دې(۳). وهوالموفق

## بغیر پټکی او بغیر ټوپئ نه مونځ ورکول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په سعودی عرب کښې اکثر امامان بغیرپټکی اوبغیر ټوپئ نه اودریږی اومونځ ورکوی او مونږ دَمجبورئ نه هغوی پسې خامخامونځ کوؤنوآیا دې خلقوپسې مونځ کیږی؟

بینوا توجروا.

المستفتی: محمد اسماعیل وزارة الدفاع والطیران ریاض سعودیه ....۱۹۸۸ء/۴/۱۸

**الجواب:** بغیرپټکی یا بغیرټوپئ نه مونځ کول یا ورکول دَسنتو نه خلاف دی(۳)

---

**﴿۱﴾** قال ابن عابدین: وقد صرحوا بان المرأة الواحدة تفسد صلاة ثلاثة اذا وقفت فی الصف من عن یمینها ومن عن یسارها ومن خلفها فالتفسیر الصحیح للمحاذاة ما فی المجتبیٰ المحاذاة المفسدة ان تقوم بجنب الرجل من غیر حائل او قدامه واجاب فی النهر بان المرأة انما تفسد صلاة من خلفها اذا کان محاذیالها.

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۲۳ جلد ۱ باب الامامة)**

**﴿۲﴾** وفی فتاویٰ الهندیه: بدن الحرة عورة الا وجهها وکفیها وقدمیها کذا فی المتون.

**(فتاویٰ عالمگیریه ص ۵۸ جلد ۱ الفصل الاول فی الطهارة وستر العورة)**

**﴿۳﴾** فی منهاج السنن: اعلم انه تستحب الصلوٰة فی ثلاثة اثواب الرداء والازار والعمامة او القمیص والسراویل والعمامة صرح به فی البحر وغیره، ولا تکره فی ثوب واحد اذا اشتمل به جمیع بدنه کازار المیت کما صرح به فی الشرح الکبیر، ولعل مراده نفی کراهة التحریم . فلایرد ما ذکر فی الغرائب رجل صلی مع قلنسوة ولیس فوقها عمامة او شئ آخر یکره وماذکره الفردوس الدیلمی عن جابر رکعتان بعمامة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

لیکن دَ داسې مونځ راکرځول شرعی مطلوب نه دی دغه شان دَ بیرې خریونکی پسې مونځ کول مکروهِ تحریمی دی لیکن واجب الاعاده نه دې لان السلف الصالحین قد صلوا خلف ائمة الجور ولم تروعنهم الاعادة ﴿۱﴾ ولان الاقتداء خلف الفاسق اولیٰ من الانفراد ولان هذه الکراهة لامر خارج عن ماهیة الصلاة ﴿۲﴾ فافهم . وهوالموفق

## که امام په جمات کښې وی اوبعضې مقتدیان په تهه خانه کښې وی نو اقتداء صحیح ده

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه داسې جمات وی چه لاندې ترینه تهه خانه هم وی امام په جمات کښې اودریږی او دَباران یابل څه

(بقیه حاشیه) خیر من سبعین رکعة بلا عمامة، وبالجملة ان ترک العمامة ترک الاولیٰ نعم جاز ترک ما لایکون مطلوبا شرعا عند مصلحة العوام. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۲۵ جلد ۲ باب ماجاء فی الصلوٰة فی الثوب الواحد)

﴿۱﴾ قال العلامه حلبی: ولهذا ذکر فی المحیط انه لو صلی خلف فاسق او مبتدع احرز ثواب الجماعة لکن لا یحرز ثواب المصلی خلف تقی کیف وقد صلی الصحابة والتابعون خلف الحجاج وفسقه ما لا یخفی...... وعلیه ما یحمل عمل الصحابة والتابعین فی الاقتداء بالحجاج. (غنیة المستملی شرح المنیة المصلی ص ۴۷۵ فصل فی الامامة)

﴿۲﴾ وفی منهاج السنن: (قوله رجل ام قوما وهم له کارهون) قال ابن الملک لبدعته او فسقه او جهله اما اذا کان بینه وبینهم کراهة عداوة بسبب امر دنیوی فلایکون له هذا الحکم، وقال القطب الجنجوهی جملة الامر انه لو کان فیه ما یوجب کراهته شرعا اعتبرت کراهة وان لم یکرهه احد، وان لم یکن فیه ذلک شرعا لم یعتبر فیه کراهة من کرهه وان کرهه الکل واما اذا لم یکن امره ظاهراً شرعا فالمعتبر رائ غالب من خلفه، قال القاری اما اذا کرهه البعض فالعبرة بالعالم ولو انفرد، وقیل العبرة بالاکثر ورجحه ابن حجر ولعله محمول علی اکثر العلماء اذا وجدوا والافلا عبرة بکثرة الجاهلین وجزم صاحب الحلیة بکون هذه الکراهة کراهة تحریم کما قاله ابن عابدین وذکرارباب الفتاویٰ ان کراهة الاقتداء بمثل هذا الامام اذا کان فی القوم افضل منه والافلا کراهة وذکروا ایضا ان الاقتداء بمثله اولیٰ من الانفراد. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۴۰ جلد ۲ باب ماجاء من ام قوما وهم له کارهون)

اجتماع په وجه ځائې نه وی اومقتدیان په تهه خانه کښې اودریږی نوآیا لاندې مونځ کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:عبدالمنان............۱۹۷۴ء/۱۹/۳.

**الجواب:** دا اقتداء یعنی چه کله امام اوچت وی اوقوم په تهه خانه کښې وی جائز ده خوچه څه اشتباه پکښې نه وی. کماصرح به فی الهندیه وردالمحتارفی باب الامامة ﴿۱﴾.وهوالموفق.

## دَ دویمې جمعې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره څه فرمائی دې چه په جمات کښې دویم جماعت کول څنګه دی جائز دی که ناجائز؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حاجی ګل عظیم خان احسان کارپوریشن بټ خیله سوات....۱۹۷۹ء/۱۷/۹.

**الجواب:** دویم جمات نه مطلقاً مکروه دې اونه مطلقاً مشروع، کمالایخفی علی من راجع الی باب امامة ردالمحتـــاروبوادرالنوادر،دَ اذان او اقامت نه کولو او ځائې بدلولو په صورت کښې انکارکول پخپله یوناجائز کار دې.

**کما فی ردالمحتار ص۵۵۳ جلد ۱ ولو کرراهله بدونهما او کان مسجد طریق جاز اجماعاً (وقال بعده) عن ابی یوسف انه اذا لم تکن الجماعة علی الهیئة الاولیٰ لا تکره والاتکره وهوالصحیح﴿۲﴾. وفی الهندیه ص۸۳ جلد ۱ وفی الاصل للصدر الشهید اما اذا صلوا الجماعة بغیر اذان واقامة فی**

---

**﴿۱﴾ وفی الهندیه: ولو قام علی سطح المسجد واقتدی بامام فی المسجد ان کان للسطح باب فی المسجد ولا یشتبه علیه حال الامام یصح الاقتداء. (فتاویٰ عالمگیریه ص۸۸ جلد ۱ الفصل الرابع فی بیان ما یمنع صحة الاقتداء وما لا یمنع)(وهکذا فی ردالمحتار ص۴۳۵ جلد ۱ قبیل مطلب فی رفع المبلغ صوته زیادة علی الحاجة)**

**﴿۲﴾ (ردالمحتار ص۴۰۸،۴۰۹ جلد ۱ مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد باب الامامة)**

ناحیة المسجد لا یکره﴿۱﴾ وفی المقام تفصیل ﴿۲﴾. وهوالموفق

## چه کسان دَ څلورو نه زیات نه وی نو دَ جمات په یو طرف کښې دویم جمات کولې شی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ دَ کلی په جمات کښې امام شته دې اومونځ اوکړی لیکن څه کسان پاتې شی اودویم جمات اوکړی نوآیا داهغوی داجماعت یعنی دویم جماعت صحیح دې ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حبیب الله خان گمبیلالکی مروت.......... ۱۴۰۱/۷/۴هـ.

**الجواب**: دَجمات په یوطرف کښې دَ اذان او اقامت نه بغیر دویم جمات کول جائز دی. اوخاص کرچه کله داکسان دَڅلورونه زیات نه وی.

**کما فی الهندیه ص۸۳ جلد۱ وفی الاصل للصدر الشهید اما اذا صلوا بجماعة بغیر اذان واقامة فی ناحیة المسجد لایکره، وقال شمس الائمة الحلوانی ان کان سوی الامام ثلاثة لا یکره بالاتفاق﴿۳﴾. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ص۸۳ جلد۱ الفصل الاول فی الجماعة)**

**(۲) اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمانی**: دَفقهی روایتونو نه څه صورتونه اودَهغې احکامات معلومیږی. اولنې صورت: دَمحلې په جمات کښې غیر اهل مونځ کړې وی. دویم صورت دَمحلې په جمات کښې اهل کس بغیر دَاعلان اذان نه یابغیر دَاذان نه په درجه اولی سره مونځ کړې وی. دریم صورت: دغه جمات په لاَره باندې وی. څلورم صورت: په دې جمات کښې امام اومؤذن معین نه وی. پنځم صورت: دَمحلې جمات وی یعنی دَهغه جمات مونځ کونکی اوامام معین وی اوهغوی پکښې دَ اذان دَاعلان په صورت کښې مونځ کړې وی. پس څلورم او اولنې صورت کښې بالاتفاق جماعت ثانیه جائز بلکه افضل دې لکه څنګه چه د افضلیت تصریح موجود ده. نوپه پنځم صورت کښې که دویم جمات بهیئت الاولي وی بیاخوبالاتفاق مکروه تحریمی دې لکه چه په "ردالمحتار" کښې دَتحریمی کیدلو تصریح ده. اوکه په هیئت اولي نه وی نودا دَ کلام محل دې دَ امام ابویوسف په نزد مکروه نه دې او دَ امام صاحب په نزدمکروه دې لکه چه په "ظهیریه" کښې دَدې ظاهرالروایة" کیدل ښکاره دی. البته یو روایت دَامام صاحب نه دا دې چه که دریو نه زیات وی نومکروه دې کنې مکروه نه دې دا دَ روایتونو دَظاهری مدلول خلاصه شوه الخ. (امداد الفتاوی ص۲۴۲ جلد۱ باب الامامة والجماعة).

**﴿۳﴾ (فتاویٰ هندیه ص۸۳ جلد۱ الفصل الاول فی الجماعة الباب الخامس فی الامامة)**

## دَ باندو په جماتونو کښې دَ دویم جماعت حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَباندو په جماتونو کښې دَحنفی مذهب په بناءباندې دویم جماعت جائز دې که نه ؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدعمران نوشهره.

**الجواب:** دویم جماعت نه مطلقاً ممنوع دې اونه مطلقاً مشروع دې.دَامام ابویوسف قول" اوسع المذاهب" دې.وهوانه اذالم تکن الجماعة علی الهیئة الاولی لاتکره والاتکره وهوالصحیح کمافی ردالمحتارص۵۵۲جلد۱ (۱).وهوالموفق.

## په ائیرپورټ (دَجهازونو میدان) کښې دویم جماعت مکروه نه دې.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ"عرب امارات" په ائیرپورټ کښې یوجمات دې پنځه وخته مونځونودپاره ئې امام هم مقرر دې چه باقاعده امامت کوی لیکن مسئله داده چه په ماسپښین کښې دوه جمعې کیږی چه په یوشان باندې کیږی هم په هغه مصلی او دَ اقامت سره او دواړو جماعتونودپاره باقاعده وختونه هم لیکلې شی آیا داجائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرشید اندرون هشتنګری ګیټ پیښور.... ۲۰/ربیع الاول ۱۴۰۲ه.

**الجواب:** ظاهری طورسره دَجماعتونو په دې تکرار کښې څه کراهت نشته ځکه چه دَائیرپورټ او سټیشن وغیره جماتونه محلې نه لری.

(ماخوذا ز ردالمحتارص۵۱۶جلد۱باب الامامة) (۲).وهوالموفق.

---

**(۱)** (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۰۹ جلد ۱ مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد)

**(۲)** قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: او کان مسجد طریق جاز اجماعا کما فی مسجد لیس له امام ولاموذن ویصلی الناس فیه فوجا فوجا فان الافضل ان یصلی کل فریق باذان واقامة علی حدة کما فی امالی قاضیخان ......وامامسجد الشارع فالناس فیه سواء لا اختصاص له بفریق دون طریق. (ردالمحتار ص۴۰۸ جلد ۱ مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد باب الامامة)

## دَ سود خور امام دَ وجې نه بل جمات ته تلل بهتر دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه آیا سود خور اما، پسې مونځ کول جائز دی ؟ چه خواته بل جمات کښې هم دَجمعې مونځ کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: میاں احسان الله اسماعیل نوشهره........ ۳۰/جولائی ۱۹۷۳ء.

**الجواب:** په دې صورت کښې بل جمات ته تلل جائز دی بلکه بهتر دی. فی الشرح الکبیرص ۵۶۹وفی فتاوی قاضی خان اذاکان امام الحی زانیااوآکل ربواً له ان یتحول الی مسجد آخر.(۱) .وهوالموفق.

## دَ فرض مونځ راګرځونکی پسې دَ نوی فرض والا دَ اقتداء حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دکراهت تحریمی په وجه باندې دَفرض مونځ راګرځونکی امام پسې دَنوی فرض کونکی اقتداء صحیح ده یا نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: شیخ الحدیث مولانافضل الهی شاه منصوری دارالعلوم حقانیه ۱۴/۱۰/۱۹۹۰

**الجواب:** دَدې اقتداء دَصحت یا عدم صحت متعلق په صراحت سره څه جزئیه ملاؤ نه شوه او اکابرین په دې کښې مختلف دی. مولانااشرف علی تهانوی رحمه الله صحت طرفته مائل دې اومفتی عزیزالرحمن صاحب رحمه الله دَعدم صحت قائل دې. چه راجح قول دَحضرت حکیم الامت رحمه الله دې ان شاء الله. ځکه چه دَ اعادې تعریف دا دې.

**هی فعل ما فعل او لا مع ضرب من الخلل ثانیا وقیل هو اتیان المثل الاول علی وجه الکمال کما فی منحة الخالق علی هامش البحر ص۷۸ جلد۲ (۲)، وفی ردالمحتار ص۶۷۷ جلدا عن المیزان یوخذ من لفظ الاعادة ومن تعریفها بما مر انه ینوی بالثانیة الفرض**

---

(۱) (غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص۵۶۵ فصل فی احکام المسجد)

(۲) (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ص۷۸ جلد۲ باب قضاء الفوائت)

**لان ما فعل او لاهو الفرض فاعادته فعله ثانيا اما على القول بان الفرض يسقط بالثانية فظاهر، واما على القول الاخر فلان المقصود من تكرارها ثانيا جبر نقصان الاولیٰ فالاول فرض ناقص والثانية فرض كامل، انتهیٰ مافی ردالمحتار ﴿۱﴾، وفی جنائز ردالمحتار ص۸۲۶ جلد ۱ فاذا اعادها وقعت فرضاً مكملا للفرض الاول نظير اعادة الصلوٰة المؤ داة بكراهة فان كلا منهما فرض كما حققناه فی محله انتهیٰ ما فی ردالمحتار ﴿۲﴾**

خلاصه دا چه صلاة معاده فرض دي او د ابن الهمام رحمه الله کلام هم دې طرف ته اشاره کوی.

**كما فی ردالمحتار ص ۴۲۶ جلد ۱ قوله والمختار انه جابر للاول لان الفرض لا يتكرر ای الفعل الثانی جابر للاول بمنزلة الجبر بسجود السهو وبالاول يخرج عن العهدة...... ومقابله ما نقلوه عن ابی اليسر من ان الفرض هو الثانی، واختار ابن الهمام الاول كما قال لان الفرض لا يتكرر وجعله الثانی يقتضی عدم سقوطه بالاول اذهو لازم ترک الركن لا الواجب الا ان يقال المراد ان ذلک امتنان من الله تعالیٰ اذ يحتسب الكامل وان تاخر عن الفرض لما علم سبحانه انه سيوقعه، انتهیٰ﴿۳﴾**

خلاصه دا چه دَاعادې په صورت کښې معلومه شی چه دا راګرځولې شوې مونځ فرض دي نو دَدې نوی راتلونکی اقتداء به صحیح وی. وهوالموفق.

## دَ محلې والو د پاره په جمات کښې دویم جماعت کول مکروه دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که په یو جمات کښې

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۳۶ جلد ۱ باب قضاء الفوائت)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۶۵۲ جلد ۱ مطلب فی کراهة صلاة الجنازة فی المسجد باب صلاة الجنائز)

﴿۳﴾ (ردالمحتار مع الدرالمختار ص۳۳۷ جلد ۱ مطلب كل صلاة اديت مع كراهة تحريم تجب اعادتها)

مونځ شوې وی او دهغې نه پس دَ دغې محلې نورخلق بیاپه دویم ځل جماعت کوی .نوآیاشرعی دا دویم جماعت جائز دې که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:عبدالولی افغانی متعلم دارالعلوم حقانیه.... ۳۱/۱۲/۱۹۸۶ء

**الجواب**:دَ کومې محلې دَجمات امام چه مقرر وی اوهغه باقاعده په جماعت سره مونځ کړې وی.نودَهغې نه پس دویم جماعت مکروه دې.

**اما اذا صلوا بجماعة بغير اذان واقامة فى ناحية المسجد لا يكره وقال شمس الائمة الحلوانى ان كان سوى الامام ثلاثة لا يكره اتفاقا كذا فى الاصل لصدر الشهيد (عالمگيرى ص ۸۲ جلد ۱ باب الامامة ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## بدعتی پسې مونځ کول پکار دی که ځان له؟

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَبدعتی په اقتداء کښې مونځ کول ښه دی اوکه اقتداء ورپسې ا ونکړې نوبیاځان له مونځ ښه دې ؟ حکم ئې بیان کړئ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم....... ۲۹/شوال ۱۴۰۳ھ.

**الجواب**:دَځان له مونځ نه اوویشت درجې افضل دې.﴿ ۲﴾ .(بحر،شامی،فتح القدير، هنديه وغيره).﴿ ۳﴾ .وهوالموفق.

---

**﴿۱﴾ (فتاوىٰ عالمگيريه ص ۸۳ جلد ۱ باب الامامة)**

**﴿۲﴾ عن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ صلوٰة الجماعة تفضل على صلوٰة الرجل وحده بسبع وعشرين درجة. (سنن الترمذى ص ۳۰ جلد ۱ باب ماجاء فى فضل الجماعة)**

**﴿۳﴾ وفى الهنديه: تجوز الصلاة خلف صاحب هوى وبدعة...... ولو صلى خلف مبتدع او فاسق فهو محرز ثواب الجماعة لكن لا ينال مثل ما ينال خلف تقى كذا فى الخلاصه.**

**(فتاوىٰ عالمگيريه ص ۸۴ جلد ۱ الفصل الثالث فى بيان من يصلح اماما لغيره)**

## امام ته دَ تنخواه ورکولو دَ ویرې نه دَ جماعت پریخودونکی حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم مقتدی امام ته دَ فطرانې او تنخواه ورکولو دَ ویرې نه مونځ کول پریږدی دَهغه څه حکم دې ؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.........۲۳/ذی قعده ۱۳۹۲ھ.

**الجواب:** دَجماعت پریخودونکې فاسق دې ﴿۱﴾ اګر که په امام کښې فسق، بدعت، حرام خوری وغیره عیبونه ولې موجود نه وی.﴿ ۲ ﴾ .(ماخوذمن ردالمحتار والبحروالهندیه). وهو الموفق.

## چه دَ محلې والا نه وی دَ هغوی دویم جماعت او اذان او اقامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که په یو جمات کښې مونځ شوې وی اوملیمانه دویم جماعت کوی نو داجائز دی که نه ؟ دغه شان دَ اذان او اقامت به څه حکم وی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نورالحق باړه پیښور........۲/ صفر۱۴۰۳ھ.

**الجواب:** کوم جمات سره چه محله وی او امام او موذن ئې مقرر وی نودَ محلې والا دَ جماعت نه پس بل جماعت مکروه دې البته که درې څلور کسان دَجمات په یو کوټ کښې بغیر دَاقامت نه دویم جماعت اوکړی نو څه دَ

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین رحمه الله: (قوله قال فی البحر الخ) وقال فی النهر هو اعدل الاقوال واقواها ولذا قال فی الاجناس لا تقبل شهادته اذا ترکها استخفافا ومجانة اما سهوا او بتاویل ککون الامام من اهل الاهواء او لا یراعی مذهب المقتدی فتقبل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۱۰ جلد ۱ باب الامامة)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن نجیم رحمه الله: (قوله وکره امامة العبد والاعرابی والفاسق والمبتدع والاعمی وولد الزنا) بیان للشیئین الصحة والکراهة اما الصحة فمبنیة علی وجود الاهلیة للصلاة مع اداء الارکان وهما موجودان من غیر نقص فی الشرائط والارکان ومن السنة حدیث صلوا خلف کل بر وفاجر وفی صحیح البخاری ان ابن عمر کان یصلی خلف الحجاج وکفی به فاسقا کما قال الشافعی وقال المصنف انه افسق اهل زمانه.

(البحر الرائق ص ۳۵۸ جلد ۱ باب الامامة)

اعتراض خبره نه ده.خودعام سړی دَجماعت به دا حکم نه وی.فلیراجع الی البدائع والشرح الکبیر.﴿۱﴾ .وهوالموفق.

## دَ محلې والا دَجماعت نه مخکښې دَمسافرو جماعت کول جائز دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَمحلې والو دَجماعت نه مخکښې دَمسافرو دپاره دَهغوی په جمات کښې ځان له جماعت کول صحیح دی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: زاهدحسین بټ خیله سوات

**الجواب:** مسافرخلق دَمحلې والو نه مخکښې جماعت کولې شی په دې کښې هیڅ کراهت نشته دې.(عینی شرح هدایه،شامی ص ۳۷۱ جلد ۱.﴿۲﴾.وهوالموفق.

## دَ حنفی امام شوافعو د پاره دَ شوافعو په طریقه مونځ ورکول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه امام حنفی دې او

---

﴿۱﴾ قال الحلبی: واذا لم یکن للمسجد امام وموذن راتب فلا یکره تکرار الجماعة فیه باذان واقامة بل هو الافضل ذکره قاضی خان اما لو کان له امام وموذن معلوم فیکره تکرار الجماعة فیه باذان واقامة عندنا وعن ابی حنیفة رحمه الله لو کانت الجماعة الثانیة اکثر من ثلثة یکره التکرار والافلا وعن ابی یوسف رحمه الله اذا لم تکن علی هیئة الاولیٰ لا یکره والا یکره وهو الصحیح وبالعدول عن المحراب تختلف الهیئة کذا فی فتاویٰ البزازی. (غنیة المستملی ص ۵۶۶،۵۶۷ فصل فی احکام المسجد)

(ومثله فی بدائع الصنائع ص ۳۷۸ جلد ۱ تکرار الجماعة فی المسجد)

﴿۲﴾ قال الحصکفی: وکره ترکهما معا لمسافر ولو منفرداً وکذا ترکها لا ترکه لحضور الرفقة بخلاف مصل ولو بجماعة فی بیته بمصر او قریة لها مسجد ای فیه اذان واقامة والا فحکمه کالمسافر فلا یکره ترکهما اذا اذان الحی یکفیه او مصل فی مسجد بعده صلاة جماعة فیه بل یکره فعلهما. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۹۱ جلد ۱ مطلب فی کراهة تکرار الجماعة فی المسجد)

مقتدیان دَبل امام تابعې دی شوافع دی یا مالکیان وغیره.آیا دا حنفی امام دَبل مذهب مقتدیانو دپاره دَهغوی په طریقه مونځ ورکولې شی ؟ لکه قنوت فی الفجر "تسمیه بالجهروغیره؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل اکبرحقانی حالاًمقیم متحده عرب امارات...۱۴۰۱/۷/۹هـ.

**الجواب:** امام به متبوع وی دَهغه په تابع کیدلوکښې دَتوهین اوبدنظمئ پیداکیدلو پشان مصیبتونه موجود دی.﴿ ۱ ﴾ .وهوالموفق.

## دَ غلا دَ خطرې دَ وجې نه جماعت پریخودل جائز دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څه په زرعی تربیتی اداره پیښورکښې دَ"انسټریکټر" په حیثیت متعین یم طالب علمانوته دَ خودنې نه علاوه دَڅوکیدارانو نګرانی هم زما په ذمه ده مسئله داده چه زمونږ اکثر څوکیداران دَډیوټئ په وخت کښې جمات دَجمعې د مونځ دپاره ځی اوس (خدائې دې نه کړی) که دې دوران کښې څه غلا وغیره اوشی نومتعلقه څوکیدار او ورسره به زه هم دَنګران په حیثیت سره ذمه وار یم،نوسوال دا دې چه آیا څوکیدار دپاره دَډیوټئ په دوران کښې دَجمعې مونځ کول ضروری دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: کشمیرخان پیښور یونیورسټی... ۲۲/شوال ۱۴۰۴هـ.

**الجواب:** مناسب داده چه دا څوکیداران عمرات وغیره دَ ډیوټئ په دوران کښې په یومناسب ځائې کښې جماعت سره مونځ اداکړی اګرچه د غلا د خطرې په وجه ترکِ جماعت هم جائزدی.(کمافی ردالمحتارص۵۱۹ جلد۱) ﴿۲﴾.وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدين : لو ان رجلاً برئ من مذهبه باجتهاد وضح له كان محمودا ماجورا اما انتقال غيره من غير دليل بل لما يرغب من غرض الدنيا وشهوتها فهو المذموم الآثم المستوجب للتاديب والتعزير لارتكابه المنكر فى الدين واستخفافه بدينه ومذهبه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۰۹ جلد۳ مطلب فيما اذا ارتحل الى غير مذهبه باب التعزير)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى: ولا على من حال بينه وبينها...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ محاذات نه موجوديدلو په صورت کښې ښځه خاوند جماعت کولې شي

**سوال:** علمائي دين دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه يو سړې دَخپلې ښځې سره هره ورځ [illegible] [illegible] [illegible] واني چه دلته داخترنه علاوه دجمعي دَمونځ نه هيڅ څه بندوبست نشته که دَ سړې خپلې ښځې سره په خپل کور کښې دَجمعې مونځ ادا کړی نو جائز دی که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی فضل مولی عرف تنګی استادپړانګ چارسده ۱۲ صفر۱۳۹۲ھ

**الجواب:** دا جماعت بغيرشک شبهې نه جائز دې البته ښځه به خامخا (وجوباً) شاته اودروی.

لان المحاذلة مفسد عندنا ﴿۱﴾ وروی الطبرانی فی الکبير والاوسط ان رسول اللهﷺ اقبل من نواحی المدينة يريد الصلوٰة فوجد الناس قد صلوا فمال الی منزله فجمع اهله فصلی بهم (بحواله بوادر ص ۱۳۱ جلد۱) ﴿۲﴾. وهو الموفق

## دَ امام دپاره دَ مقتديانو نه ځان له دَجمات د هال په دروازه کښې اودريدل مکروه دی

**سوال:** علمائي دين دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَجمات امام صاحب

---

(بقيه حاشيه) مطر وطين وبرد شديد وظلمة کذلک وريح ليلالا نهاراً وخوف علی ماله، قال ابن عابدين ای من لص ونحوه اذا لم يمکنه غلق الدکان او البيت مثلاً ومنه خوفه علی تلف طعام فی قدر...... والظاهر عدمه لان له قطع الصلاة له ولاسيما ان کان امانة عنده کوديعة او عارية او رهن ممٰ يجب عليه حفظه.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۴۱۱ جلد۱ قبيل مطلب البدعة خمسة قسام باب الامامة)

﴿۱﴾ قال الحصکفی: واذا حاذته ولو بعضو واحد ......امرأة ...... ولاحائل بينهما فی صلاة...... فسدت صلاته. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۲۳ جلد۱ قبيل مطلب الواجب کفاية هل يسقط بفعل الصبی)

﴿۲﴾ (بوادر النوادر ص ۱۳۱ جلد۱ تفصيل کراهت جماعة ثانيه)

همیشه دَ هال (کمرې) په دروازه کښې اودریږی اومقتدیان دَجمات په صحن کښې وی نوآیا دا اقتداء صحیح ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی نامعلوم ۱۹۹۰ـ۲ـ۸

**الجواب**: دا اقتداء صحیح ده لیکن مکروه ده

**اما الاول لکون المسجد مکانا واحداً واما الثانی فلتخصیص الامام بالمکان ولقیامه بین الاسطوانتین (ماخوذ از ردالمحتار ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## دَ زنانو دَ جماعت شرعی ثبوت شته دې

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَبنده کور والا (ښځه) په نفلو کښې کلام پاک اوروی او دَ زنانو امامت کوی او س بعضې خلق وائی چه دَښځو دَجماعت څه ثبوت دې؟ نوآیا واقعی دَښځو دَجماعت څه شرعی ثبوت نشته؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل الهی خطیب جامع مسجد فاروقیه اسلام آباد ـ ۱۹۷۲ء/۹/۲۴

**الجواب**: دَتحقیق مطابق دَښځو جماعت مشروع دې نه منسوخ دې او نه مخصوص دې.

**لان النبی ﷺ جعل لام ورقة مؤذنا وامرها ان تؤم اهل دارها (رواه ابوداؤد ص۹۵ جلد۱) ﴿۲﴾ ولا وجه لنسخه ولا دلیل علی الخصوصیة کیف وقدروی ابن ابی شیبه ان ام سلمة وعائشة رضی الله عنهما امتا فی التراویح والفرض ﴿۳﴾ قال العلامة اللکهنوی فی عمدة الرعایة علی هامش شرح الوقایه ص۱۷۶ جلد۱ قوله کجماعة**

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: تنبیه فی معراج الدرایة من باب الامامة الاصح ماروی عن ابی حنیفة انه قال کره للامام ان یقوم بین الساریتین او زاویة او ناحیة المسجد او الی ساریة لانه بخلاف عمل الامة.**

**(ردالمحتا هامش الدرالمختار ص۴۷۸ جلد۱ باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)**

**﴿۲﴾ (سنن ابی داؤد ص۹۵ جلد۱ باب امامة النساء)**

**﴿۳﴾ (مصنف ابن ابی شیبه ص۵۳۶ جلد۱ باب المرأة تؤم النساء)**

النساء وحلهن عللوه بانها لا تخلو عن ارتكاب ممنوع وهو قيام الامام وسط الصف ولا يخفىٰ ضعفه بل ضعف جميع ماوجهوا به الكراهة كما حققناه فى تحفة النبلاء فى مسألة جماعة النساء وذكرنا هناک ان الحق عدم الكراهة كيف لا وقدامت بهن ام سلمة وعائشة رضى الله عنهما فى التراويح وفى الفرض كمااخرجه ابن ابى شيبة وغيره وامت ام ورقة فى عهد النبى ﷺ بامره كما اخرجه ابو داؤد ، انتهىٰ ﴿١﴾ قلت وقال الامام الائمة اذاصح الحديث فهو مذهبى ﴿٢﴾ اولعل المراد من الكراهة تنزيهة كما يشير اليه كلام صاحب الخلاصة وصلوتهن فرادى افضل ﴿٣﴾ نعم صرح فى شرح التنوير بالتحريم لا كن لا وجه له ﴿٤﴾ فافهم. وهو الموفق

## د زنانو جماعت د بعضې فقهاؤ په نزد جائز او د بعضو په نزد مکروه دي

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (١) یوه حافظه په

---

﴿١﴾ (عمدة الرعاية على هامش شرح الوقاية ص ١٧٦ جلد ١ فصل فى الجماعة)

﴿٢﴾ قال العلامه ابن عابدين: ونظيره هذا ما نقله العلامه بيرى فى اول شرحه على الاشباه عن شرح الهداية لابن الشحنة ونصه اذا صح الحديث وكان على خلاف المذهب عمل بالحديث ويكون ذلک مذهبه ولا يخرج مقلده عن كونه حنفيا بالعمل به فقد صح عنه انه قال اذا صح الحديث فهو مذهبى وقد حكى ذلک ابن عبد البر عن ابى حنيفة وغيره من الائمة . (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٥٠ جلد ١ مطلب صح عن الامام انه اذا صح الحديث فهو مذهبى)

﴿٣﴾ قال العلامه طاهر بن عبد الرشيد البخارى: وامامة المرأة للنساء جائزة الا ان صلوتهن فرادى افضل. (خلاصة الفتاوىٰ ص ١٤٧ جلد ١ فصل فى الامامة والاقتداء)

﴿٤﴾ قال العلامه حصكفى: ويكره تحريما جماعة النساء ولو فى التراويح...... فان فعلن تقف الامام وسطهن...... كالعراة فيتوسطهم امامهم ويكره جماعتهم تحريما فتح.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ٤١٨ جلد ١ قبيل مطلب هل الاساءة دون الكراهة الخ)

تراویح کښې ښځوته امامت کوی چه دهغې دپاره نورښځوته دعوت هم ورکولې کیږی.آیاپـه دې کښې څه کراهت شته؟(۲).یوه مشره ښځه پـه چارسده کښې دجُمعې په ورځ نورې ښځې راجمع کوی اودجمعې مونځ ورته کوی نوآیا ددې ښځودذمې نه دماسپښین مونځ ساقط کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:مفتی عبدالله شاه محله عزیزخیل چارسده.....۱۹۹۱ء/۴/۱.

**الجواب:**(۱) فقهائې کراموډښځوجماعت تـه اودجماعت دپاره دکورونو نـه وتلو تـه مکروه لیکلی دی.کمافی امامة الدرالمختارمع ردالمحتـار.(۱) او مولانا عبدالحئ په "عمدة الرعایه علی شرح الوقایـه ص۱۷۲جلد ۱کښې جواز تـه راجح وئیلې دی.(۲) .ځکـه چـه پیغمبر علیه السلام "ام ورقـه رضی الله عنها تـه دامامت کولـو اجازت ورکړې وو.کمافی سنن ابی داؤد ص۹۵جلد۱باب امامة النساء (۳).

---

(۱) قال العلامه حصکفی: ویکره تحریما جماعة النساء ولو فی التراویح فی غیر صلاة جنازة فان فعلن تقف الامام وسطهن...... ویکره جماعتهم تحریما فتح ویکره حضورهن الجماعة ولو لجمعة وعید ووعظ مطلقاً ولو عجوز الیلا علی المذهب المفتی به لفساد الزمان. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۱۸ جلد۱ باب الامامة)

(۲)قال العلامه عبد الحئی اللکهنوی: قوله کجماعة ای کما یکره جماعة النساء وحدهن سواء کان فی الفرض او النفل وعللوه بانها لا یخلو عن ارتکاب ممنوع وهو قیام الامام وسط الصف ولا یخفی ضعفه بل ضعف جمیع ما وجهوا به الکراهة کما حققناه فی تحفة النبلاء الفناها فی مسئلة جماعة النساء وذکرنا هناک ان الحق عدم الکراهة کیف لا وقد امت بهن ام سلمة وعائشة فی التراویح وفی الفرض کما اخرجه ابن ابی شیبه وغیره امت ام ورقة فی عهد النبی صلی الله علیه وسلم بامره کما اخرجه ابوداؤد.

(عمدة الرعایه علی هامش شرح الوقایة ص۱۷۲ جلد۱ فصل فی الجماعة)

(۳)عن ام ورقة بنت عبد الله بن الحارث بهذا الحدیث والاول اتم وکان رسول الله صلی الله علیه وسلم یزورها فی بیتها وجعل لها مؤذنا یؤذن لها وامرها ان یؤم اهل دارها قال عبد الرحمن فانا رأیت مؤذنها شیخا کبیراً. (سنن ابی داؤد ص۹۵ جلد۱ باب امامة النساء)

او دَپیغمبر علیه السلام دَوفات نه پس حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها او ام سلمه رضی الله عنها هم په تراویح کښې امامت کړې وو. کماف مصنف ابن ابی شیبه وغیره (۱) نو معلومه شوه چه دَام ورقه رضی الله عنها امامت نه مخصوص دې او نه منسوخ دې. بهرحال دَفقهائې کرامو حکم اوفتوی دَفتنې په مخ نیوی باندې محمول ده.

(۲) چه کله ذکورت دَ وجوب دپاره شرط دې نوښځه ښځوته دَ جمعې امام کیدلې شی لیکن بهرحال دَمکروهاتو نه داجماعت ډک دې او دَ انفراس نه ډیر مفضول دې. وهو الموفق.

## په دنیاوی معاملاتو کښې دَ امام او مقتدی په اختلاف سره دَ مقتدی په مونځ څه اثر نه پریوځی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَامام اومقتدی په مینځ کښې په دنیاوی معاملاتو کښې اختلاف پیداشو امام مقتدی ته اووئیل چه ماپسې ستا مونځونه مخکښې هم نه دی شوې اونه اوس کیږی. نوآیا دَامام په دې قول سره دَمقتدی دامونځونه شوې دی که نه؟ اومونځ کول ورپسې جائز دی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم..... ۱۹۷۴ء/۴/۱۰.

**الجواب:** دَامام دا دواړه خبرې چه ستامونځونه نه دی شوې او ماپسې اقتداء مه کوه دا دَپښتو خبرې دی کتابی اوشرعی خبرې نه دی. وهو الموفق.

## دَ تیوشن د پاره لرې تللو وخت کښې دَ جمات په ځائې حجره کښې مونځ ورکول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید دَخپل کور نه یو یانیم میل فاصله باندې دَعمرو "کورته ځی او هلته ماشومانو ته دَدینی سبق تیوشن کوی او امامت هم کوی لیکن هلته جمات نشته دَعمرو په کور یاحجره کښې مونځ ورکوی نوآیا دَ زید داسې کار کول شرعاً جائز دی که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل احمد ضلع کوهاټ.

---

(۱) ان ام سلمة وعائشة رضی الله عنهما امتا فی التراویح والفرض. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۵۳٦ جلد ۱ باب المرأة تؤم النساء)

**الجواب**:داسړې تارک الجماعت نه دي خو تارک المسجد، والاخبره بیاهم دَغور قابله ده.وهوالموفق.

## په کوم جمات کښې چه مقتدیان وی دَ هغوی عارضی امام په کوم ځائې مونځ کوی

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په یو ښارکښې څو جماتونه دی اوپه هر جمات کښې دَجمعې مونځ کیږی،دَښارنه بهر مختلف سرکاری د اوسیدلو کورونه دی دَهغوی مشترکه یو ورکوټې جمات دې.دَهغې دخاص امام اومؤذن مقررنه دی.بلکه یو ملازم(نوکر) هلته کښې مونځ ورکوی.اوس که څوورځې داجمات غیرآباد پاتې شی اوڅوک ورته رانشی نوداعارضی امام به په دغه ورځوکښې دَښار چرته بل جمات ته دَمونځ دپاره ځی که په خپل جمات کښې به مونځ کوی. اوچه دَښار جمات ته لاړشی نودَ مقتدی په حیثیت باندې مونځ کول به دَثواب ذریعه وی یا نه ؟ بینوا توجروا

المستفتی:عبدالحمیدایس وی درازنده ایف آرډی آئی خان۔۱۹۷۲ء/۲۲/۱۱.

**الجواب**:که په دې جمات کښې نور مونځ گذارنه وی نو دې عارضی امام دپاره بهتر داده چه دې محلې والا جمات کښې اذان اومونځ کوی.(فلیراجع الی ردالمحتار ۵۱۹ جلد۱).وهوالموفق.

## دَ جمات امام صاحب باندې لعنت کولو والا پخپله ملعون دې

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې خپل دَجمات امام ته بدرې ردې وائی اوبیا بیا ورته وائی چه په تادې دَخدائې لعنت وی نو ددې سړی څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولوی فیض محمد...۱۹۷۴ء/۲۳/۱۱.

---

﴿۱﴾ **قال العلامة ابن عابدین: قلت لکن فی الخانیة وان لم یکن لمسجد منزله مؤذن فانه یذهب الیه ویؤذن فیه ویصلی وان کان واحدا لان المسجد منزله حقا علیه فیودی حقه موذن مسجد لا یحضر مسجده احد قالوا هویوذن ویقیم ویصلی وحده وذاک احب من یصلی فی مسجد آخر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۱۰ جلد ۱ قبیل مطلب البدعة خمسة اقسام)**

**الجواب**: که دا دَ کلی امام صاحب دَ لعنت مستحق نه وی نو دالعنت کونکې به ملعون وی او دَتعزیرلائق به وی.

لقول النبی علیه السلام ان العبد اذا لعن شیئاً صعدت اللعنة الی السماء فتغلق ابواب السماء دونها ثم تهبط الی الارض فتغلق ابوابها دونها ثم تاخذ یمینا وشمالا فاذا لم تجد مساغا رجعت الی الذی لعن فان کان لذلک اهلاً والارجعت الی قائلها(رواه ابوداؤد بحواله مشکواة ص۴۱۳ جلد ا)﴿ا﴾. وهوالموفق

## دَ جمات امام پسې اقتداء نه کول دَ نافرمان کیدلو باعث نه دی

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو هسې په نوم امام دې علم وغیره ئې نه دې حاصل کړې اوپه اخلاقی جرمونو کښې هم اخته دې نوپه وجه یو مقتدی هغه پسې مونځ نه کوی حال دا چه استاد ورته نه دی وئیلې چه ماپسې مونځ مه کوه اونه یې داوئیلې دی چه ته زما نه عاق ئې اومقتدی ورسره هم کینه نه ساتی.نوآیا دامقتدی دَاقتداء نه کولو په وجه باندې "عاق" دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: راضی الرحمن ارمړپایان پیښور.... ۱۹۷۴ء/۱۱/۵.

**الجواب**:دَامام پسې اقتداء نه کول دَ"عاق" کیدلو باعث نه دی البته په ټولو فتاؤ کښې داليکلې شوې دی چه دَځان له مونځ نه فاسق پسې اقتداء کول افضل دی.﴿۲﴾ .وهوالموفق.

## دَ شهوانی وسوسو په وجه باندې به جماعت نه پریخودلې کیږی

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زه کله دَجمعې په مونځ

---

﴿۱﴾(مشکواة المصابیح ص۴۱۳ جلد۲ باب حفظ اللسان والغیبة والشتم)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وفی النهر عن المحیط صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة، قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله نال فضل الجماعة) افاد ان الصلاة خلفهما اولی من الانفراد.

(ردالمحتار مع الدرالمختار ص۴۱۵ جلد ا مطلب فی امامة الامرد باب الامامة)

کښې شریک شم نو دَ نورو مونځ ګزارو په باره کښې شهوانی وسوسې پیدا کیدل شروع شی یعنی په شهوانی قوت کښې تحریک پیداشی برابره خبره ده چه هغه بوډا ولې نه وی دې مرض دَمالیخولیا"یامکمل شیطانی او فاسدو خیالونو صورت اختیارکړې دی.نوپه دې صورت حال کښې دَجمعې مونځ کووم که جماعت پریږدم؟ بینوا توجروا.

المستفتی: شیرین جان شهبازخیل بنوں... ۱۹۷۲ء/ ۱۰/ ۴.

**الجواب**: خبرشه چه ستادَمرض جائزعلاج شته نودَ ناجائزعلاج (جماعت پریخودلو) څه ضرورت دې؟ جائز علاج دادې چه ته په مونځ کښې دا خیال کوه چه الله تعالی ماوینی اوزمادَزړه خبرې هم پیژنی نوپه قلاره به ستادا فاسد خیالونه ختم شی. (۱) .وهوالموفق.

## دَ دویمې جمعې حکم؟ او قصداً دَ دویمې جمعې د پاره دَ اولنی جماعت پریخودلو حکم

**سوال**:(۱) دَدویم جماعت څه حکم دې چه جمات دَسړک په غاړه باندې واقع دې؟ (۲) که یو سړې یو یا دوه رکعتونه دَامام سره کولې شی خوقصداً نور خلقو ته دَدویم جماعت کولو دپاره اولنی جماعت پرېږدی ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:محمد نظیف وزیرستانی

**الجواب**: چونکه ظاهری طورسره داجمات دَ لارې جمات دې نوپه دې کښې

---

﴿۱﴾ عن عثمان بن ابی العاص قال قلت یا رسول الله ان الشیطان قد حال بینی وبین صلوتی وبین قراء تی یلتبسها علی فقال رسول اللهﷺ ذاک شیطان یقال له خنزب فاذا احسته فتعوذ بالله منه واتفل علی یسارک ثلثا ففعلت ذاک فاذهبه الله عنه رواه مسلم. وعن القاسم بن محمد ان رجل ساله فقال انی اهم فی صلوتی فیکثر ذلک علی فقال له امض فی صلوتک فانه لن یذهب ذلک عنک حتی تنصرف وانت تقول ما اتممت صلوتی رواه مالک. (مشکواة المصابیح ص ۱۹ جلد ۱ باب فی الوسوسة الفصل الثالث)

دویم جماعت جائز دي. خاص طور سره چه اذان او اقامت دَدویم جماعت دپاره پريږدی او محراب هم پريږدی.(یدل علیه مافی الـدرالمختار وردالمحتـار ص ۵۱۶ جلـد ۱).(۱).(۲). داسې په غلطئ دي ځکه چه اولنې جماعت بغیرڅه شک شبهې نه جائز دې او په دویم جماعت کښې اختلاف دې نودَ مشکوک دپاره یقینی څیز پرېخودل نه دی پکار. وهو الموفق.

---

**(۱)قال العلامة الحصكفی رحمه الله: ويكره تكرار الجماعة باذان واقامة فی مسجد محلة لا فی مسجد طريق وقال ابن عابدين: اجمع مماهنا ونصبها يكره تكرار الجماعة فی مسجد محلة باذان واقامة الا اذا صلى بهما فيه او لا غير اهله لكن بمخافتة الاذان ولو كرر اهله بدون هما او كان مسجد طريق جاز اجماعا الخ. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص۴۰۸ جلد ۱ مطلب فی تكرار الجماعة فی المسجد باب الامامة)**

• • •

# فصل فی الاحق بالامامة

## دَ عالم په موجودګئ کښې دَ غیر عالم امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په یوه محله کښې فارغ التحصیل عالم دین موجود دې او دَجمعې مونځ ته هم حاضریږی .لیکن دکورنی معاملاتو په وجه باندې دَدې عالم والده صاحبه ده ته دَامامت اجازت نه ورکوی.اونه دې پخپله امامت کوی او یو ورکوټې رور ئې دې چه په اتم جماعت کښې سبق وائی هغه ئې امام جوړ کړې دې نوآیا دَدې عالم مونځ په خپل ورکوټی ورور پسې کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: ملک عزیزخان لنډا.

**الجواب:** دَدې عالم داطریقه خلافِ اولی ده.کمافی شرح التنویروالاحق بالامامة تقدیمابل نصبامجمع الانهر،الاعلم باحکام الصلوة الخ (هامش ردالمحتار ص ۵۲۰ جلد۱ ).(۱).وهوالموفق.

## عالم او صحیح ویونکی امام جوړول پکار دی صرف ښائسته آواز والا نه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوعالم دین په یو جمات کښې پخوانې امام دې لیکن آواز ئې ښکلې نه دی اوس بعضې خلق صرف په دې وجه چه دې خوش آوازه نه دې دَامامت نه لرې کول غواړی او دده په ځائې بل کس چه عالم نه دې صرف خوش آوازه دې امام جوړول غواړی آیا دَشریعت په رڼړا کښې دَدوی داموقف صحیح دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالقدوس ساهیوال.

---

(۱) (الدرالمختار هامش ردالمحتار ص ۴۱۲ جلد ۱ باب الامامة)

**الجواب**: دَجمات مقرره امام دې مونځ کوی اګرکه دویم ترینه ډیرغټ عالم وی. دخل المسجد من هو اولیٰ بـ لامامة من امام المحلة فامام المحلة اولیٰ، فتاویٰ عالمگیری ص ۸۲ جلد ۱ ﴿۱﴾ وامام المسجد احق بالامامة من غیره وان کان الغیر افقه واقرء واورع وافضل الخ ص ۱۷۸ جلد ۱ مراقی الفلاح﴿۲﴾

خوش آوازی بنه څیز دې خودَاحقرپه نزد خوش آوازه امام جوړول بهتر نه دی بلکه صحیح ویونکی امام جوړول پکار دی.لکه په فتاوی عالمګیری ص۱۱۵جلد ۱یوولسمه (۱۱) کرښه کښې دی. لاینبغی للقوم ان یقدموافی التراویح الخوشخوان.﴿۳﴾.

المجیب: فضل الهی خالق داد ضلع ساهیوال.

دا جواب صحیح دې
مفتی جامعه اسلامیه
عربیه رشیدیه ساهی وال

دا جواب درست دې
محمدفرید عفی عنه

## فاسق امام به باقاعده طور معزول کولې شی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په امام کښې یو څوحبرې دی چه دَهغې په وجه باندې دَهغه شخصیت دَامامت قابل نه دې. هغه سینماکښې دَبې هوده فلمونو کتلو شوقین دې.بلکه باقاعده کتلو دپاره ځی.غیرشادی شده وو اوس ئې واده شوې دی.په سینماکښې لیدلو باندې په سترګو لیدونکی ګواهان موجود دی .جمات کښې دَخلقوپه مینځ کښې منافقت کوی،ږیره ئې دَیوانچ نه هم کمه ده،اکثرمقتدیان ترینه خفه دی.نو داسې کس دَامامت نه معزول.کول څنګه دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مسعودصدیقی محله موچی پوره علاقه کابلی ګیټ پیښور_یکم شعبان ۱۴۱۱ھ

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ص ۸۳ جلد ۱ الفصل الثانی فی بیان من هو احق بالامامة )
﴿۲﴾ حاشیة الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۲۹۹ جلد ۱ فصل فی بیان الاحق بالامامة)
﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ص ۱۱۶ جلد ۱ فصل فی التراویح)

**الجواب**: بشرط صدق وثبوت که دې امام کښې داعیبونه وی نوپه هغه باندې ضروری ده چه دَدې ازاله اوکړی اوکه هغه ضد کوی نوده پسې دَنیکانو خلقو مونځ مکروه تحریمی دی. (۱) دَعوامونه. په ړندوکښې یوې سترګې والا بادشاه وی. (۲) .اوچه کوم امام فاسق وی هغه پخپله نه معزوله کیږی بلکه هغه باقاعده دَمعزوله کولو لائق وی (شامی. بحر) (۳). وهوالموفق.

## دَ امام په موجودګئ کښې دَ بل کس امامت مکروه دې.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیو جمات امام ژوندې دې اودَخلویښتو پنځوسو کالو راسې امام را روان دې لیکن دَجمعې په ورځ یوبل کس دَامام دَاجازت نه بغیر دَخپل ځان دَامام کیدلو اعلان اوکړو حال داچه هغه ته چاهم اجازت نه وو کړې آیا بل څوک داسې امام مقررکیدلې شی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: رسول شاه عمرزئی چارسده...... ۱۹۷۳ء/۲/۱۴.

**الجواب**: که دغه مخکښې امام معزول شوې نه وی یا دَمونځ په وخت کښې غائب نه وی نوبغیردَاجازت نه دَبل امام امامت مکروه دې.

قال رسول الله ﷺ لا یؤمن الرجل فی سلطانه(۴) وفی الدرالمختار فی هامش

---

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: (ویکره امامة عبدواعرابی وفاسق) من الفسق وهو الخروج عن الاستقامة ولعل المراد به من یرتکب الکبائر کشارب الخمر والزانی وآکل الربا ونحو ذلک.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۴ جلد۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن نجیم: وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والا فلا کراهة کما لا یخفیٰ. (البحر الرائق ص۳۴۹ جلد۱ باب الامامة)

﴿۳﴾ قال العلامه ابن عابدین: (قوله ویعزل به)ای بالفسق لوطرأ علیه والمراد انه یستحق العزل کما علمت آنفا. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۰۵ جلد۱ باب الامامة)

﴿۴﴾ (مشکواة المصابیح ص۱۰۰ جلد۱ باب الامامة الفصل الاول)

ردالمحتار ص ۵۲۲ جلد۱ اعلم ان صاحب البیت ومثله امام المسجدالراتب اولی بالامامة من غیره مطلقاً (۱). وهوالموفق.

## امام دپاره کم نه کم دَ اودس اودَ مونځ دَمسئلو علم ضروری دی

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه امام دپاره څومره علم ضروری دي او دَڅومره صفاتو ورته ضرورت دي؟ اودکوم علم سنددَهغه سره کیدل پکاردی؟ اودَامام دپاره زکوة،فدیه،صدقه او دَقربانئ څرمني اخستل جائز دی که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم........۱۲/۲/۱۹۷۳ء.

**الجواب:** امام دپاره کم نه کم دَاودس اودَ مونځ مسئلو نه خبریدل ضروری دی(۲) اوچه کله امام غریب وی نوهغه ته زکوة،فدیه،فطرانه وغیره ورکول جائزدی. خوچه دَاجرت (تنخواه) نیت پکښي نه وی(۳) اودَقربانئ څرمني مالدار امام ته هم ورکول جائزدی خوچه دَاجرت نیت پکښي نه وی .(۴). وهوالموفق.

---

(۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۱۳ جلد۱ باب الامامة)

(۲) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: والاحق بالامامة تقدیما بل نصبا مجمع الانهر الاعلم بأحکام الصلاة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۱۲ جلد ۱ قبیل مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد باب الامامة)

(۳) وفی الهندیه ولو نوی الزکاة بما یدفع المعلم الی الخلیفة ولم یستأجره ان کان الخلیفة بحال لو لم یدفعه یعلم الصبیان ایضا اجزأه والا فلا وکذا ما یدفعه الی الخدم من الرجال والنساء فی الاعیاد وغیرها بنیة الزکاة کذا فی معراج الدرایة.
(فتاویٰ عالمگیریه ص ۱۹۰ جلد۱ الفصل السابع فی المصارف)

(۴) وفی الهندیه: ولو ادخل جلد الاضحیه فی قرطالة او جعله جرابا ان استعمل الجراب فی اعمال منزله جاز ولو اجر لا یجوز وعلیه ان یتصدق بالاجر واما القرطالة ان استعملها فی منزله او اعار جاز الخ.
(فتاویٰ هندیه ص ۳۰۱ جلد۵ الباب السادس فی ما یستحب فی الاضحیة والانتفاع بها)

**دَ جمات امام ته کنځلې کول او دَ "یوم ندعوا کل اناس بامامهم" مطلب**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې دَپلارنیکه دَ وختونه په یو جمات کښې امام راروان دې اویوکس ورپسې مونځ کوی او ډیر خراب خراب کنځل ورته هم کوی. نوددې سړی په شریعت کښې څه حکم دې؟ حال داچه پیش امام صاحب دَرسول الله ﷺ دَمصلې وارث وی. دغه شان "یوم ندعوا کل اناس بامامهم" دَقیامت په ورځ به الله تعالی دَهرقوم امام او سردار راوغواړی. ددې آیت په رڼاکښې ددې سړی څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالرؤف.

**الجواب:** واضحه دې وې چه دَ صحیح احادیثو په بناء باندې دَمسلمان اکرام ضروری دې. ﴿۱﴾ اوخاص طور سره چه امام وی. دَامام په بې احترامئ سره فساد اوبدنظمی پیدا کیږی. اوپه قرآن مجید کښې دَ"بامامهم" نه دَ کلی امام مراد نه دې. ﴿۲﴾.

---

**﴿۱﴾ عن ابن عمران رسول الله ﷺ قال المسلم اخو المسلم لا یظلمه ولا یسلمه ومن کان فی حاجة اخیه کان الله فی حاجته ومن فرج عن مسلم کربة فرج الله عنه کربة من کربات یوم القیٰمة ومن ستر مسلماً ستره الله یوم القیامة متفق علیه.**

**(مشکواة المصابیح ص ۴۲۲ جلد ۱ باب الشفقة والرحمة علی الخلق)**

**عن ابی هریرة ان النبی ﷺ قال اذا عاد المسلم اخاه او زاره قال الله تعالیٰ طبت و طاب ممشاک وتبوأت من الجنة منزلا رواه الترمذی.**

**(مشکواة المصابیح ص ۴۲۶ جلد ۱ باب الحب فی الله ومن الله)**

**﴿۲﴾ قال الحافظ عماد الدین ابن کثیر: یخبر تبارک وتعالیٰ عن یوم القیامة انه یحاسب کل امةبامامهم وقد اختلفوا فی ذلک فقال مجاهد وقتاده بنبیهم وهذا کقوله تعالیٰ (ولکل امة رسول فاذا جاء رسولهم قضی بینهم بالقسط الایة) وقال بعض السلف هذا اکبر شرف لاصحاب الحدیث لان امامهم النبی ﷺ وقال ابن زید لکتابهم الذی انزل علی نبیهم من التشریع واختاره ابن جریر وروی عن ابن ابی نجیح عن......** **(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**

دَیو جاهل امام دپاره تعبیر کول کفر ته دعوت ورکول دی. (۳) .وهو الموفق.

## په اجرت باندې دَ مونځ کولو والا امام او مقتدیانو مونځ صحیح دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه متاخرین فقهاؤ دَموذن یا امام دَوخت دَپابندئ او مستقل تللو راتللو دپاره څه معاوضه جائز کړې ده. چه دَاجرت دَجواز دپاره یو سبب دې. که دَیو موذن یا امام په نیت کښې دا دَجواز سبب نه وی او معاوضه دَ اذان او امامت معاوضه ګڼړی نو آیا دَهغوی اذان. مونځ دغه شان دَمقتدیانو مونځ به صحیح وی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: اکرام الحق راولپنډی........ ۲/محرم ۱۳۹۲ھ.

**الجواب:** مونځ دَمتقدمینو او متاخرینو په نزد صحیح دې. اختلاف دَاجرت په جائز کیدلو او ناجائز کیدلو کښې دې. نعم هــو محروم مــن الثــواب عند عــدم الاحتساب. (۲) .فقط.

---

(بقیه حاشیه) مجاهد انه قال: بکتبهم فیحتمل ان یکون اراد هذا وان یکون اراد ما رواه العوفی عن ابن عباس فی قوله (یوم ندعوا کل اناس بامامهم) ای بکتاب اعمالهم وکذا قال ابو العالیة والحسن والضحاک وهذا القول هو الارجح لقوله تعالیٰ وکل شئ احصیناه فی امام مبین الخ. (تفسیر ابن کثیر ص ۴۳ جلد ۳ سورة بنی اسرائیل آیت ۷۱)

(۱) عن ابن عباس قال قال رسول اللهﷺ من قال فی القرآن برأیه فلیتبوأ مقعده من النار وفی روایة من قال فی القرآن بغیر علم فلیتبوأ مقعده من النار رواه الترمذی وعن جندب قال قال رسول اللهﷺ من قال فی القرآن برأیه فاصاب فقد اخطأ رواه الترمذی وابوداؤد. (مشکواة المصابیح ص ۳۵ جلد ۱ کتاب العلم الفصل الثانی)

(۲) قال العلامه ابن عابدین: (قوله ولا لاجل الطاعات) الاصل ان کل طاعة یختص بها المسلم لا یجوز الاستئجار علیها عندنا لقوله علیه السلام اقرؤا القرآن ولا تاکلوا به وفی آخر ما عهد رسول اللهﷺ الی عمرو بن العاص وان اتخذت موذنا فلا تأخذ علی الاذان اجرا ولان القربة متی حصلت وقعت عن العامل وهذا تعین اهلیته فلا یجوز له اخذا لاجرة من غیره کما فی الصوم والصلاة هدایة، (قوله ویفتی الیوم بصحتها لتعلیم القرآن)......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## چه امام موجود نه وی نوبل کس دې دَ امام دَ اجازت نه بغیر امامت اوکړی

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه دجمعې وخت برابر شوې دې او امام صاحب موجود نه دې نو دَامام صاحب دَ اجازت نه بغير مونږ خلق جماعت کولې شو که نه ؟ بينوا توجروا.

المستفتي: علي اکبرپټن کلان آزاد کشمير.

**الجواب:** چه کله امام موجود نه وی نوبل سړې دې امامت اوکړی. (۱) اګرکه دَ امام دَاجازت نه بغیروی. په حدیث اوفقه دواړو کښې داحکم راغلې دې. وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) قال فی الهدایة وبعض مشایخنا رحمهم الله تعالیٰ استحسنوا الاستجار علی تعلیم القرآن لظهور التوانی فی الامور الدینیة ففی الامتناع تضیع حفظ القرآن وعلیه الفتویٰ، وقد اقتصر علی استثناء تعلیم القرآن ایضا فی متن الکنز ومتن مواهب الرحمن وکثیر من الکتب وزاد فی مختصر الوقایة ومتن الاصلاح تعلیم الفقه وزاد فی متن المجمع الامامة ومثله فی متن الملتقی ودرر البحار وزاد بعضهم الاذان والاقامة والوعظ وذکر المصنف معظمها ولکن الذی فی اکثر الکتب الاقتصار علی ما فی الهدایة فهذا مجموع ما افتی به المتاخرون من مشایخنا وهم البلخیون علی خلاف فی بعضه مخالفین ما ذهب الیه الامام وصاحباه وقد اتفقت کلمتهم جمیعا فی الشروح والفتاویٰ علی التعلیل بالضرورة وهی خشیة ضیاع القرآن کما فی الهدایة وقد نقلت لک ما فی مشاهیر متون المذهب الموضوعة للفتویٰ فلاحاجة الی نقل ما فی الشروح والفتاویٰ وقد اتفقت کلمتهم جمیعا علی التصریح باصل المذهب من عدم الجواز ثم استثنوا بعده ما علمته فهذا قاطع وبرهان ساطع علی ان المفتی به لیس هو جواز الاستجار علی کل طاعة بل علی ماذکره فقط.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۳۸ جلد ۱ مطلب فی الاستجار علی الطاعات کتاب الاجارة)

﴿۱﴾ قال الحصکفی واعلم ان صاحب البیت ومثله امام المسجد الراتب اولیٰ بالامامة من غیره مطلقا وقال ابن عابدین ای وان کان غیره من الحاضرین من هو اعلم واقرأ منه وفی التتارخانیة جماعة اضیاف فی دار یرید ان یتقدم احدهم ینبغی ان یتقدم المالک فان قدم واحدا منهم لعلمه وکبره فهو افضل واذا تقدم احدهم جاز لان الظاهر ان المالک یاذن لضیفه اکراماله. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص۴۱۲ جلد ۱ باب الامامة)

**الجواب:** مظلوم پسې اقتداء کول مکروه نه دی البته ظالم پسې اقتداء کول مکروه دی.(۱) لکونه فاسقافاجراً (۲). بل یکفر عندالاستحلال.(۳) وهوالموفق.

## په جمات او امامت کښې دَ غلط قرات والا دعوی کونکی امامت

**سوال:** دَیو جمات امام دې چه دَحروفو مخارج اوصفات بالکل نه پیژنی حال داچه په دې جمات کښې ئې مخکښې پلار امام وو. چه کله ئې پلار مړشو نوده په مصلې قبضه اوکړه. اومحلې والو باقاعده امام نه دې جوړکړې لیکن دَمحلې اکثریت ده پسې مونځ کوی. لیکن بعضې خلق ئې مخالفت کوی امام صاحب وائی دامصلی او امامت زمونږ وارثت دې اوسیرئ (زمکه) هم زمونږ ده چونکه داجمات دَهغوی په جائیداد کښې جوړشوې دې اودَسوونو (۱۰۰) کالونه مخکښې موجود دې لهذا ددې امام څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم........۳ / ربیع الاول ۱۴۰۳ هـ.

---

﴿۱﴾ عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ المسلم اخو المسلم لا یظلمه ولا یخذله ولا یحقره...... کل المسلم علی المسلم حرام دمه وماله وعرضه رواه مسلم.
(مشکواة المصابیح ص ۴۲۲ جلد۲ باب الشفقة والرحمة علی الخلق)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویکره امامة عبد وفاسق قال ابن عابدین: تکره امامته بکل حال بل مشی فی شرح المنیة علی ان کراهة تقدیمه کراهة تحریم.
(ردالمحتار مع الدرالمختار ص ۴۱۴ جلد۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: لکن فی شرح العقائد النسفیة استحلال المعصیة کفراذا ثبت کونها معصیة بدلیل قطعی وعلی هذا تفرع ما ذکر فی الفتاویٰ من انه اذا اعتقد الحرام حلالا فان کان حرمته لعینه وقد ثبت بدلیل قطعی یکفر والا فلا بان تکون حرمته لغیره اوثبت بدلیل ظنی وبعضهم لم یفرق بین الحرام لعینه ولغیره وقال من استحل حراما قد علم فی دین النبی علیه السلام تحریمه کنکاح المحارم فکافر.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۹ جلد۲ مطلب استحلال المعصیة القطعیة کفر)

**الجواب**: په جمات او امامت کښې دَمیراث حصې نه جاری کیږی البته که دَمخکښې دامام ځوئې غلط خوان نه وی نو دَمصلحت او حوصله افزائی دپاره دې هغه امام جوړکړیشی.﴿ ۱ ﴾. او دَغلط خوان کیدلو په صورت کښې ددې تعمیرکونکی یاوقف کونکی دَځوئی په رائې سره دې بل امام مقررکړې شی.﴿ ۲ ﴾. (ماخوذاز کبیری. خلاصه الفتاوی والشامیة).وهوالموفق.

## په خطابت او امامت کښې میراث نه جاری کیږی

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو جامع مسجد دَ اوقاف بورډ په قبضه کښې دې هغوی پکښې زید په تنخواه سره خطیب مقرر کړو څوکاله پس زید مړشو نودې بورډپکښې بل خطیب عمرصاحب مقررکړو چه هغه دَدیوبند اوډابهیل نه فاضل دې او دَ دې اسلامی مدرسو مهتمم دې اودغه شان پوخ عمر والا مقرر او مدرس عالم دې.اوس دَزید ځوان ځوئې دې "بکر" چه عالم نه دې بلکه په یوه مقامی مدرسه کښې ناظم وو.هغه وائی چه دې جامع مسجد کښې زماپلار خطیب وو نو په دې وجه دا زما حق دې اوماته دې په میراث کښې راکړیشی اوزما په ژوند کښې دَاوقافو بورډبل څوک خطیب نشی مقررکولې.آیا واقعی په امامت اوخطابت کښې وراثت جاری کیدیشی؟ اوبکر او عمر کښې څوک ډیر مستحق دې ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: سید احمد شاه چارسده......... ۱۹۷۲ء.۱۱.۲۸.

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: واذ مات احد من اهلها توجه علی ولده فان لم یخرج علی طریقة والده یعزل وتوجه للاهل.

(ردالمحتار ۳۰۸ جلد۳ مطلب تحقیق مهم فی توجیه الوظائف للابن فصل فی الجزیة)

﴿۲﴾ قال العلامه الحلبی: رجل بنیٰ مسجدا وجعله لله فهو احق بمرمته وعمارته وبسط البواری والحصیر والقنادیل والاذان والاقامة والامامة فیه ان کان اهلا للملک وان لم یکن فالرائ فی ذلک الیه وکذا ولد البانی وعشیرته من بعده اولیٰ من غیرهم.

(غنیة المستملی شرح الکبیر ص۵٦٧ فصلی فی احکام المسجد)

(ومثله فی خلاصة الفتاویٰ ص ۴۲۱ جلد۴ الفصل الرابع فی المسجد واوقافه ومسائله)

**الجواب**: که دَخطیب ځوئي ددې منصب دَ ادا کولو اهل (حقدار) وی(۱) او دده په نائب جوړولو کښې دَدین دَخدمت امید وی نو دَتعاون او حوصله افزایۍ په طوربه دې نائب جوړولې شی اوکه دا ځوئې ئې نااهله وی او دده دَ ذات نه دَ دینی خدمت امید نه وی نو دې به نائب نه شی جوړولې. (فلیراجـع الی ردالمحتار ص ۳۸۸جلد۳). وهو الموفق.

## امام ته کنځلې کول او په سپک نظر سره دَ کتلو حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو امام دې اوقوم ورته په سپک نظر سره ګوری بلکه کله کله ورته کنځلې او سختې سپورې ستغې خبرې هم کوی. اوپیش امام ته ددې ټولو ځیزونو معلومات شته لیکن هغه دَدنیاوی مفادو دپاره چشم پوشی کوی. او ښېې ئې ښخې کړې دی. مصلې پریخودلو ته تیار نه دې. نو سوال دادې چه دَداسې قوم مونځونه دې امام پسې چه په سپک نظر ورته هم ګوری شرعاً صحیح دی که نه ؟ او دَداسې امام دپاره امامت نه پریخودل صحیح دی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حاجی عبدالجبارلاهورخورد ......... ۱۳۹۲/۱۲هـ

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین: نعم قال الحموی فی رسالته وقد ذکر علماء نا انه یفرض لاولادهم تبعاً ولا یسقط بموت الاصل ترغیبا وذکر العلامة المقدسی ان اعطاء هم بالاولیٰ لشدة احتیاجهم سیما اذا کانوا یجتهدون فی سلوک طریق آبائهم...... اذا مات من له وظیفة فی بیت المال لحق الشرع واعزاز الاسلام کاجر الامامة والتأذین وغیر ذلک ممافیه صلاح الاسلام والمسلمین وللمیت ابناء یراعون ویقیمون حق الشرع واعزاز الاسلام کما یراعی ویقیم الاب فللامام ان یعطی وظیفة الاب لابناء المیت لا لغیرهم لحصول مقصود الشرع وانجبار کسر قلوبهم...... واذا مات احد من اهلها توجه علی ولده فان لم یخرج علی طریقة والده یعزل عنها وتوجه للاهل. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص۳۰۷،۳۰۸ جلد۳ مطلب من له وظیفة توجه لولد من بعده فصل فی الجزیة)

**الجواب:** مسلمان او بالخصوص پیش امام ته کنځل کول فسق او فجور دي. الحدیث رواه مسلم سباب المسلم فسوق(۱) دغه شان په عُرف کښې هم ناجائز او دَ ملامتیا باعث دی لیکن ددې سره سره ددې قوم اقتداء په دې امام پسې صحیح ده. لوجودشرائط الاقتداء وعدم الموانـــع (۲). اوکه دا امام مجبور او محتاج نه وی نو دده دپاره دا امامت پریخودل بهتر دی. ځکه چه خپل ځان ذلیل کول او ذلت ته ورکول شرعی طورسره مذموم دی. وهوالموفق.

## په سوال کښې لیکلې شوی صفتونو والا سړی امام مقرر کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې دا قسم صفتونه او عقیده لری. مثلاً (۱). وائی چه څوک دَامام په اقتداء کښې فاتحه نه وائی هغه گمراه (بې لارې) دې. دَهغه مونځ صحیح نه دې. (۲). دَزکوة اخستو والا دپاره تقوی او دَیوکلی نمبردار کیدل ضروری دی. (۳). ځوئې چه دَخپل پلار نه جدا شی نو زکوة ورکولې شی. (۴) دَخپلې محلې دَجمات متعلق وائی چه دامحراب او جمات زما دَ پلار ذاتی ملکیت دې. (۵). سود او دګانړې نه فائده اخستل جائز ګنړی.

آیا داسې کس امام مقرر کول جائز دی ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالعزیز اوګی مانسهره.

---

﴿۱﴾ (الصیح المسلم ص۵۸ جلد۱ باب بیان قول النبی ﷺ سباب المسلم فسوق وقتاله کفر کتاب الایمان)

﴿۲﴾ وفی منهاج: (قوله رجل ام قوما وهم له کارهون) قال ابن الملک لبدعته او فسقه اوجهله اما اذا کان بینه وبینهم کراهة عداوة بسبب امر دنیوی فلا یکون له هذا الحکم، وقال القطب الجنجوهی جملة الامرانه لو کان فیه مایوجب کراهة شرعا اعتبرت کراهة وان لم یکرهه احد، وان لم یکن فیه ذلک شرعا لم یعتبر فیه کراهة من کرهه وان کرهه الکل. (منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۴۰ جلد۲ باب ماجاء من ام قوماً وهم له کارهون)

**الجواب:** داسې دَسلفیانو دَولې نه معلومیږی دې دَاحنافو امام مقررکوا دَفساد اوفتنې باعث دی داسې کس دپاره ضروری ده چه دَسلفیانو اما جوړشی(١) وهو الموفق.

## دَ اوقافو محکمه دې د ډیوټۍ نه معذورو ملازمینو ته دَ وخت تیرولو د پاره مراعات ورکړی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږدَمحلې دَجمات پیش امام اوخطیب صاحب ډیر بوډاشوې دې چه دَ څومیاشتو نه په بستره پروت دې او جمعه دَهغه ځوئې ورکوی اوبعضې مونځونه هم کوی آیا دې امام دپاره چه دَډیوټۍ نه غیر حاضردې دَمحکمه اوقاف نه تنخواه اخستل جائز دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمدعلی نوشهره صدر ..١٢/نومبر ١٩٨٧ء.

**الجواب:** دَمحکمه اوقاف دپاره ضروری ده چه مذکوره زوړامام ته مراعات ورکړی اودَداسې امام په اهل اولاد کښې یو نوې امام منتخب کړی چه دَقوم ذریعه معاد (باجماعت مونځ) ته دَ چا دَ ذریعه معاش دَخطرې په وجه نقصان اونه رسیږی (٢) وهو الموفق.

---

(١) قال ابن عابدین: ومما یزید ذلک وضوحاما صرحوا به فی کتبهم متونا وشروحا من قولهم ولاتقبل شهادة من یظهر سب السلف...... وقال ابن ملک فی شرح المجمع وترد شهادة من یظهر سب السلف لانه یکون ظاهر الفسق...... وقال الزیلعی او یظهر سب السلف یعنی الصالحین منهم وهم الصحابة والتابعون لان هذه الاشیاء تدل علی قصور عقله وقلة مروائه.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٣٢١ جلد٢ مطلب مهم فی حکم سب الشیخین)

(٢) قال ابن عابدین: اذا مات من له وظیفة فی بیت المال لحق الشرع واعزاز الاسلام کاجر الامامة والتأذین وغیر ذلک مما فیه صلاح الاسلام والمسلمین وللمیت ابناء یراعون ویقیمون حق الشرع واعزاز الاسلام کما یراعی ویقیم الاب فللامام ان یعطی وظیفة الاب لابناء المیت لا لغیرهم لحصول مقصود الشرع والجبار کسرقلوبهم......واذا مات احد من اهلها توجه علی ولده فان لم تخرج علی طریقة والده یعزل عنها وتوجه للاهل.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص٣٠٧، ٣٠٨ جلد٣ فصل فی الجزیة)

**دَ امامت په حاصلاتو کښې دَ حصې غوختلو په وجه باندې**
**دَ مور خونی لره عاق کول دَ امامت دپاره ضرر رسان نه دی**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیو سړی والدصاحب مړشوې دې او مور دوه خویندې او درې خورییته دده په ذمه کښې پاتې شوې دی.دې سړی مور او خویندوته په جائیداد کښې حصه هم ورکړې ده او چه دَامامت کوم حاصلات دی په هغې کښې ئې څه حصه جوړیږی که نه ؟ سره ددینه چه دَ کلی معززینو اوممبرانو په دې سړی باندې درې نیم زره روپې ایخې دی چه خپلې مورته به ورکوې اوس ددې سړی خور او خورییته مور رااوچتوی چه خپل ځوئې عاق کړه.اوداهم ورته اووایه چه څه تاته پئ نه بخم.نوآیا په دې الفاظوسره داسړی عاق کیږی یا نه ؟ اوس عوام هم خراب شوې دی چه دې مور عاق کړې دې لهذا ده پسې اقتداء صحیح نه ده آیا واقعی دده اقتداء صحیح نه ده ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: سیدروخان شکرپوره پیښور....۲۹ ذی الحجه ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** دَامامت منصب څه جائیداد نه دې اونه میراث دې چه دَ مورحصه پکښې وی داخوصرف خلافت دې البته ددې سړی پلار ته څه ملکانه دَ ملکیت په طور ورکړې شوې وی نوپه هغې کښې به دَ وارثانو حصه وی.او که دا ملکانه کښې ئې ورته دَملکیت په طورنه وی ورکړې اودَاوقافو دَجمات وی نوپه دې دَامام نه علاوه دَنورو خلقو (دَامام مور او خویندو) هیڅ حق نشته

**ملاحظه:** دَ اولنی صورت په تقدیرباندې دَمور خفګان په ځائې دې اوپه دویم صورت کښې بې ځایه دې اوداځوئ عاق نه دې وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه ملا علی قاری: (قوله عقوق الوالدین) ای قطع صلتهما ما خوذ من العق وهو الشق والقطع والمراد عقوق احدهما قیل هو ایذاء لا یتحمل مثله من الولدعادة وقیل عقوقهما مخالفة امرهما فیما لم یکن معصیة.
(هامش مرقاة علی المشکواة المصابیح ص۱۷ جلد۱ باب الکبائر وعلامات النفاق)
وفی منهاج السنن: (قوله عقوق الوالدین) ای قطع صلتهما...... (بقیه حاشیه په بله صفحه)

## دَ مفقود الزوجه امام پسې مونځ کول صحیح دی

**سوال**: داسې امام چه مفقود الزوجه وی هغه پسې مونځ کول صحیح دی یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم........ ۲۷/۲/۱۹۷۲ء.

**الجواب**: دَمفقود الزوجه امام پسې مونځ کول (یعنی اقتداء کول) دَ یوامام په نزد هم ممنوع نه دی. (۱) .وهوالموفق.

## په واده کښې غیر شرعی رسمونه او عهد شکنئ والا امام معزول کول مناسب دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په پټیال علاقه کښې ټولو خلقو یوبل نه قسمونه اخستې دی چه په واده به غیرشرعی رسمونه مثلاً ډهول غړول سندرې وغیره اوګډیدل دابه نه کیږی.او که څوک ددې وعدې خلاف ورزی او کړی دَهغه سره به ناسته پاسته او خوراک څښاک پریخودلې کیږی.تقریباً پنځه کالو پورې ټول خلق په دې وعدې باندې پابندوو لیکن زمونږ دَجمات امام صاحب دا وعده ماته کړه او سندرې ئې پکښې اوکړې.چه دائې اولیدل نوپه یو بل واده کښې هم داسې اوشو او دَ ډهول وغیره سره ئې سندرې والا ښځې هم را اوغوښتلې او دَټولو په مخکښې ؤګډولې شوې.اودې

(بقیه حاشیه) وایذاء هما وملخصه ارتکاب امر یوذیهما ولا یتحمل مثله من الولد، والعقوق حرام الا اذا کان فی طاعتهما معصیة الخالق او کان فیها تغیر الشرع، والعاق فاسق فیجری علیه مایجری علی الفاسق.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۳ جلد۲ باب ماجاء فی التغلیظ فی الکذب والزور)

(۱) وفی منهاج السنن: (قوله رجل ام قوما وهم له کارهون) قال ابن الملک لبدعته او فسقه او جهله اما اذا کان بینه وبینهم کراهة عداوة بسبب امر دنیوی فلا یکون له هذا الحکم وقال القطب الجنجوهی جملة الامر انه لو کان فیه مایوجب کراهته شرعا اعتبرت کراهة وان لم یکن یکرهه احد، وان لم یکن فیه ذلک شرعا لم یعتبر فیه کراهة من کرهه وان کرهه الکل.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۲۴۰ جلد۲ باب ماجاء من ام قوما وهم له کارهون)

امام صاحب دَهغه بائیکاټ هم اونکړو.اونکاح دپاره ورله لاړلو اوس ددې امام څه حکم دې.چه دده امامت جائز دې که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم.....مانسهره.

**الجواب:** که عام خلق دَ امام تعاون کونکی او دَ امام مدافعت کونکی نه وی او امام یواځې پریخودونکې وی نو داسې بې غیرته او عهد شکن امام معزول کول مناسب دی.﴿۱﴾ .وهوالموفق.

## دَ مودودی ګروپ والو دَ امامت په لحاظ سره قسمونه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه دَمودودی عقیدې والا پسې مونځ جائز دې که نه؟ که یوسړې دَجماعت اسلامی اومودودی صاحب کتابونو اورسالې تقسیموی اوخلقوته دعوت ورکوی چه په دې پارټۍ کښې شامل شئ لیکن هغه داکارصرف دَضدنه کوی اودَمودودی عقیدې نه منی نودَهغه څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: شیرعلی خان پیښور.....۱۹۸۴ء/۱۰/۱۴.

**الجواب:** دَجماعت اسلامی (مودودی ګروپ) کسان په درې قسمه دی.اول هغه خلق چه دَمودودی صاحب تفرداتو ته حق وائی دویم هغه دی چه دې تفرداتو ته حق نه وائی لیکن ددوی طرف ته د غلط نسبت کونکو مدافعت کوې. دریم هغه چه صرف په سیاسی کارونو کښې ورسره شریک وی دَمدافعت اومُداهنت نه پاک دی.دَاولنی قسم پسې مونځ نه کیږی.دویم قسم پسې اقتداء مکروه ده.اودریم قسم پسې اقتداءدَ نورو غیراسلامی (سیکولر) پارټو پشان (لکه مسلم لیګ،نیشنل وغیره) حکم لری وهوالموفق.

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین: وعند الحنفیة لیست العدالة شرطا للصحة فیصح تقلید الفاسق الامامة مع الکراهة واذا قلد عدلا ثم جار وفسق لا ینعزل ولکن یستحب العزل ان لم یستلزم فتنه...... ویعزل به ای بالفسق لو طرأ علیه والمراد انه یستحق العزل کما علمت آنفا ولذا لم یقل ینعزل. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۰۵ جلد۱ باب الامامة)

## دَ جماعت امام بغیر څه وجې نه معزول کول

**سوال**. علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید په یو کلی کښې اته(۸)، نه(۹) کالونه پیش امام وو .دَعذرشرعی نه بغیر دکلی خلقو په زور معزول کړو او دده په ځائې ئې عمرو چه دکلی دَ مَلَک صاحب رشته دار دې پیش امام جوړ کړو.نوسوال دادې چه په دې صورت کښې دَ عمرو" امامت جائز دې که نه؟ اوددې کال فصل به دَ عمرو" وی که دَ زید"؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل رحمن پیش امام باجوړ.

**الجواب**: (الف).امام بغیردَڅه وجې نه معزول کول اګرچه ګناه ده لیکن نافذبه وی چه دَ اهل حل وعقد دَطرفنه وی.نظیره العزل عن الامامة الکبری بالتغلیب (من الاشباه والنظائر ص۴۰۲) ان الامام لیس له ان یخرج شیأ من یدالابحق ثابت معروف.فافهم.

(ب): دکوم امام چه سالانه(کلنې) اجرت مقررکړې شوې وی نو دَکال په دوران کښې دَ معزول کولو په صورت کښې به دَعمل مطابق دَاجرت مستحق وی نظیره مافی ردالمحتارص۵۷۷جلد۳ان المدرس لومات اوعزل فی اثناء السنة قبل مجیئی الغلة وظهورهامن الارض یعطی بقدر ماباشرویصیرمیراثاعنه کالاجیراذامات فی اثناالمدة.(۱) .وهوالموفق.

## دَ تنسیخ نکاح" دَ مسئلې نه دَ منکرامامت جائز دې.

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړی خپله ښځه دَعدالت په بیابیا تنبیهاتوباندې آباده نه کړه او کیس له هم نه راځی آخر کار عدالت دَتنسیخ نکاح" ډګری جاری کړه.بنده دَ"دیوبند ،سهارنپور، دهلی،

(۱) (ردالمحتار هامش الدر المختار ص۴۵۷ جلد۳ مطلب فیما لو مات المدرس او عزل قبل مجئی الغلة کتاب الوقف)

کراچئ ملتان، اکوړه خټک وغیره نه فتوې اوغوښتلې چه په دې صورت کښې شرعاً طلاق شوي که نه نوتولو لیکلي دی چه طلاق شوې دې اودعدت نه پس ورته بل ځائې کښې نکاح جائز ده نوبنده په دویم ځائې کښې په نکاح ورکړه اوس زمونږدجمات امام صاحب وائی چه تنسیخ نکاح زمونږ په مذهب کښې نشته لهذا دادویمه نکاح حرامه ده.نو اوس تپوس دادې چه کله مفتیانو فتوی ورکړه او دعدت نه پس چه ئې جائز اوګڼړله نونکاح ئې اوکړه نودیته حرام ویونکې پسې شرعاً مونځ مکروه دې یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم.......

**الجواب**:که دډیر سخت ضرورت(مثلاًدعزت ویره یا دخرچې انتظام نه وی) په بناء باندې دافسخ شوې وی نودافسخ اودحاکم طلاق ورکول صحیح دی اودعدت نه پس نکاح جائز ده.﴿۱﴾ اودیته غلط ویونکې مولوی صاحب په غلطئ باندې دې.هغه پسې په اقتداء کولو کښې هیڅ نقصان نشته ځکه چه دامولوی صاحب داصلی مذهب په بناء باندې په حقه دې.اګرچه دیولوئې جماعت په فتوی باندې دبې اعتمادئ په وجه په غلطئ دې.وهوالموفق.

### په شریعت کښې دامام اوخطیب د پاره د ریټائرمنټ یعنی د معزولئ تعین

علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دیوامام دین دپاره ددرس وتدریس امامت اوخطابت په سلسله کښې شرعاً دعمرقید څومره دې؟آیا شریعت څه قید مقررکړې دې چه دفلانکی عمرپورې ددینې فرائضوپوره کولو نه پس دې ورته ریټائرمنټ ورکړې شی.مثلاً داسې علمائې کرام چه د اوقافو ملازمین دی شرعاً دڅومره عمرپورې دکارلائق پاتې کیږی که شرعاً دعمرڅه قیدوی هغه واضح کړئ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:حمیدالرحمن عابدقادری انورالاسلام بهګوان بازار لاهور_۱۲/صفر۱۳۹۲ھ

**الجواب**:دقواعدو په بنیاد دخطیبانو او امامانو معزول کول صحیح نه دی ترڅو

﴿۱﴾ (حیله ناجزه للشیخ اشرف علی التهانوی ص ۲۹ جز دوم تفریق الزوجین بحکم حاکم)

پورې چه فرائض پورې کولې شی لیکن دَعجز اوشرطونو وخت کښې معزول کول صحیح دی.لعموم الحدیث المسلمون عندشروطهم او کماقال(الحدیث).
(۱). وهوالموفق.

## دَ جمات امام ته کنځل کول فسق دې

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړی دَشپږو کالو پورې یو امام پسې مونځ اوکړو .بیاپه پارټئ کښې دَشامل کیدلو په وجه باندې ئې دَشپږو کالونه مونځ پریخې دې او ښکاره په ښکاره دَامام متعلق وَ ی چه ددې امام پسې مونځ کول داسې دی لکه یو خرپسې مونځ کول بلکه د.ې نه هم خراب دی.ددې سړی دپاره دَشریعتِ محمدی ﷺ په رنړا کښې څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولوی امیرزمان قلندرآباد هزاره............... ۱۹۷۲ء/۱۱/۱۲.

**الجواب**:که تپوس والا رښتینی وی نو دا سړې فاسق اودَتعزیر لائق دې.قال رسول الله ﷺ سباب المسلم فسوق.(۲).(رواه مسلم) (والتفصیل فی ردالمحتار ص۲۰۲جلد۳) (۳).وهوالموفق.

---

**﴿۱﴾ قال ابن سیرین اذا قال بعه بکذا و کذا فما کان من ربح فهو لک او بینی وبینک فلا بأس به وقال النبی ﷺ المسلمون عند شروطهم.**
**(الجامع الصحیح للبخاری ص۳۰۳ جلد ۱ باب اجرا لسمسرة کتاب الاجارة)**
**﴿۲﴾ (الصحیح المسلم ص۵۸ جلد ۱ باب بیان قول النبی ﷺ سباب المسلم فسوق وقتاله کفر کتاب الایمان)**
**﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: لا یعذر بیاحمار یا خنزیر یا کلب یاتیس یا قرد یا ثور یا بقر یا حیة واستحسن فی الهدایة التعزیر لو المخاطب من الاشراف وتبعه الزیلعی وغیره. (الدرالمختار هامش ردالمحتار ص ۲۰۲ جلد۳ مطلب فی الجرح المجرد باب التعزیر)**

## دَ غلط قرات کولو والا امامت مکروه دي.

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښې څه فرمائي چه يوامام صاحب په قرات کښې لاندينئ غلطياني کوی.دهغه اقتداء مکروه ده که نه؟

(۱).صراط المستقيم" په صادزبر وائی.(۲).په "غيرالمغضوب" کښې په راء باندې دَ زير په ځائې زبروائی.(۳).دَ سمع الله په ځائې "سمق الله" وائی.(۴).په سورة الملک کښې دَ"فمن ياتيکم" په ځائې "يـاتکم" يعنی بغير ياء نه ئي وائی.(۵).په سورة الفلق او سورة النـاس کښې "برب فلق" يعنی بغير لام نه اوپه سورة الناس کښې "اعوذبرب ناس" يعنی شَد" پکښې پريږدی.(۲).او "فی تضليل "په ځائې فی تضلِ" وائی.( ۸) .فويل للذين" پـه ځائې فويـــل ايلـــذين" يعنی په لام باندې زير وائی.او للذين" ته ايلذين" وائی؟ بينوا توجروا.

المستفتی:اهاليان موضع صريح چارسده.......۱۹۷۲ء۱۹/۹.

**الجواب:** که داخبره اوتپوس رښتيا وی نوداسې امام پسې مونځ کول مکروه دی.(۱) .دې باقاعده امام جوړول او امام ساتل،دَمونځ ضائع کول.دې امام باندې ضروری ده چه پـه مشق سره ددې غلطيـانو ازالـه اوکړی ګنې نـو استعفی دې ورکړی .وهوالموفق.

---

**(۱) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولا غير الا لثغ به ای بالالثغ علی الاصح کما فی البحر عن المجتبیٰ وحرر الحلبی وابن الشحنة انه بعد بذل جهده دائما حتما کالامی فلايؤم الامثله ولا تصح صلاته اذا امکنه الاقتداء بمن يحسنه او ترک جهده اووجد قدرالفرض مما لالثغ فيه هذا هو الصحيح المختار فی حکم الالثغ وکذا من لا يقدر علی التلفظ بحرف من الحروف اولا يقدر علی اخراج الفا الا بتکرار واعلم انه اذا فسد الاقتداء بای وجه کان لا يصح شروعه فی صلاة نفسه.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۳۰ جلد ۱ مطلب فی الالثغ باب الامامة)**

## بې ږیرې هلک پسې اقتداء کول مکروه تنزیهی دی.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم هلک بالغ ښکلې مخ والا او مشتهی هم وی او په مخ اوځنې باندې ئې دږیرې ډیو ویښته اثرهم نه وی مخ ئې دشیشې پشان صفا او مزیدار وی او ډیرښائسته وی نو آیا داسې هلک پسې مونځ صحیح دې؟

بعضې خلق وائی چه دا امامت مکروه تنزیهی دې نو که دکراهیت تنزیهی هروخت څوک ارتکاب کوی نو د"الاصرارعلی الصغیرة کبیرة" په بناء باندې به داتحریمی جوړیږی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمدایاز بنوں

**الجواب**: بې ږیرې (اَمرَد) هلک چه ښکلې مخ والا وی اقتداء ورپسې صحیح ده لیکن مکروه تنزیهی ده.

**فی ردالمحتار ص ٥٢٥ جلد ١ ﴿١﴾ قوله وکذا تکره خلف امرد الظاهر انها تنزیهیة والظاهر ایضا کما قال الرحمتی ان المراد به صبیح الوجه لانه محل الفتنة.**

مکروهِ تنزیهی نه په ګناهِ صغیره کښې داخل دې اونه په کبیره کښې .بدلیل صدوره عن االانبیاء علیهم السلام (٢).لهذا په دې باندې اصرار کول به نه ګناه وی اونه به ګناهِ کبیره وی.لهذا داسې کس امام جوړول بهتر نه دی.کنې نو دکراهیت تحریمی نه بغیر ورپسې اقتداء صحیح ده.وهو الموفق.

---

**﴿١﴾(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ٥١٢ جلد ١ مطلب فی امامة الامرد باب الامامة)**

**﴿٢﴾قال الامام ابو حنیفة رحمه الله: والانبیاء علیهم الصلوٰة والسلام کلهم منزهون عن الصغائر والکبائر والکفر والقبائح وقد کانت منهم زلات وخطیئات، قال الملا علی قاری فی شرحه عن ابن الهمام والمختار ای عند جمهور اهل السنة العصمة عنها ای عن الکبائر لا الصغائر غیر المنفردة خطأ او سهواً ومن اهل السنة من منع السهو علیه، والاصح جواز السهو فی الافعال، والحال ان احداً من اهل السنة لم یجوز ارتکاب المنهی منهم عن قصد ولکن بطریق السهو والنسیان ویسمی ذلک زلة.**

**(شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص ٥٦،٥٩ الانبیاء منزهون عن الکبائر والصغائر)**

## چه پیدائشی شل لاس دَتکبیر په وخت کښې دَ سر نه اوچت څی دداسې امام دَ امامت حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیوکس لاس پیدائشی ورکوټې اوشل دې دَتکبیرتحریمه یعنی لاس اوچتولو وخت کښې دَسرنه اوچت څی نوآیا داسې کس امامت کولې شی ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حضرت الله چونگی نمبر۵مردان ملاکنډ روډ ۔ ۱۲/جمادی الثانی ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** که خلق ورته دَنفرت په نظر ګوری نودده امامت بهتر نه دې (۱). خوداهم هله چه په قوم کښې دده نه ښه سړې موجود وی اوکه نه وی نو هیڅ کراهت نشته. ویدل علی المسطورمافی البحرص۳۴۹جلد۱یعنی وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عندوجود غیرهم.(۲) .وهوالموفق.

## دَ ږیره خریونکی،شافعی، مالکی،حنبلی، شیعه جعفری اوغیرجعفری دَ امامت حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که چرته شافعی یا حنبلی او یامالکی امام وی اوږیره خرئی لکه عربوملکونوکښې اکثرددې مذهبونو امامان ږیرې خرئی. نوهغوی پسې دَ اقتداء څه حکم دې؟

دغه شان شیعه ګان هم په دوه قسمه دی جعفری اوغیرجعفری.آیا جعفری شیعه ګانو پسې مونځ جائز دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم........۱۴/شوال ۱۴۰۳ھ.

**الجواب:** که دَیو حنفی متشرع کس پسې دَاقتداء نه ته عاجزه ئې نو دَشافعی،

---

(۱) قال العلامه ابن عابدين الشامي: (قوله ومفلوج وابرص شاع برصه) وكذلك اعرج يقوم ببعض قدمه فالاقتداء بغيره اولىٰ...... وكذا من له يد واحدة فتاوىٰ صوفيه عن التحفه والظاهر ان العلة النفرة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۶ جلد۱ قبيل مطلب فى الاقتداء بشافعى ونحوه باب الامامة)

(۲) (البحر الرائق ص۳۴۹ جلد۱ باب الامامة)

مالکی او حنبلی امام پسې اقتداء او کړه خیردی که پېره خرنی خکه چه دخان له مونځ نه فاسق امام پسې اقتداء کول افضل دی(۱) بحر. سامی. هندیه. البته دشیعه جعفری او غیر جعفری دواړو پسې اقتداء باطل او کالعدم ده (۲) وهو الموفق

## دَ کوم کس پیشه چه دَ نفرت او د جماعت دَ کم والی باعث وی دَهغه اقتداء مکروه ده

**سوال:** علمائي دين دي مسئلې بره کښي څه فرمائي چه په يو امام باندي دخپلو مقتديانو مړوته غُسل ورکول لازم دی. دغه شان دَغه اختر په ورځ امام دَتولو مقتديانو قربانئ هم ذبح کوی اوداپېرې هم لازم شوې دی. يعني دَامام نه دَغاسل اوقصاب کاراخستلې کيږی آيا داسې امام پسې مونځ کول جائزدی؟ بينوا توجروا.

المستفتی بنده رحیم الله باچا اضاخیل بالانوشهره

**الجواب:** فقهائي کرامو دَداسې امام متعلق څه تصريح نه ده کړې ددې وجې نه دَکلياتو په بناء باندې جواب ليکلي کيږی صاحب هدايه په ص ۴۴ باب الامامة کښې دَفاسق. اعمی او ولد الزنا وغيره دَ اقتداء کراهت په تنفير سره معلل کړې دې فرمائي ولان في تقديم هؤلاء تنفير الجماعة فيكره انتهى.(۳) اوکوم امام چه دَغسل پيشه اختيار وی نودَخلقو په نظر کښې سپک راځی لهذا دَداسې امام په امامت کښې تنفير حامخا موجود وی.(۴) نوکراهت به هم وی. او په ذبحه کولو کښې چه سپکوالې نشته نو داعمل د کراهت باعث نه دې اولازم کول بغير دَاجرت(مزدورئ) نه دابيشکه ظلم دې. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه الحصكفي رحمه الله: ويكره امامة عبد وفاسق واعمىٰ ومبتدع، قال ابن عابدين: افاد ان الصلاة خلفهما اولىٰ من الانفراد.
(ردالمحتار مع الدر المختار ص ۴۱۵ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

﴿۲﴾ قال في الهنديه: ولا تجوز خلف الرافضي والجهمي والقدري والمشبهة ومن يقول بخلق القرآن. (فتاویٰ عالمگیریه ص ۸۴ جلد ۱ الفصل الثالث في بيان من يصلح اماما لغيره)

﴿۳﴾ (هدايه ص ۱۱۰ جلد ۱ باب الامامة كتاب الصلاة)

﴿۴﴾ قال العلامه ابن عابدين: علل الكراهة بغلبة الجهل فيهم وبان في تقديمهم تنفير الجماعة. (ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ قبيل مطلب البدعة خمسة اقسام)

## د امام مسجد توهین وغیره مختلفې مسئلې

**سوال** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) د امام مسجد د توهین څه حکم دې؟ (۲) مسجد پریخودل او کور کښې د مونځ کولو څه حکم دې؟ (۳) بعضې خلقو قسم اوخوړلو چه مونږ ددې امام پسې اقتداء نه کوو په دویم ځل اقتداء اوکړې او مونځ اوکړې نو څه حکم دې؟ (۴) ددې امام مذبوحه ددې خلقو دپاره ځنګه ده؟ (۵) دقسم خوړلو باوجود ددې امام په اقتداء کښې به د جنازې د مونځ کولو څه حکم وی؟ بینوا توجروا

المستفتی سید غلام نبی شاه

پیش امام وخطیب مرکزی مسجد هزاره ۲۰ ذی قعده ۱۳۹۷ هـ

**الجواب** (۱) د امام توهین حرام او د جماعت او مسجد (جمات) پریخودلو باعث دې ددینه بچ کیدل ضروری دی قال رسول الله ﷺ بحسب امرء من الشران یحقر اخاه المسلم کل المسلم علی المسلم حرام دمه وماله وعرضه (مسلم)(۱)

(۱) دمونځ صحیح کیدلو دپاره جمات شرط نه دې البته جمات (بهترینه زمکه) ده په دې کښې چه کوم فضیلت دې هغه بل ځائې کښې نشته (۲)

(۳) داخلق به کفاره ورکوی (۳) (۴) که دا امام مسلمان وی نو دهغه ذبیحه د هر مسلم او غیر مسلم دپاره جائز ده (۴) (۵) که د قسم کونکو مراد صرف پنځه مونځونه وی نو هیڅ خبره نه ده وهو الموفق

---

(۱) (الصحیح المسلم ص ۳۱۷ جلد ۲ باب تحریم ظلم المسلم وخذله واحتقاره ودمه وعرضه وماله)

(۲) عن ابی امامة ...... فقال شر البقاع اسواقها وخیر البقاع مساجدها رواه ابن حبان فی صحیحه عن ابن عمر. (مشکوٰة المصابیح ص ۶۷ جلد ۱ الفصل الثانی باب المساجد ومواضع الصلوٰة)

(۳) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وکفارته او اطعام عشرة مساکین او کسوتهم...... وان عجز عنها کلها صام ثلاثة ایام ولاء.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۶۲ جلد ۳ مطلب کفارة الیمین کتاب الایمان)

(۴) قال الحصکفی: وشرط کون الذابح مسلما حلالا خارج الحرم ان کان صیداً الخ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۰۸ جلد ۵ کتاب الذبائح)

## دَ محتاط نابینا حافظ قران امامت جائز غیرمکروه دي

**سوال:** محترم جناب حضرت شیخ الحدیث مولانا عبدالحق صاحب رحمه الله اکوړه خټک. دَمسنون سلام نه پس عرض دا دې چه زمونږ په علاقه کښې دکافی بحث مباحثې نه پس بعضې علماء وائی چه نابینا انسان پسې مونځ کول مکروه دی. اوبعضې ورته غیرمکروه وائی. اوس سوال دادې چه داسې نابیناچه قاری هم وی او حافظ قران هم وی او تریو حده پورې تفسیراوترجمه قرآن باندې هم پوهیږی. اودوه خادمان ئې هم وی او طالبانو ته دکنزالدقائق " پورې په یادو باندې فقه هم ښائی اومشکوة ئې وئیلې دې.اوڅلورجوړې جامې ورسره هم وی چه وخت په وخت ئې بدلوی نوآیا داسې نابیناپسې مونځ مکروه دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ گل سعادت خان

مدرسه عربیه معراج العلوم بنون ۷ / ذی قعده ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** دَداسې محتاط حافظ،ړوندکس امامت دَعوام الناس دپاره بغیرشک شبهې نه جائزغیرمکروه دې.لیکن که په روغو (سترګووالا خلقوکښې ددنه بهتر یعنی زیات پوهه) کس موجود وی نو بیا دَده امامت مکروه (تنزیهی) دې.

**فی الشرح الکبیر ص ۴۳۹ وذکر فی المحیط لا بأس بان یؤم الاعمی والبصیراولیٰ وفی الانفع ذکر الامام المعروف بخواهر زاده فی مبسوطه انما یکره تقدیم الاعمیٰ اذا کان غیره افضل منه وقد ثبت ان النبی علیه السلام استخلف ابن ام مکتوم یؤم الناس وهو اعمیٰ رواه ابوداؤد انتهیٰ ما فی شرح الکبیر﴿۱﴾. وهوالموفق**

شیخ الحدیث مفتی اعظم مولانامفتی(محمدفرید عفی عنه) مدظله جامعه دارالعلوم حقاینه اکوړه خټک.

## دَ امام حقوق دَ امامت په اجرت سره نه ختمیږی

**سوال:** علمائي کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیوجمات امام نه

**﴿۱﴾ (غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص ۴۷۶ فصل فی الامامة)**

مقتدیان وائی چه مونږ تاته دَامامت په عوض کنبې غله یا تنخواه درکوو.لهذا ستاپه مونږ باندې هیڅ حق نشته.نوآیا ددې نه علاوه دَامام نور څه حقوق شته که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی:احسان الله هزاره ......۱۸/دسمبر ۱۹۷۴ء.

**الجواب**: په امامت باندې اجرت اخستل جائز دی.(۱) .اوداجرت دَوخت دَ پابندئ په عوض کنبې دې دَ امامت نه دې.لهذا دَامام حقوق په دې سره نه زائل کیږي .وهوالموفق.

## دَ حرام خور او سود خور اقتداء او په مونځ کنبې د شریک کیدلو حکم

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کنبې څه فرمائی (۱).چه دَحرام خور اوسود خور دَاقتداء څه حکم دې؟ دارنګې دَهغه عبادتونه صحیح دی که نه؟(۲) دَسود خور سره یوځائې مونځ کول جائز دې که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی:مثل خان خلیل تهکال پشاور..........۱۳۹۱/۷/۷ھ.

**الجواب**:(۱) دَحرام خورعبادت صحیح دې ګناه نیکئ ته نقصان نه رسوی.(۲)

---

**(۱)** قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویفتی الیوم بصحتها لتعلیم القرآن والفقه والامامة والاذان. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۳۸ جلد۵ باب الاجارة الفاسدة مطلب فی الاستئجار علی الطاعات)

**(۲)** قال الامام اعظم ابو حنیفة: من عمل حسنة بشرائطها خالیة عن العیوب المفسدة والمعانی المبطلة ولم یبطلها حتی خرج من الدنیا فان الله تعالیٰ لا یضیعها بل یقبلها منه ویثیبه علیها، قال الملا علی قاری: وذلک لقوله تعالیٰ ان الله لا یضیع اجر المحسنین وفی آیة اخری ان لله لا یضیع اجر المؤمنین بل یقبلها منه ای بفضله وکرمه الخ.

(شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص۷۸ الطاعات بشروطها مقبولة.

وقال الحافظ عماد الدین ابن کثیر: یقول تعالیٰ مخبراً: انه لا یظلم احدا من خلقه یوم القیامة مثقال جبة خردل ولا مثقال ذرة بل یو فیها له ویضاعفها له ان کانت حسنة، ان الله لا یظلم مثقال ذرة وان تک حسنة یضاعفها ویؤت من لدنه اجراً عظیماً.

(تفسیر ابن کثیر ص ۴۵۰ جلد۱ سورة النساء آیت:۴۰)

البته اقتداء ورپسې كول مكروه دى.(۱) ،۲، جائز دى.وهو الموفق.

## درې امامانو كيدلوپه صورت كښې لس لس ورخې تراويح اوپه لاؤډسپيكر دَ مونځ مسئله

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى (۱). چه په يو جمات كښې درې امامان وى نوآيا شرعاً هريو امام لس لس ورخې تراويح كولې شى. (۲). دَ مونځ ګزارو شمير دَشلو خواؤشاوى نوآيا امام په لاؤډسپيكر كښې مونځ وركولې شى.(۳). په بانډوكښې په دوه نزدې نزدې جماتونو كښې دَ لاؤډسپيكر څه حكم دې؟ بينوا توجروا

المستفتى: على اكبر ازاد كشمير.

**الجواب**: (۱) بالكل كولې شى.(۲). په لاؤډسپيكر كښې مونځ كول ممنوع نه دى خوبغير ضرورت نه نه كول بهتردى.(۳).نه ممنوع دى اونه مطلوب البته دَآواز دَ تكراؤ او اشتباه په صورت كښې ممنوع دى.وهو الموفق.

## دَ ږيره خرئيلى دَ امامت او اذان كيدلو يا نه كيدلو نه دَ بې علمئ په صورت كښې مونځ

**سوال**:علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى (۱).چه دَپيښور يونيورسټئ په جمات كښې طالبان(سټوډنټان) په امامتئ سره مونځ كوى. دلته څوك امام نشته عام طور سره ږيرې والا طالب علم مونځ وركوى، خوچه كله هغه نه وى نو ږيره خرئيلې امامت كوى.دغه شان كه دَږيرې والا په نسبت

---

(۱) قال ابن نجيم رحمه الله: (قوله وكره امامة العبد والاعرابى والفاسق والمبتدع والاعمىٰ وولدالزنا) بيان للشيئين الصحة والكراهة اما الصحة فمبينة على وجود الاهلية للصلاة مع اداء الاركان وهما موجودان من غير نقص فى الشرائط والاركان ومن السنة حديث صلوا خلف كل بر وفاجر وفى صحيح البخارى ان ابن عمر كان يصلى خلف الحجاج وكفى به فاسقا كما قال الشافعى وقال المصنف ان افسق اهل زمانه.
(البحر الرائق ص۳۴۸ جلد ۱ باب الامامة)

سره بې ږیرې ډیرپوهه وی او ډیرې مسئلې ورته یادې وی او ږیرې والا کم علمه وی نو زیات حقدار دَامامت څوک دې؟ (۲). که دې صورت کښې مونځ شروع وی اویو عالم دین په مینځ کښې راشی نو هغه به څه کوی ؟ دَهغوی سره به مونځ کوی که ځان له به کوی؟ (۳) که دَ اذان علم نه وی چه شوی یا نه او جماعت اوشی نو ددې څه حکم دې ؟ بینوا توجروا

المستفتی: شفیق الرحمن پشاور یونیورسٹی ........۵/اگست ۱۹۷۹ ء.

**الجواب:** (۱). که ږیره خریونکې دَږیرې والا نه ډیرپوهه وی دَمونځ په مسئلو باندې نوهم هغه دَامامت حقدار دې ﴿۱﴾.(الدرالمختارمع ردالمحتار).(۲).دَځان له مونځ نه اقتداء بالفاسق افضل ده .﴿۲﴾ .(البحر،هندیه،ردالمحتار).(۳).دامونځ دَخلاف سنت کیدلو باوجودهم صحیح دې.﴿ ۳﴾ .فقط.

## امامت نه ذلیله پیشه" وئیلو والا امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید وائی امامت ذلیله پیشه ده،اوډیرذلت دې اوبیاروستودغه زید امامت هم کولو.نوآیا دده امامت صحیح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی:قاری محمدفریدمدرسه معارف القرآن حنفیه مرکزی جامع مسجدمانسهره

---

﴿۱﴾ قال الحصکفی: والاحق بالامامة تقدیما بل نصبا الاعلم باحکام الصلاة فقط صحة وفساداً بشرط اجتنابه للفواحش الظاهرة وحفظه قد رفرض وقیل واجب وقیل سنة، قال ابن عابدین: وعبارة الکافی وغیره الاعلم بالسنة اولیٰ الا ان یطعن علیه فی دینه لان الناس لا یرغبون فی الاقتداء به. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص۴۱۲ جلد۱ باب الامامة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة، قال العلامه ابن عابدین: افاد ان الصلاة خلفهما اولیٰ من الانفراد.

(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص۴۱۵ جلد۱ قبیل مطلب البدعة فی امامة الامرد)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: اذا صلیٰ فی مسجد المحلة جماعة بغیر اذان حیث یباح اجماعا. (ردالمحتار علی الدرالمختار ص۴۰۸ جلد۱ باب الامامة مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد)

**الجواب:** ... دي عبارت دوه مطلبه کیدی شی (۱) چه عوام دامامت پیشه ذلیله گنړی ددي معهر ... په وجه بندي هیڅ اعتراض نشته خکه چه دي زمانه کښي خلق دجهالت په وجه ... دامامت پیشی ته دحقارت سپکاوی په نظر گوری چه دهغي گناه به ... خلقو ژی (۱) (۲) او که پخپله دزیدهم دا رائي وی نودا ډیره خطرناکه خبره ده (۲) ... دی نه ... زید توبه گارشی نو امامت کولي شی وهو الموفق

## اولنی امام دَ استعفی ورکولو نه بغیر دَبل چا په زور قبضه دول

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه یو امام استعفی نه وی ورکړي او دهغه په ځای باندي بل امام په زور قبضه کول غواړی اوخلق دَمحکښي امام خلاف راوچتوی نوآیا دي دویم امام پسي اقتداء کول شرعاً صحیح دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی نامعلوم ۱۲،۱،۱۹۷۲

**الجواب:** دَامام الحی په موجودگئ کښي دَ بل کس امامت مکروه دي چه بلا اذن وی

قال رسول الله ﷺ لا یؤمن الرجل الرجل فی سلطانه (۳) وفی الدرالمختار، واعلم ان صاحب البیت ومثله امام المسجد الراتب اولیٰ بالامامة من غیره مطلقا الخ (۴). وهو الموفق

(۱) قال الحصکفی: ولوتها بارکوا مع الراکعین ومن حکمها نظام الالفة وتعلم الجاهل من العالم هی افضل من الاذان عندنا ..... فاخترت الامامة، قال ابن عابدین، قلت ومفاده انها افضل من الاقتداء. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص۳۰۸ جلد ا قبل مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد باب الامامة)

(۲) قال العلامه ملا علی قاری: من استخف بالقرآن او بالمسجد او بنحوه مما یعظم فی الشرع کفر. (شرح فقه الاکبر لملا علی قاری ص۱۶۷ فصل فی القرأة والصلاة)

(۳) عن ابی مسعود رواه مسلم وفی روایة له ولا یؤمن الرجل الرجل فی اهله. (مشکواة المصابیح ص۱۰۰ جلد ا باب الامامة الفصل الاول)

(۴) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۳۱۳ جلد ا مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد باب الامامة)

## د نابینا عالم دین حافظ اوقاری امامت بغیر د کراهت نه صحیح دي

سوال علماني دين دې مسئلې باره کښې څه فرماني چه زمونږ په کلي کښې يو نابينا حافظ اوقاري دې او ديوبند نه فاضل عالم دين هم دی اوحق ويونکې او متقي هم دې داعالم په رمضان شريف کښې تراويح ورکوی اوکله کله د سحر اوماسخوتن مونځونو کښې هم امامت کوی نوآيا د نبينا امامت جائز دې؟ بينوا توجروا.

المستفتي قاري محمد ابراهيم شاه حسن خيل نوښ ١٤١.١٩٩١

الجواب داسې نابيناپسې اقتداء بغير کراهت نه صحيح ده په فرضو کښې وی اوکه په تراويح کښې

كما في الدر المختار على هامش رد المحتار ص٣٩٣ جلد١ باب الامامة)ويكره تنزيهاً امامة عبد وفاسق واعمى ونحوه الاعشى نهر الا ان يكون غير الفاسق اعلم القوم فهو اولىٰ (وفي رد المحتار ص٣٩٣ جلد١ باب الامامة) تبع في ذلک صاحب البحر حيث قال قيد كراهة الاعمىٰ في المحيط وغيره بان لا يكون افضل القوم فان كان افضلهم فهو اولىٰ﴿١﴾. وهو الموفق

## دامام په تاکلو کښې به داکثريت رائې معتبر وی

سوال علماني دين دې مسئلې باره کښې څه فرماني چه زمونږ ځني کښې عام طور سره دجماتونو امامان دتنخواه نه بغير دامامت فرائض ذمه واری پوره کوی دامام په معزول کولو او تاکلو کښې دمحلې والا رائې معتبر وی اوس زمونږ امام پخپله باندې دامامت نه مجبوري ښکاره کړه نو په دې وجه محلې والو بل امام مقرر کړو چه په هغې سره دوه ډلې جوړې شوی سوې ډلې په دې تقررئ باندې اعتراض اوکړو نو اوس يو امام هم مقرر نه دې يوه فرقه ډله اکثريت لري اوبله ډله په اقليت کښې ده دچارائې نه معتبر وی ؟ بينوا توجروا.

المستفتي غلام حسين افضل فلورملز شينه باغ حورد کيمبلپور ١٢٢.١٩٧٢

﴿١﴾ (الدر المختار مع هامش رد المحتار ص٤١٣ جلد١ باب الامامة)

**الجواب:** دَاکثرو فیصله به منظور کولې شی فی الدرالمختار اوالخیارالی القوم فـان اختلفوا اعتبر اکثرهم(هامش الدرص ۵۲۲ جلد ۱).(۱).وهوالموفق.

## دَ شرعی ثبوت نه بغیرصرف دَالزام په وجه

## دَ "کراهتِ اقتداء" حکم نه شی ورکولې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ دَشرعی فیصلې دپاره مسمی فلان او فلانکې مولوی صاحب سکنه بیګوخیل شرعی ثالثان دریم کړی، مقررکړل دَ دواړو ډلونه بیان اخستلو نه پس ئې فیصله واورولـه نو یوې ډلې تـه دافیصله ناجائزه معلومـه شوه نو ثالثانو تـه ئې اووئیل اوفیصله ئې واپس کړه.لیکن ثالثانو اووئیل که زمونږ دفیصلې خلاف تاسو دغلطئ څه ثبوت پیش کړو نومونږ به ئې اومنو. بیا مونږ دَ اکوړه خټک نه فتوی نمبر ۵۹۹۲ اوغوښتله نوپه هغې کښې دَهغوی دَفیصلې خلاف ثبوت پیش شو مونږ هغه فتوې پیش کړې نوهغوی انکار اوکړو اوپه خپله غلطه فیصله باندې کلک شول لیکن مونږ تـه یقین دې چه دوی پـه دې فیصله کښې رشوت اخستې دې.اوکوم کس چه به زمونږ مینځ کښې ګرځیدلو هغه مونږ ته په یقین سره اووئیل چه دوی رشوت اخستلې دې آیا داسې ثالثانو پسې اقتداء جائز ده ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: اجمل خان سکنه بیګوخیل لکی مروت............ ۱۹۷۲ء/۲/۲.

**الجواب:** محترم! خبرشه چه دَشرعی ثبوت نه بغیرمونږصرف ددې الزام په وجه دَ کراهتِ اقتداء فتوی نه شو ورکولې.

قال الله تعالیٰ یا ایها اللذین آمنوا اجتنبوا کثیرا من الظن ان بعض الظن اثم (الایة)﴿۲﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۱۳ جلد ۱ قبیل مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

﴿۲﴾ (سورة الحجرات پاره: ۲٦ آیت: ۱۲ رکوع ۱۳)

## دَ غلط ويونكى پسې دَصحيح ويونكى اقتداء صحيح نه ده

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه كوم كس صحيح طريقې سره قرآن شريف نه شى لوستلې مثلاً دَ"الفراش المبثوث" په ځائې "الفراخ المبثوت" وائى. ده پسې مونځ جائز دې يا نه؟ ده ته د امامت حق شته يا نه؟ باوجود ددې چه نور جيد عالمان هم موجود وى؟ بينوا توجروا.

المستفتى: نامعلوم..........

**الجواب:** دَ "الفراش" په ځائې "الفراخ" ويونكى پسې دَصحيح لوستلو والا اقتداء صحيح نه ده.

**كما فى الدرالمختار ولا غير الالثغ به اى بالالثغ على الاصح وكذا من لا يقدر على التلفظ بحرف من الحروف (هامش الرد ص٥٤٤، ٥٤٥ جلد ١)﴿١﴾. وهوالموفق**

---

**﴿١﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ٤٣٠ جلد ١ مطلب فى الالثغ باب الامامة)**

# فصل فی من تصح امامته ومن لا تصح

## یورکعت وتر کولو والا او دَ مصحف نه لوستلو والا پسې مونځ

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ وترو یورکعت کولو والا دَاقتداءڅه حکم دې ؟دغه شان دَمصحف نه ویونکی امام اقتداء کول جائز دی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:تخته خان سعودی عرب ........ ۲/ذیقعده ۱۴۰۲هـ.

**الجواب**:وتریورکعت کولو والا امامانو پسې اقتداء مه کوئ.(۱).او دَمصحف نه ویونکی امام پسې اقتداء کول هم دَاحتیاط نه خلاف دی.(۲)وهوالموفق.

---

**(۱) قال العلامه ابن نجیم: وصحح الشارح الزیلعی انه لا یجوز اقتدا الحنفی بمن یسلم من الرکعتین فی الوتر وجوزه ابوبکر الرازی ویصلی معه بقیة الوتر...... ویخالفه ما ذکر فی الارشاد من انه لا یجوز الاقتدا فی الوتر بالشافعی باجماع اصحابنا لانه اقتداء المفترض بالمتنفل فانه یفید عدم الصحة فصل او وصل...... فی فتح القدیر بما ذکره فی التجنیس وغیره من ان الفرض لایتأدی بنیة النفل ویجوز عکسه فعلی هذا ینبغی ان لایجوز وتر الحنفی اقتداء بوتر الشافعی بناء علی انه لم یصح شروعه فی الوتر لانه بنیته ایاه انما نوی النفل الذی هو الوتر فلا یتأدی الواجب بنیة الواجب الخ.**

**(البحر الرائق ص ۳۹ جلد۲ باب الوتر والنوافل)**

**(۲) وفی الهندیه: ویفسدها قراء ته من مصحف عند ابی حنیفة رحمه الله تعالیٰ وقالا یفسدله ان حمل المصحف وتقلیب الاوراق والنظر فیه عمل کثیر وللصلاة عنه بدو علی هذا لو کان موضوعا بین یدیه علی رحل وهو لا یحمل ولا یقلب اوقرأ المکتوب فی المحراب لا تفسد ولان التلقن من المصحف تعلم لیس من اعمال الصلاة وهذا یوجب التسویة بین المحمول وغیره فتفسد بکل حال وهو الصحیح هکذا فی الکافی. (فتاویٰ عالمگیریه ص ۱۰۱ جلد ۱ الفصل الاول فیما یفسدها الباب السابع فیما یفسد الصلاة ومایکره فیها )**

## دَ چیلم او سیگریټ څکلو والا دَ اقتداء حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم امام چیلم یا سیګریټ څکی نو دَهغه امامت صحیح دې که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عابدمحمودحمیدی اټک......۱۹۸۴ء/۱۰/۳۰.

**الجواب:** دَپیازو، اوګې او تمباکوانوخوړلو والا یوشان حکم دې دَدې څیزونو خوړلو والاپسې اقتداء کولو کښې څه کراهت نشته دې، خودومره ده چه دَبدبویئ په حالت کښې مونځ کول مکروهِ تحریمی دی لکه چه بدبویئ والا سړی دپاره جمات ته تلل مکروهِ تحریمی دی.﴿۱﴾ .وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله واکل نحو ثوم) ای کبصل ونحوه مماله رائحة کریهة للحدیث الصحیح فی النهی عن قربان آکل الثوم والبصل المسجد قال الامام العینی فی شرحه علی صحیح البخاری قلت علت النهی اذی الملائکة واذی المسلمین ولا یختص بمسجده علیه الصلاة والسلام بل الکل سواء لروایة مساجدنا بالجمع خلافا لمن شذ ویلحق بما نص علیه فی الحدیث کل ماله رائحة کریهة ماکولا وغیره وانما خص الثوم هنا بالذکر وفی غیره ایضا بالبصل والکراث لکثرة اکلهم لها وکذلک الحق بعضهم بذلک من بفیه بخر اوبه جرح له رائحة وکذلک القصاب والسماک والمجذوم والابرص اولی بالالحاق وقال سحنون لا اری الجمعة علیهما واحتج بالحدیث والحق بالحدیث کل من اذی الناس بلسانه وبه افتی ابن عمر وهو اصل فی نفی کل من یتاذی به ولا یبعد ان یعذر المعذور باکل ماله ریح کریهة لما فی صحیح ابن حبان عن المغیرةبن شعبة قال انتهیت الی رسول اللهﷺ فوجد منی ریح الثوم فقال من اکل الثوم فاخذت یده فادخلتها فوجد صدری معصوبا فقال ان لک عذرا وفی روایة الطبرانی فی الاوسط اشتکیت صدری فاکلته وفیه فلم یعنفهﷺ وقولهﷺ ولیقعد فی بیته صریح فی ان اکل هذه الاشیاء عذر فی التخلف عن الجماعة وایضا هنا علتان اذی المسلمین واذی الملائکة فبالنظر الی الاولی یعذر فی ترک الجماعة وحضور المسجد وبالنظر الی الثانیة یعذر......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ جمات دیوال نه دَ"یامحمد" ورانونکی امامت

**سوال**: علمائي دین دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَجمات په دیوال باندې دَمونځ دَوختونو بورډ لګیدلې دې چه دَهغې په ښی طرف باندې ئې "یاالله" او په ګس طرف باندې "یامحمد" لیکلې شوې دی یو سړی دګس طرف "یامحمد" اوسوزولو او وران ئې کړو آیا داسړې دَسپکوالی مرتکب خونه شو؟آیا داسې سړې امامت کولې شی؟آیا ده سره په صف کښې اودریدل جائز دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حبیب الرحمن.....۱۱/۲/۱۹۷۵ء.

**الجواب**: دَپیغمبر علیه السلام نوم ډیرزیات قابلِ احترام او واجب الاحترام دې. ولهـذا لایجوز لف شئ فی الکواغذ التی فیها اسم الله تعالی اواسم النبی ﷺ (کمافی الهندیه ص۳۵۷جلد۵).(۱).اودَ اهل بدعاتوخاص نښې ورانول جهاد موجب دثواب دې، ولهٰذا قطع الصحابة رضی الله عنهم بعض الاشجار(۲) پس که هغه دا لفظ مبارك په دې وجه سوزولې وی چه

---

(بقیه حاشیه) فی ترک حضور المسجد ولو کان وحده، ملخصا القول کونه یعذر بذلک ینبغی تقیید بما اذا اکل ذلک بعذر او اکل ناسیا قرب دخول وقت الصلاة لئلا یکون مباشرا لما یقطعه عن الجماعة بصنعه. (ردالمحتارهامش الدرالمختار ص۴۸۹ جلد ۱ قبیل باب الوتر والنوافل)

﴿۱﴾ وفی الهندیه : ولا یجوز لف شئ فی کاغذ فیه مکتوب من الفقه وفی الکلام الاولی ان لا یفعل وفی کتب الطب یجوز ولو کان فیه اسم الله تعالیٰ او اسم النبی علیه السلام یجوز محوه لیلف فیه شئ کذافی القنیة. (فتاویٰ عالمگیریه ص ۳۲۲ جلد۵ الباب الخامس فی اداب المسجد والقبلة والمصحف وماکتب الخ)

﴿۲﴾.حضرت علامه محمد ادریس کاندهلوی فرمائی: دَبعضې روایتونو اوتاریخی نقولونه دابښکاریږی چه خلقو دَدغې اونې (اذیباعون تحت الشجرة) تعظیم اوتکریم کولو،هلته به راتلل اونفلونه به ئې کول،حضرت عمرفاروق رضی الله عنه ته چه کله داخبره معلومه شوه نوهغه دَدې اونې دَپریکولو حکم اوکړو (تفسیرمعارف القران ص۴۲۹ جلد۷ سورة الفتح ایت ۱۸).

عوام دَعقیدې دَخرابوالی نه بچ شی نو دَ ده دا جذبه صحیح ده لیکن دا عمل ئې غلط او بی ادبی ده، دا دَ نجدیت کار دې دَحنفیت کارنه دې بهرحال داسړې بې ادبه باایمان دې که پښیمانه نه وی نو اقتداء ورپسې مه کوئ البته دَمونځ او جماعت نه به نشی منع کولې. وهوالموفق.

## دَ اغواکار، زناکار او په دروغه قسمونو خوړلو والا امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په جمات کښې دوه کسان دی په هغوی کښې یو کس دَمونځ روژې پابند دې خو په بل کس داخرابئ موندلې کیږی. (۱) خلق تختول او په بل چاتختول، (۲) زناکول او نورو ته په کولو کښې مدد ورکول. (۳) دَنکاح دپاسه نکاح تړل، (۴) په دروغه ګواهی کول، (۵) په دروغه قسمونه خوړل، (۲) کباړ یعنی زیاتی څیزونه دَجمات نه غائب کول، چه کله رمضان شروع شی نو جمات ته راځی باقی ټول کال مونځ نه کوی. په رمضان کښې راشی په جمات قبضه کوی خلق ورته وائی چه زمونږ تاپسې مونځ نه کیږی لیکن په ضد کښې دې نونتیجه داچه خلق دَمجبورئ نه په کورونو کښې مونځونه کوی نوآیا دې امام پسې مونځ کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: جاوید اقبال کوټ دهمیک جهلم

**الجواب:** که دا خبره رښتیا وی او ثابت وی نو دې خراب امام پسې اقتداء مکروه تحریمی ده، کمافی شرح الکبیر (ص۴۳۸) ان کراهة تقدیمه کراهة تحریم، (۱). البته دَځان له مونځ نه فاسق پسې اقتداء کول بهتردی. کمافی ردالمحتارص ۵۲۵ جلد۱ قوله فضل الجماعة افاد ان الصلوة خلفهما اولی من الانفراد (۲). وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامه الحلبی: کذا فی فتاویٰ الحجة وفیه اشارة الی انهم قدموا فاسقا یاثمون بناء علی ان کراهة تقدیمه کراهة تحریم. (الشرح الکبیر ص۴۷۵ فصل فی الامامة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۵ جلد ۱ باب الامامة قبیل مطلب فی امامة الامرد)

## دَ نکاح د پاسه د نکاح ترلو والا کس امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید دَجماعت امام او خطیب دې دَنکاح دپاسه ئې نکاح ترلې.دده دَامامت څه حکم دې؟بینوا توجروا

المستفتی: محمدیوسف خان.........۳۰/۱۱/۱۹۷۴ء.

**الجواب:** که رښتیاوی او دې خطیب قصداً داسې کارکړې وې نودې به دَ تعاون علی المعصیة" په وجه سخت ګنهګار وی اودَ نیکانو خلقو دَ اقتداء لائق به نه وی (۲) .وهوالموفق.

## دَ مونځ دَ صحت او فساد دَمسئلو نه دَ ناخبره کس امامت او نورې مسئلې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو داسې امام چه دَمونځ دَصحت اوفساد دَمسئلو نه بې خبره وی اودَهغه ښځه او ځوانې لونړه بې پرده په پټو کښې دګیاګانو دپاره ګرځی اولونړه بغیرنکاح نه په کور کښې ساتی چه لکه څناور خرڅولوپشان ترینه په نکاح کښې ډیرې پیسې حاصلې کړی.آیا دَدې امام امامت جائز دې؟ بینوا توجروا.

المستفی: حسین احمد.

**الجواب:** که دَدې امام مقتدیان هم په دې جرمونو کښې مبتلا وی نوبیادَمونځ کراهیت نشته اوکه په مقتدیانو کښې دده نه بهترکس موجود وی نوبیاده پسې اقتداء مکروه دی.

**یدل علیه مافی البحر ص ۳۴۹ جلد ۱ فالحاصل انه یکره لهؤلاء التقدم ویکره الاقتداء بهم کراهة تنزیهٍ (الی ان قال) وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والا فلا کراهة﴿۳﴾. فقط**

---

**﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ، ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان . (سورة المائدة پاره: ۶ رکوع ۱ آیت: ۲)**

**﴿۲﴾ قال الحصکفی رحمه الله: ویکره امامة عبد وفاسق. (درمختار ص ۴۱۴ باب الامامة)**

**﴿۳﴾ (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)**

## دَ بدکرداره او مفعول دَ امامت حکم

**سوال**:علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه يوسړې دَجماعت امام جوړشوې دې چه ظاهری طورسره يعنی ښکاره په ښکاره مفعول دې اوپه دې بدکردارئ کښې مشهور دې.اوپه حديث شريف کښې راغلې دی چه دَ اووه کسانو مونځ نه قبليږی په هغوی کښې يوفاعل اوبل مفعول هم دی داحديث شريف دَ تنبيه الغافلين" په "باب حق الجار" کښې موجود دې نو آيا دَ داسې کس امامت جائز دې؟ بينوا توجروا.

المستفتی: عزيزالرحمن بازارگئ صوابی ..........۱۹۸۷ء/۱۲/۹/.

**الجواب**:که داخبره ربښتيا وی او ثابت وی نو دې امام پسې اقتداء کول مکروه تحريمی دی.(۱) .لکونه فاسقا ولاتجب الاعادة.(۲) .خوبهرحال دَ"التائب من الذنب کمن لا ذنب له.(۳) .خيال ساتل هم ضروری دی.وهوالموفق.

## په مرهونه (گاڼړه شوې څيز) باندې فائدې اخستلو والا اقتداء

**سوال**:علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم امام دَ گاڼړه شوې څيز نه فائده اخلی دَهغه اقتداء جائز ده که نه؟ بينوا توجروا.

المستفتی: محمدجان مقام مسجهورمانسهره.

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله: ويكره امامة عبد واعرابى وفاسق واعمى ومبتدع. قال ابن عابدين: (قوله اى غير الفاسق) ...... تكره امامته بكل حال بل مشى فى شرح المنية على ان كراهة تقليمه كراهة تحريم. (ردالمحتار مع الدرالمختار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

﴿۲﴾ قال فى ردالمحتار فيكره لهم التقدم ويكره الاقتداء بهم تنزيهاً فان امكن الصلاة خلف غيرهم فهو افضل والا فالاقتداء اولىٰ من الانفراد.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۱۳ جلد ۱ قبيل مطب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

﴿۳﴾ عن عبد الله بن مسعود قال قال رسول الله ﷺ التائب من الذنب كمن لا ذنب له رواه ابن ماجه والبيهقى فى شعب الايمان الخ. (مشكواة المصابيح ص ۲۰۶ جلد ۱ باب الاستغفار والتوبة)

**الجواب:** دَمرهوني نه فائده اخستل ناجائز اوسود دي. لان کل قرض جرنفعاً فهو ربوا، هولفظ الحديث، وكذاحاصل الحديث، ﴿۱﴾. لهذا دَداسي امام اقتداء كول(په جنازه وغيره كښې) مكروه تحريمي ده. ﴿۲﴾ .خو په دې شرط چه دَقوم حال دَده نه زيات خراب وى كنې نوپه ړندوكښې يوستركې والا بادشاه وى.

يشيراليه كلام البحروينبغى ان يكون محل كراهة الاقتداءبهم عندوجود غيرهم (ص۳۴۹ جلد۱). وهوالموفق

---

﴿۱﴾ عن على رضى الله عنه قال قال رسول اللهﷺ كل قرض جر منفعة فهو رباًرواه الحارث بن ابى اسامة واسناده ساقط وله شاهد ضعيف عن فضالة بن عبيد عند البيهقى وآخر موقوف عن عبد الله بن سلام عند البخارى.

(بلوغ المرام من ادلة الاحكام ص ۲۸۲ رقم حديث: ۸۱۲)

ورواه ابن ابى شيبة فى مصنفه حدثنا خالد الاحمر عن حجاج عن عطاء قال كانوا يكرهون كل قرض جر منفعة. (فتح القدير ص ۳۵۲ جلد۶ قبيل كتاب ادب القاضى)

وفى امداد الفتاوىٰ رساله كشف الدجىٰ: ومما يدل على عدم حل القرض الذى يجر الى المقرض نفعا ما اخرجه البيهقى فى المعرفة عن فضالة بن عبيد موقوفا بلفظ كل قرض جر منفعة فهو وجه من وجوه الربا ورواه فى السنن الكبرىٰ عن ابن مسعود وابى بن كعب وعبد الله بن سلام وابن عباس موقوفاً عليهم (ص ۹۹) وايضا قال فى (ص ۲۱۵) وقال ﷺ كل قرض جر منفعة فهو ربا وهو حديث حسن لغيره صرح به العزيزى فى شرح الجامع الصغير(ص ۴۸۷ جلد۳).

(امداد الفتاوىٰ ص ۲۱۵، ۲۷۰ جلد۳ كشف الدجىٰ عن وجه الربوا)

﴿۲﴾ قال الشامى: قوله( ويكره امامة عبد ......وفاسق) من الفسق وهو الخروج عن الاستقامه ولعل المرادبه من يرتكب الكبائر كشارب الخمر والزانى وآكل الربا ونحو ذلك كذافى البرجندى .

(ردالمحتا رهامش الدرالمختار ص ۴۱۴ جلد۱ قبيل مطلب البدعة خمسة اقسام)

﴿۳﴾ (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد۱ باب الامامة)

## دَ موټی نه کمه ږیره ساتلو والا سړی امامت

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَږيرې خرئيلو څه حکم دې؟ اویوموټې ساتل واجب دی که سنت؟ اوڅوک چه دَموټی نه کمه ږیره ساتی دَهغه اقتداء جائز ده که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ عبدالرشید جهنگ............ ۱۳۹۷/۲/۳۱ھ.

**الجواب:** یوموټې ږیره ساتل واجب دی البته دَدې واجب کیدل په سنت او حدیث سره ثابت دی. کماصرح به شیخ عبدالحق محدث الدهلوی (۱).

دَدې خرئيلو والا فاسق دې اوکمولو یعنی کټ کولو والا ئې هم فاسق دې چه همیشه داسې کوی. کمافی تنقیح الفتاوی (۲). اودَفاسق اقتداء کول مکروه دی خودومره ده چه دَځان له مونځ نه افضل ده. وهو الموفق.

---

(۱) (اشعة للمعات شرح مشکواةباب الترجل الفصل الاول)

وقال الملا علی قاری: وقد اختلفوا فیما طال من اللحية فقیل ان قبض الرجل علی لحيته واخذ ماتحت القبضة ولابأس به وقد فعله ابن عمر رضی الله عنه وجماعة من التابعین واستحسنه الشعبی وابن سیرین وکره الحسن وقتادةومن تبعهما وقالوا ترکها عافیة احب منه لکن الظاهر هوالاول. (نفع قوت المغتذی علی هامش سنن ترمذی ص۱۰۰ جلد۲)(وهکذا فی مرقاة المفاتیح ص۲۹۸ جلد۸ باب الترجل الفصل الاول)

(۲)قال العلامه محمدامین: ان الاخذ من اللحية وهی دون القبضة کما یفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم یبحه احد واخذ کلها فعل الیهود الهنود ومجوس الاعاجم.

(تنقیح الفتاویٰ الحامدیه ص۳۵۱ جلد۱ لایباح الاخذ من اللحية وهی دون القبضة)

(۳) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: فان امکن الصلاة خلف غیرهم فهو افضل والا فالاقتداء اولیٰ من الانفراد. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۳ جلد۱ قبیل مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

## دَ لس کلنی ماشوم امامت باطل دي

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه یو لس کلني هلک دي پنځه سیپاروپورې ئي قران شریف لوستلي دي هغه پسي دَاقتداء څه حکم دي؟ بینوا توجروا.

المستفتی: رئیس خان شاه کوټ پبی نوشهره......یکم ذی قعده ۱۴۰۲ه.

**الجواب:** ټولو فقهاؤ تصریح کړي ده چه نابالغ امام پسي دَبالغ اقتدا باطل ده(۱). لحدیث امام ضامن(۲) ولحدیث انماجعل الامام لیوتم به.(۳). وهوالموفق.

## دَ ږیرې خریونکی حافظِ قرآن دَ اقتداء حکم

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه یوّ حافظِ قرآن ږیره خرئی یائي وړه کوی او مسنون ږیره نه ساتی هغه پسي دَاقتداء څه حکم دي؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم........۲۳/۹/۱۹۷۷ء.

---

**(۱)** قال العلامه حصکفی : ولا یصح اقتداء رجل بامرأة وخنثی وصبیی مطلقا ولو فی جنازة ونفل علی الاصح. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۲۷ جلد ۱ مطلب الواجب کفایة هل یسقط بفعل الصبی)

**(۲)** عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ الامام ضامن والمؤذن مؤتمن اللهم ارشد الائمة واغفر للمؤذنین.

(جامع ترمذی ص ۲۹ جلد ۱ باب ماجاء ان الامام ضامن والمؤذن مؤتمن)

**(۳)** عن عائشة ام المومنین انها قالت صلی رسول الله ﷺ فی بیته وهو شاک فصلی جالساً وصلی وراءه قوم قیاما فاشار الیهم ان اجلسوا فلما انصرف قال انما جعل الامام لیؤتم به فاذا رکع فارکعوا الخ.

(الصحیح البخاری ص ۹۵ جلد ۱ باب انما جعل الامام لیؤتم به الخ، کتاب الاذان)

**الجواب**: مسنون ږیره نه ساتونکی امام پسې دَنیکو خلقو په موجودګئ کښې اقتداء مکروه تحریمی ده.

**لکونه فاسقا کما فی تنقیح الفتاویٰ ص ۳۵۱ جلد ۱ ان الاخذ من اللحیة وهی دون القبضة کما یفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم یبحه احدواخذ کلها فعل الیهود والهنود ومجوس الاعاجم اه فحیث ادمن علی فعل هذا المحرم یفسق﴿۱﴾ وفی شرح الکبیر ص ۴۷۹ کراهة تقدیمه کراهة تحریم﴿۲﴾ وفی البحر ص ۳۴۹جلد۱ وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والا فلا کراهة ﴿۳﴾**

مختصرداچه داسې حافظ دې امام جوړنکړې شی داسې اقتداء دَختم القرآن نه کولو نه هم بدتره ده.وهوالموفق.

## ږیره دَ موټی نه کمولو والا کس امامت مکروه تحریمی دې.

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ "ببوتری،هری پور،نومې کلی پیش امام صاحب ږیره ساتلې ده لیکن دومره ئې وړه کوی چه هسې دَنوم ږیره ده لکه چه شپږ(۲) اووه(۷) ورځې ئې حجامت نه وی کړې.نو آیا داسې امام چه دَږیرې تقدس اودَسنتِ رسول ﷺ احترام ورسره نه وی نوآیا دَداسې امام پسې مونځ کیږی ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: قاضی میراکبر هری پور.....۱۸/ شوال ۱۴۰۱ هجری

**الجواب**: داسې امام پسې اقتداء کول مکروه تحریمی دی.

**لان الاخذ مادون القبضة حرام ومفسق کما فی تنقیح الفتاویٰ الحامدیه ص ۳۵۱ جلد ۱ ان الاخذ من اللحیة وهی دون القبضة کما یفعله البعض المغاربة ومخنثة الرجال لم یبحه**

---

**﴿۱﴾ تنقیح الفتاویٰ الحامدیه ص ۲۵۱ جلد ۱ لا یباح الاخذ من اللحیة وهی دون القبضة)**
**﴿۲﴾ غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص ۴۷۵ فصل فی الامامة)**
**﴿۳﴾ (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)**

احد واخذ کلها فعل یهود الهنود ومجوس الاعاجهم فحیث اد من علی فعل هذا المحرم یفسق﴿۱﴾. وهوالموفق

## سنت ږیره نه ساتلو والاو دَ عیسایانو په مشرئ کښې ملازمت کولو والاامامت

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو امام دَمدرسه فتح پوری دهلی نه فارغ التحصیل دې لیکن دَهغه ږیره دَسنت موافق نه ده اودَ ۴۵ کالو نه په عیسائی مشنرئ کښې دَتنخواه دارملازم (نوکر) په حیثیت سره کار کوی او مقتدیانو سره بداخلاقی هم کوی دَدینی شعائرو خیال نه ساتی داسې امام پسې اقتداء کول جائز دی یا نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالرحیم حمام گلی صدر روډ پیښور... ۱۲/ذی قعده ۱۴۰۲ھ.

الجواب: که داخبره رښتیاوی اوثابته وی نوداسې امام پسې اقتداء کول مکروه تحریمی دی. لفسقه کمافی شهادات تنقیح الفتاوی الحامدیه، ﴿۲﴾. خوکه چرته دَقوم حالات دده نه هم خراب وی نو بیا دا امام په ړندوکښې بادشاه دې نوهیڅ کراهت نشته. کمافی البحرص۳۴۹جلد۱وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والافلاکراهة ﴿۳﴾. وهوالموفق.

## په جمات کښې دَ تصویرونو جوړولو نه دَ نه منع کونکی امامت

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جمات کښې دَنکاح په وخت تصویراخستل څنګه دی؟ دغه شان دَدې امام دَامامت به څه حکم وی چه په مجلس کښې دَحاضریدلو باوجودهم منع نه کوی نوآیا دَده امامت صحیح دې ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: سراج الدین حقانی خطیب دومیل ضلع جهلم.. ۱۹۸۲ء/۸/۱۰.

---

﴿۱﴾ (تنقیح الفتاویٰ الحامدیه ص ۳۵۱ جلد ۱ لا یباح الاخذ من اللحیة وهی دون القبضة)

﴿۲﴾ قال العلامه محمد امین: ان الاخذ من اللحیة وهی دون القبضة کما یفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم یبحه احد واخذ کلها فعل الیهود الهنود ومجوس الاعاجم. (تنقیح الفتاویٰ الحامدیه ص ۳۵۱ جلد ۱ لا یباح الاخذ من اللحیة وهی دون القبضة )

﴿۳﴾ (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ با ب الامامة)

**الجواب**: جماتونه او بازارونه دَمنکراتونه ډک شوي دی اوداخلق په تقوی داروباندي غالب دی لهذا امام به مجبور وی خوبیاهم دَنهی عن المنکر فریضه په خپل ځائي لازم ده. دَتصویرحراموالي عامومسلمانانوته هم معلوم دي. (١). اودَدي امام اقتداء صحیح ده. (بحرالرائق). (٢). وهوالموفق.

## دَلالچ دَ وجې نه دَ غلطي فيصلي کولو والا امامت

**سوال**: علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه زمونږ دکلی بلندپوره خطيب صاحب دَ دوه ډلو په مينځ کښي فيصلي والا مقررشو دَلالچ په وجه ئي دَشرعی فيصلي په ځائي غيرشرعی فيصله اوکړه اوخلقو ته ئي خودل چه داشرعی فيصله ده. اوحال داهغه دوکه او فراډ وو. چه کله دا فيصله قاضی غلام سرور صاحب دَبڼئ ته پيش کړي شوه نو دا دريم ګړي دَخپلي دوکي او فراډ دَوجي نه دَحاضريدلو نه انکاری شو او حاضری ئي اونکړه آيا داسي امام پسي مونځ کول جائز دی؟ بينوا توجروا.

المستفتی: حاجی سفيدګل سربلندپوره پيښور..... ٢١/ذی الحجه ١۴٠٢ھ.

**الجواب**: دي متنازع فيها (جهګړي والا) مسئلي کښي شرعی حصي معلومي او يقينی دی. اوپه فائل کښي ليکلي شوي دی نوکه دي خطيب صاحب دَ دواړو ډلو دَرضامندئ نه بغير دافيصله کړي وی نودافيصله نامنظوره اودَنشت برابر (کالعدم) ده. اودَفراډ کولو په صورت کښي ورپسي دَنيکو خلقو مونځ کول مکروه تحريمی دي. (٣). وهوالموفق.

---

(١) عن عبد الله بن مسعود قال سمعت رسول الله ﷺ يقول اشد الناس عذابا عند الله المصورون. (مشكواة المصابيح ص ٣٨٥ جلد٢ باب التصاوير الفصل الاول)

(٢) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله: وينبغي ان يكون محل كراهة الاقتداء بهم عند وجود غيرهم والا فلا كراهة كما لا يخفىٰ.
(البحر الرائق ص ٣٤٩ جلد ١ باب الامامة)

(٣) قال العلامة الحلبي: كذا في فتاوىٰ الحجة وفيه اشارة الى انهم قلموا فاسقا يالمون بناء على ان كراهة تقليمه كراهة تحريم. (الشرح الكبير ص ۴٧۵ فصل في الامامة)

## دَ غصب زمکه په زمینداریٔ اخستلو والا د کس امامت

**سوال**: علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه زمونږ په کلی کښي یو دَ جائیدادخاوند دډیري زماني نه فالج وهلي دي کلي ئي پریخي او دَ کور والا (ښځي، ټبر) دَرشته دارانوسره اوسیږي دَهغه په جائیدادباندي مشری ځوئی قبضه کړي. پلار په دي سخت خفه دي او وائي چه دده ځوئي اوټول زمینداران به دَ ده (ځوی) په نګرانئ کښي زماپه زمکه کښي هیڅ تصرف نه کوئ پلار ئي احتجاجاً دَډیري مودي نه دَزمکي پیداوارا اخستلونه هم انکار کړي دي او سرکار سره ئي مقدمه هم اچولي ده. په دي زمیندارانو کښي یومولوی صاحب هم زمکه په زمینداریٔ اخستلي ده. په هغه باندي یومقتدی اعتراض کوی چه دي دَخان صاحب دَمرضیٔ نه بغیر دَقابض ځویٔ په نګرانیٔ کښي چه کوم کرونده کیږی دادَشریعت په رڼاکښي ناجائز ده. اودَدي جرم مرتکب دَمونځ ورکولو اهل نه دي. نوسوال دا دي چه آیا واقعی دي امام صاحب پسي مونځ کول صحیح نه دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمدشفیق حقانی لیکچررفیډرل ګورنمنټ بوائزکالج پیبنور ۱۹۸۴/۷/۳۱ء

**الجواب**: که داخبره رښتیااوثابته وی نوپه دي زمکه کښي بغیراجازت نه تصرف کولو والا دَغصب اوظلم مرتکب دی. قال رسول الله ﷺ لایحل مال امرئ الا بطیب نفس منه رواه البیهقی فی شعب الایمان (۱). وفی شرح المجله ص ۶۱ جلد ۶ لایجوز لا حدان یتصرف فی ملک غیره الاباذنه، یادساتیٔ چه دکوم امام دینی حالت دَمقتدیانونه خراب وی نوهغه پسي مونځ کول مکروه دی ګنې په ړندو کښي یوسترګي والا بادشاه وی. یدل علیه مافی امامة البحر، (۲). وهوالموفق.

---

(۱) (مشکواة المصابیح ص ۲۵۵ جلد ۱ باب الغصب والعاریة الفصل الثانی)

(۲) قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والافلاکراهة کما لا یخفیٰ.
البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

**په حضرت تهانوی صاحب باندې دَبهتان لګونکی دې اقتداء اونکړیشی**

**سوال:** محترم مفتی صاحب دارالعلوم حقانیه اکوړه ختک السلام علیکم عرض دادې چه زمونږ په کلی کښې یو نوې امام صاحب راغلې دې چه خبرو خبرو کښې هغه اووئیل چه دَ(مولانا) اشرف علی(تهانوی رحمه الله) یو کتاب دې "ملفوظات یومیه" په هغې کښې ئې لیکلې دی چه یو سړی تپوس اوکړو چه دَمورسره زناکول څنګه دی؟ نوهغه په جواب کښې اووئیل،چه سړې خوتول په مورکښې دننه وی نوکه دَهغه لږه غوندې حصه ورِدننه شی نوڅه خبره ده" نومادَمولوی صاحب نه په دې خبره باندې احتجاج اوکړو نو مولوی صاحب اووئیل چه دې کنجرخودَحضور ﷺ هم توهین کړې دې" نودَهغه په کنجر وئیلو سره ماته غصه راغله اوماورته اووئیل چه تامولانااشرف علی صاحب ته کنجر اووې نوته پخپله هم داسې ئې.مولوی صاحب وائی چه زهٔ به کتاب اولیکل تاته اوښایم خوتراوسه ئې نه دې خودلې نوآیا دې مولوی صاحب پسې زمامونځ کیږی اوآیا دې امام ساتل جائز دی ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:فیض بیروټ راولپنډی..........رمضان المبارک ۱۳۸۹ھ.

**الجواب:** مونږ به د مولوی صاحب ډیرشکرګزارشوکه هغه داکتاب اوحواله اوښودله.اودَهغې نه پس به مونږپه تحقیقی جواب لیکلو باندې وس اولرو ددې نه مخکښې مونږ صرف دومره وئیلې شوچه"سبحانک هذابهتان عظیم"(۱). اویابه دا اووایو چه دَحضرت ملفوظاتو او مواعظوکښې داسې مضمونونه چه به هغې کښې دَ"عقل دعوی کونکو نااشناواقعې اودَهغې تردید شوې وی.نو کیدیشی چه مولوی صاحب تحریف کړې وی اوخپل ځان ئې په خطره کښې اچولې دې ددې مثال داسې دې لکه یوسړې اووائی چه الله تعالی فرمائی "لاتسمعوا لهذا القرآن والغوافیه (۲).اودغه شان نورهم.نوداصحیح ده چه دَالله

---

(۱) (سورة النور پاره:۱۸ رکوع:۸ آیت:۱۶)
(۲) (سورة حمٓ سجده پاره:۲۴ رکوع۱۸ آیت۲۶)

تعالی کلام دې لیکن دَالله تعالی مقصد دانه دې بهرحال داسې خبیث پسې اقتداء مه کوئ.(۱) یوصحیح العقیده امام پسې اقتداء اوکړئ اوتاچه کوم جواب ورکړې دې داد َبغض فی الله دَوجې نه دې بلکه که معامله هم داسې وی نوبیاداسې امام دلرې کولو او دَبې عزته کولو قابل دې.(۲).وهوالموفق

**چه دَ کوم امام بالغې لونړه په کوڅو کښې ګرځی دَ هغه دَ امامت حکم**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیو امام دوه بالغې لونړه دی چه په لسم اوشپږم کښې تعلیم حاصلوی په کوڅو کښې ګرځی اودَ شریعت مسئله ده چه دَجینکو دپاره دَنکاح پیغام راشی نو په نکاح ئې ورکوئ لیکن دې امام یو پیغام واپس هم کړلو.آیا دَداسې امام اقتداء به کولې شی که څان څان ته به مونځ کوی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:حسین احمد سرګودها........۱۹۷۸ء/۷/۳۰.

**الجواب:** دَڅان له مونځ کولو نه فاسق پسې اقتداء کول افضل دی خاص طورسره چه دَامام دینی حالت دَقوم نه ښه وی.

**کما فی شرح التنویر صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة وفی ردالمحتار ص ۲۵۲ جلد ۱ افاد ان الصلوٰة خلفها اولیٰ من الانفراد ولکن لا ینال کما ینال خلف تقی(۳). وهوالموفق**

---

**(۱) عن عبد الله بن مسعود رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ سباب المسلم فسوق وقتاله کفر. (الجامع الصحیح للمسلم ص۵۸ جلد ۱ کتاب الایمان)**

**(۲) قال العلامه ابن عابدین: واما الفاسق فقد عللوا کراهة تقدیمه بانه لا یهتم لامردینیه وبان فی تقدیمه للامامة تعظیمه وقد وجب علیهم اهانته شرعاً ولا یخفیٰ انه اذا کان اعلم من غیره لا تزول العلة فانه لا یؤمن ان یصلی بهم بغیر طهارة فهو کالمبتدع تکره امامته بکل حال بل مشی فی شرح المنیة علی ان کراهة تقدیمه کراهة تحریم لما ذکرنا قال ولذا لم تجز الصلاة خلفه اصلاعند مالک وروایة عن احمد. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۴ جلد۱ قبیل مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)**

**(۳) (الدرالمختار مع ردالمحتار ص۴۱۵ جلد ۱ قبیل مطلب فی امامة الامرد باب الامامة)**

## دَ حیات النبی ﷺ نه منلو والا او دَ درود والا روایتونوته ضعیف وئیلو والا امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم امام دَحیات النبی ﷺ په مسئله کښې اختلاف کوی او درودشریف والا روایتونوته ضعیف وائی هغه روایتونه چه په هغې کښې پیغمبر علیه السلام پورې دَصلوة اوسلام رسیدلو ذکر دې داسې امام مقرر کول دَشریعت په رنړا کښې څه حکم لری؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حاجی عبدالمنان چیف کمیسټ منګوره سوات.

**الجواب:** ظاهری طورسره داسړې سلفی اونجدی معلومیږی نوکه دا حقیقت وی بیاداسې کس باقاعده امام مقررول مکروه دی.(۱).

**لکونه مبتدعا خارجیا شدیداً علی المسلمین رحیماً علی الکفار مبیحا لقتل اهل الاسلام وتارکاً لقتل اهل الاوثان وفق قول الصادق المصدوق ﷺ (رواه البخاری) وهوالموفق**

## عاق شوې پسې مونځ کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو مولوی صاحب دې زمونږ امام دې دَخپل پلارسره ئې جګړه اوکړه پلارئې په یو وخت درې طلاقه اوغورځول چه داځوې زمانه عاق دې نوآیا اوس دَعاق شوی امام صاحب پسې مونځ کول صحیح دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: ډاکټرظهورمحمدواړی ضلع دیر........۳۱/۸/۱۹۸۳ء.

---

**(۱) ویکره امامة...... مبتدع ای صاحب بدعة وهی اعتقاد خلاف المعروف عن الرسول لا بمعاندة بل بنوع شبهة وکل من کان من قبلتنا لا یکفر بها حتی الخوارج الذین یستحلون دماء نا واموالنا الخ.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)**

**الجواب**: عاق پسې اقتداء مکروه ده.**(۱)** .لیکن هغه پسې اقتداء کول دَځان له مونځ نه افضل دی.(شامی وغیره).**(۲)** .وهوالموفق.

## بریلیانو پسې دَ اقتداء حکم

**سوال**:علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څه په کومه علاقه کښې اوسیږم هلته دَبریلیانو جمات دې سره دکوشش نه بعضې دَجماعت مونځونه پاتې کیږی.ځکه چه زمونږ دَخپل مسلک جمات لرې لرې دې دَ بریلیانو غلطې عقیدې دَچانه پټې نه دی آیا مونږ هغوی پسې اقتداء کولې شو؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مجیدالحسن اسلام آباد.......... ۱۹۹۰ء/۹/۷.

**الجواب**:دَځان له مونځ نه دَفاسق اوبدعتی په اقتداء کښې مونځ کول بهتر دی.(ردالمحتار).**(۳)** .وهوالموفق.

## دَ بریلوی فرقې په اقتداء کښې بل سوال

**سوال**: جواب ملاؤ شو خویوه خدشه بیاهم پاتې شوه هغه داچه که عقیدې مشرکانه وی مثلاً غیرالله عالم الغیب ،حاضرناظر،حاجتونه پوره کولو والا

---

**(۱)** لان العقوق من الکبائر وفی الحدیث عن عبد الله بن عمر و قال قال رسول اللهﷺ الکبائر الاشراک بالله وعقوق الوالدین الخ.

(مشکواة المصابیح ص۱۷ جلد ۱ باب الکبائر الفصل الاول)

**(۲)** قال العلامة الحصکفی رحمه الله: صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة قال ابن عابدین (قوله نال فضل الجماعة) افاد ان الصلاة خلفهما اولی من الانفراد.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۴۱۵ جلد ۱ مطلب فی امامة الامرد باب الامامة)

**(۳)**قال ابن عابدین:افاد ان الصلاة خلفهما اولیٰ من الانفراد.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۱۵ جلد ۱ مطلب فی امامة الامرد )

او مشکلاتو ختمولو والا ګڼړی نوبیابه څه کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مجید الحسن اسلام آباد

**الجواب**:ددې خاص فرقې واعظین اومقررین په شرک کښې اخته کیږی اوعوام په شرک کښې اخته کوی لیکن ددې فرقې علماء غالب طورسره تاویل کونکی وی مثلا دامنی چه پیغمبر علیہ السلام بشردې لیکن هغه نه بشرنه وائی بلکه نور دې او وائی چه دَعلمِ کلی نه کله استغراقِ حقیقی وی نوهغه دَالله تعالی سره خاص دې اودَپیغمبر علیہ السلام دپاره هغه علم کلی ثابت دې چه په هغې کښې استغراقِ عرفی موجود دې.کما فی قوله تعالی اوتیت من کل شئ (۱) واتینٰه من کل شئ سببا(۲) وفی قوله علیہ السلام فتجلی لی کل شئ ای قدر یلیق بالملك والرسول.اوحاضر ناظر مهمل ګرځوی نه محصوره للاحتیاط والتنزه.وهوالموفق

## دَ کنځلو کولو او بدو ردو وئیلو والا امامت

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو امام دې غریب هم دې او ناواده کړې هم دې کنځلې اوبدو ردو وئیلو والا هم دې،هغه پسې مونځ کول جائز دی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:غلام محی الدین مانسهره............۱۲/۱۰/۱۹۷۸ء.

**الجواب**: چه کله دَامام حالت دَقوم په نسبت سره ښه وی نودَهغه په امامت کښې کراهت نشته ځکه چه په ړندوکښې یو سترګې والا راجا وی.کما یشیر الیه کلام البحرص۳٤۹جلد۱وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم(۳).وهوالموفق

﴿۱﴾(پاره۱۹ سورةالنمل: آیت:۲۳)
﴿۲﴾(پاره:۱٦ سورة الکهف آیت: ۸۴)
﴿۳﴾(البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

## دَ نشو عادت سړی اقتداء کول مکروه تحریمی ده

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې دَنشو عادت دې دَچرسو وغیره نشه کوی او داسړې دَسنت عملونو نه هم لرې دې نو دَداسې کس دَاقتداء څه حکم دې ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمد یعقوب...... ۳/۳/۱۹۷۴ء.

**الجواب**: دَداسې امام اقتداء کول مکروہِ تحریمی ده اګرچه دَځان له مونځ نه داسې پسې مونځ کول افضل دی.(۱).

**کما فی منحة الخالق ذکر الحلبی فی شرح منیة المصلی ان کراهة تقدیم الفاسق والمبتدع کراهة التحریم (هامش البحر ص ۳۴۶ جلد ۱)﴿۲﴾. وهو الموفق**

## دَ زوجیت حقوق نه ادا کونکی او مقتدیانوکښې دَ انتشار خورونکی والا امامت

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیوسړی په نکاح کښې دوه ښځې دی یوه زړه دویمه نوې یعنی اوسنئ.حال دا دې چه دا نوې ښځه ورسره خوشحاله ده او دَهغې حقوق دَزوجیت هم ټول اداکوی اوپخوانئ ښځه ئې پلارکره تلې ده اودَزوجیت حقوق ئې هم نه اداکوی او په مینځ کښې آویزان ده.ددې نه علاوه دا امام صاحب په مقتدیانو کښې انتشارهم پیداکوی چه دَهغې په وجه ډیرو کسانو هغه پسې مونځ کول هم پریخودلو.نودَ تپوس والا مسئله داده چه کوم سړې حقوق العباد" باندې خپې ږدی اودَاتفاق او اتحاد په ځائې انتشار پیدا کوی ده پسې مونځ کول جائز دی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: غلام محمد ،تاج محمد متی آباد راولپنډی... ۲۲/شوال ۱۳۸۹ھ.

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین: فان امکن الصلوة خلف غیرهم فهو افضل والا فالاقتداء اولیٰ من الانفراد.

(ردالمحتار ص ۴۱۳ جلد ۱ قبیل مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

﴿۲﴾ (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

**الجواب:** که پخوانۍ ښځه پلارکره په خپله خوښه تلې وی او دا انتشار دَحق بیانولو په وجه باندې وی نو دَ دې امام په اقتداء کښې هیڅ کراهت نشته او که دا پخوانۍ ښځه ده په ظالمانه اندازکښې دکورنه ویستلې وی اودغه شان دا انتشارهم دَخپلې خوښې قائمولو باندې وی نو په دې صورت کښې ورپسې دَنیکانو اقتداء مکروه ده.بیاهم دَځان له مونځ نه بهتر ده.

**یدل علی جمیع ما ذکرت قوله تعالیٰ فان خفتم الا تعدلوا فواحدة﴿۱﴾ وقال رسول الله ﷺ اذا کانت عند الرجل امراء تان فلم یعدل بینهما جاء یوم القیامة وشقه ساقط اخرجه اصحاب السنن الاربع عن ابی هریرة رضی الله عنه مرفوعاً ﴿۲﴾ وفی الهدایه وغیرها واذا کان لرجل امرء تان حرتان فعلیه ان یعدل بینهما فی القسم﴿۳﴾، وفی الدرالمختار ولو ام قوما وهم له کارهون ان کانت الکراهیة لفساد فیه او لانهم احق بالامامة منه کره ذلک تحریماً لحدیث ابوداؤد لا یقبل الله صلاة من تقدم قوما وهم له کارهون وان هو احق لا والکراهیة علیهم، انتهیٰ ما فی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۲۲ جلد ۱ ﴿۴﴾ وفی الشرح الصغیر علی هامش الکبیر ص ۴۳۸ ویکره تقدیم الفاسق کراهة تحریم﴿۵﴾، فقط. وهوالموفق**

## په ناسته باندې رکوع سجده کونکی امام پسې اقتداء کول جائز دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیو مستند حافظ قران عالم دین دَایکسیډنټ په وجه ښی پنډۍ(کونډۍ) ماته شوه نوهسپتال والو

﴿۱﴾ (سورة النساء پاره: ۴ رکوع: ۱۲ آیت: ۳)

﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۲۷۹ جلد ۱ باب القسم الفصل الثانی)

﴿۳﴾ (هدایة ص ۳۲۸ جلد ۲ باب القسم کتاب النکاح)

﴿۴﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۱۳ جلد ۱ مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد باب الامامة)

﴿۵﴾ (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص ۴۷۵ فصل فی الامامة)

دَتولي بنېي نه پلستر(پټئ) تاؤکړي چه په رمضان کښې قبلي طرفته نیغه خپه کیږدی نو په ناسته پاندي دَتراویح مونځ ورکولي شی که نه ؟ اودَفرض مونځ متعلق هم اولیکئ چه زمونږ دپاره ورپسي په ولاړه باندي اقتداء جائز ده که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی:حافظ شیرمحمد کوئټه..............۱۹۷۸ء/۷/۳.

**الجواب**:که دا امام په ناستي سره رکوع او سجدي باندي قادر وی نوده پسي په فرضو او غیر فرضو کښي اقتداء جائز ده. کمافی شرح التنویروقائم بقاعد یرکع ویسجدلانه علیه السلام آخر صلاته قاعداً وهم قیام وابوبکر یبلغهم تکبیره(۱). وهوالموفق

## دَ تقلیدِ شخصی نه دَمنکر امامت جائز نه دي

**سوال**: یک ملاا ز وهابیه میگوید ودرکتاب خود نیزتحریرمیکند که تقلیدیکې ازچهارمذاهب وعمل بران کردن شرک است، وصاحبان مذاهب اربعه را مشرکان میگوید ،پس به معامله دنیاوی ودیگرکاروباروغیره در او جائز است مرمسلمان رایانه،ونیزامامت کردن این قسم وهابیه مرمسلمان را جائز است یا نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:مولوی فضل صمدانی بانډه ضلع چارسده...۲۹/صفر۱۴۰۲ھ.

**الجواب**: تقلیدشخصی مشروع است ومشروعیت اوازقرآن واحادیث وتعامل سلف و خلف ثابت است.(۲) البته تقلید شرکی حرام وشرک است (۳).چنانچه درقرآن مجید مصرح است ،پس کدام شخص که تلقید شخصی راشرک قرارکند

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۳۵ جلد ۱ قبیل مطلب فی رفع المبلغ صوته زیادة علی الحاجة باب الامامة)

﴿۲﴾ قال الله تعالیٰ: فاسئلوا اهل الذکر ان کنتم لا تعلمون (النحل) وقال الله تعالیٰ: ولو ردوه الی الرسول والیٰ اولی الامر منهم لعلمه الذین یستبطونه منهم (النساء) وقال رسول الله ﷺ اصحابی کالنجوم بایهم اقتدیتم اهتدیتم ، بیهقی، وقال البیقی حدیث مسلم یؤدی بعض معناه وقال ابن حجر صدق البیهقی (مرقات ص ۲۸ جلد ۱۱،۱۲ ) وهکذا قلدوا اهل المدینة لزید ن ثابت کما فی البخاری حیث سأل اهل المدینة ...... ( بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

و مقلدین رامشرکین قرارمے گرداند محرف قرآن ومنحرف ازسبیل مؤمنین است، اقتدائے اودرنمازناجائزاست.(۱). وترک موالات بااوواجب هست. وهوالموفق.

## دَ خیانت کونکی امام اقتداء مکروهِ تحریمی ده

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه دَیو امام صاحب خواته پیسيٰ امانت راځی اوهغه دغه امانت ادا نه کړو بلکه پخپله ئي خوړلو څکلو. چه په هغي مکمل ثبوت شته دي چه دا امام خیانت کردي نودي امام پسي مونځ کیږی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالحمید، عبدالرحمن مین بازارهری پور هزاره. ۱۹۷۷ء/۲/۷.

**الجواب:** دَخیانت ثابتیدلو په شرط ده پسي اقتداء مکروه تحریمی ده(۲)

(بقیه حاشیه) عن ابن عباس فی حق حائضة اذا صارت حائضة بعد طواف الزيارة فتنظر او ترجع الیٰ وطنها؟ فقال ابن عباس ترجع الى وطنها فقال اهل المدينة لا ناخذ بقولک وندع قول زيد بن ثابت كما فى البخارى باب اذا حاضت المرء ة بعد ما افاضت، وهكذا التعامل على تقليد الشخصى سلفاً خلفاً الى الآن ثابت وذاک حسنٌ لحديث ماراه المؤمنون حسناً فهو عند الله حسن رواه المحدثون موقوفا على ابن مسعود وجعله الامام محمد مرفوعا فى بلاغاته. (ازمرتب)

﴿۳﴾ قال الله تعالیٰ: واذا قيل لهم اتبعوا ما انزل الله قالوا بل نتبع ما الفينا عليه اباء نا او لوكان آباء هم لا يعقلون شيئاً ولا يهتدون. (البقره پاره: ۲ رکوع: ۵ آیت: ۱۷۰)

﴿۱﴾ قال الحصكفى: ويكره امامة...... مبتدع اى صاحب بدعة وهى اعتقاد خلاف المعروف عن الرسول لا بمعاندة بل بنوع شبهة وكل من كان من قبلتنا لا يكفر بها. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام)

﴿۲﴾ قال الحلبى: وفيه اشارة الى انهم قدموا فاسقا يأثمون بناء على ان كراهة تقديمه كراهة تحريم. (الشرح الكبير ص ۴۸۵ فصل فى الامامة)

لان الخيانة حرام (۱) والاقتداء بالفاسق مكروه تحريما صرح به الامام الحلبي في الشرح الكبير، البته د انفراد نه اقتدا بهتره ده.(۲) وهوالموفق

## دَ خنثیٰ مشکل دَ امامت حکم

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه خنثی مشکل پسې اقتداء اوهغه امام جوړول صحيح دی يا نه ؟ بينوا توجروا.

المستفتی: ارشادالله زيارت کاکاصاحب........۴/رمضان ۱۴۰۵ھ.

**الجواب:** که دَخنثی نه مراد عنين يعنی نامرده کس وی نودَهغه امامت صحيح دې اوکه دَخنثی نه مرادهغه کس وی چه دَهغه سړو والا او زنانو والا دواړه اندامونه وی اوپه دواړو باندې په يو وخت متيازې کوی نودَهغه امامت د سړو دپاره صحيح نه دی .کمافي الهنديه ص۸۵جلد۱ وامامة الخنثى المشكل للنساء جائزة..........وللرجل والخنثى مثله لا يجوز.(۳) .وهوالموفق.

## په تراويح کښې دَ نابالغه دَ امامت مسئله.

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په رمضان شريف کښې نابالغه حافظ پسې دَتراويح کولو څه حکم دې ؟ اوپه کلی کښې غيرحافظ بل امام هم شته دې ؟ بينوا توجروا.

المستفتی: عبدالرؤف ريام لوره ايبټ آباد.

---

**(۱)** عن عبد الله بن عمرو قال قال رسول الله ﷺ اربع من كن فيه كان منافقا خالصاً ومن كانت فيه خصلة منهن كانت فيه خصلة من النفاق حتى يدعها اذا اؤتمن خان واذا حدث كذب واذا عاهد غدر واذا خاصم فجر. متفق عليه.
(مشكوٰة المصابيح ص۱۷ جلد ۱ باب الكبائر وعلامات النفاق)

**(۲)** قال العلامة ابن عابدين: افاد ان الصلاة خلفهما اولىٰ من الانفراد.
(ردالمحتار ص۴۱۵ جلد ۱ مطلب في امامة الامرد باب الامامة)

**(۳)** (فتاویٰ عالمگيريه ص۸۵ جلد ۱ الفصل الثالث في بيان من يصلح اماما لغيره)

**الجواب**: نابالغه پسې د تراویح مونځ کولو سره ذمه نه فارغ کیږی کماف الدرالمختارص ۱ ٤ ٥ جلد ۱، (۱). لهذا بالغ امام پسې به اقتداء کولې شی او په اهون البلیتین " باندې به عمل کیږی. وهوالموفق.

## دَ بیعې مؤجل کولو والا امام صاحب امامت

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ امام صاحب دَ غلې موجوده قیمت مثلاً په شل روپې یومَن غنم دی اودغه امام صاحب ئې خلقو ته په دیرش (۳۰) یا پنځه دیرش (۳۵) روپې یومَن غنم په قرضو ورکوی او خلق ئې اخلی کال پس ورته پیسې ورکوی امام صاحب ورته بیع سَلَم وائی اوحال دا چه داخو سود دې، نودې امام پسې مونځ کول جائز دی ؟ بینوا توجروا

المستفتی: بنده محمدعبدالحمید عفی عنه........ ۲۵/۱۱/۱۹۷۳ء.

**الجواب**: دابیع سلم نه ده بلکه بیع مؤجل ده. اودازیاتوالې دَقرض په وجې سره دې دَقرض په عوض کښې نه دې نودابیع جائزه ده. صرح به مولاناالکهنوی فی مجموعة الفتاوی ناقلا عن شرح النقایه والبحروالنهرفلیراجع. ( ۲ ) . وهوالموفق.

---

**﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولا یصح اقتداء رجل بامرأة وخنثی وصبی مطلقا ولو فی جنازة ونفل علی الاصح. (الدرالمختار علی هامش ردلمحتار ص۴۲۷ جلد ۱ مطلب الواجب کفایة هل یسقط بفعل الصبی وحده باب الامامة)**

**(۲) علامه عبدالحی الکهنوی صاحب فرمائی**: دَ ثمن زیاتوالې دَنیتې دپاره بغیرشبهې نه صحیح دی. ددې ثبوت دَهدایه "دکتاب المرابحه" دَعبارت نه ښه معلومیږی په هدایه کښې دی. لاتری انه یزادفی الثمن لاجل الاجل "آیا تاته دامعلومه نه ده چه دَمودې په وجې سره قیمت کښې زیاتوالې کولې شی. اودغه شان عبارتونه نورو ډیروکتابونوکښې هم موجوددی. فصیح الدین هروی ح دَشرح وقایه په کتاب المرابحه کښې لیکلی "فی النسیئة یزادالثمن لاجل الاجل نسیه کښې دَمودې په وجې سره په قیمت کښې زیاتې کیدې شی. او په "نهرالفائق شرح کنزالدقائق کښې دی الاتری انه یزادفی الثمن لاجله. آیا تاته دانه ده معلومه چه دَمعلومې مودې په وجې سره په قیمت کښې زیاتوالې کولې شی. اوپه "بحرالرائق شرح کنزالدقائق "کښې دی:..... (باقی حاشیه په بل مخ)

## دَ بې مروته او بې غیرته سړی امامت مکروه دی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیو کلی خلقو تحریراً (کاغذ کښې لیکلو سره) داوعده او اقرار اوکړو چه و دونو کښې به حرام رسمونه، ډول ګډیدل، باجې وغیره هیچرې نه استعمالوی. که چا داسې اوکړل نو سل (۱۰۰) روپې به جرمانه وی. په دې تقریباً ۲۵ کالونه عمل راروان وو، اتفاقًا په کلی کښې یو سړی دَځوی په واده کښې ډول اووهلو او بدکارې بازاری ښځې ئې راوستلې او دَګډا پروګرام ئې جوړ کړو. او دکلی څو کسان ورسره هم ملاؤ شول دَجمات امام صاحب دَدوی په دې خلاف ورزئ کولو باندې دَتنبیه په طور

(بقیه حاشیه) لان للاجل شبهابالمبیع الاترى انه یزادفی الثمن لاجل الاجل ځکه چه دَاَجَل دَبیع سره مشابهت وی آیاتاته دانه معلومه چه دَمودې په وجې سره په قیمت کښې زیاتوالې کولې شی. او په دې کتاب کښې ئې یو کرښې پس لیکلې دی "الاجل فی نفسه لیس بمال ولایقابله شئ من الثمن حقیقة اذالم یشترط زیادة الثمن بمقابله قصدا ویزادفی الثمن لاجله اذاذکرالاجل بمقابلة زیادة الثمن قصدا" پخپله موده خوڅه مال نه دې او نه ددې په مقابله کښې څه ثمن شته، چه قصداً ئې ددې په مقابله کښې دَقیمت زیاتولو تصریح نه وی کړې. البته ددې په وجه په ثمن کښې زیاتوالې کیدیشی. چه کله دَزیاتوالی په مقابله کښې موده ذکر کړیشی. دې عبارتونو سره دَ معلول په معاملې جواز ښه طریقې سره معلوم شو. او داسې دَفقهې په ډیرو کتابونو کښې دی. او دَهدایه عبارت هم دَمخکښې عبارت سره مخالف نه دې. دَهدایې پوره عبارت دا دې "لوکانت له الف مؤجلة فصالحه علی خمس مائة حالة لم یجزلان المعجل خیرمن المؤجل وهوغیرمستحق بالعقد فیکون بازاءماحطه عنه وذلک اعتیاض عن الاجل وهوحرام، که دَیو څیز قیمت زر (۱۰۰۰) درهمه وی او قیمت په قلاره ورکوی او مشتری په پنځه سود باندې روغه اوکړه چه اوس به درکړم نو دابه جائز نه وی، ځکه چه تادی دَتاخیر نه بهتر دی. لیکن دَبیع منعقد کیدو پورې ددې کمی حق حاصل نه وو نو اوس به دَقیمت کمیدل دَتادئ په بدله کښې وی. او دَمودې نه فائده اخستل شول کوم چه حرام دی. ځکه چه دَمودې نه فائده اخستل یو څیز دې او دَمودې حق ثابت وو او په پنځه سوه باندې صلح کول اوس واقع شو. نو دَمودې نه فائده اخستل لازم شو چه هغه مال نه دې. نو په دې وجه دَحرمت حکم اوکړې شو. او دَقیمت زیاتوالی په صورت کښې دَمودې دپاره حقِ اجل دَمخکښې نه ثابت نه دې بلکه دَ اول نه دَنیتې هومره قیمت زیات شو. نو ددې په جائز کیدلو هیڅ کلام نه وی. (مجموعة الفتاوی ص ۱۲۴ جلد ۲ کتاب البیع)

دَمصلحت په امید دَدوی نه جداوالي اختیار کړو. دغي کسانو یوجاهل هم خیال سړي امام مقرر کړو. چه دَهغه په وجې سره په کلی کښې ډیرپریشانی جوړه شوه. اوس سوال دادې چه ددې کسانو داکار دَشریعت په رڼاکښې جائز دې که نه؟ اوکوم کس چه دَاولنی امام دَاجازت نه بغیر مقررشوي دې نودَ داسې بدعت غوښتونکی اوبې تعلیمه امام اقتدا صحیح ده که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: پیرسکندرشاه سوهلن هزاره...... ۱۹۷۴ء/۹/۱۲.

**الجواب**: دَدې کسانو داحرکت بالکل حرام دې (۱). لانهم خالفوا الشرع واخلفوا الوعد نعم التعزیرباخذ المال منسوخ. (۲). اودې بې مروته اوبې غیرته امام پسې اقتداء کول مکروه دی. (۳). وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن البزار الکردری: استماع صوت الملاهی کالضرب بالقضیب ونحوه حرام لقوله علیه السلام استماع الملاهی معصیة والجلوس علیها فسق والتلذذ بها کفر ای بالنعمة. (فتاویٰ بزازیه علی هامش الهندیه ص۳۵۹ جلد۶ الباب الثالث فیما یتعلق بالمناهی)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدین: وفی المجتبیٰ لم یذکر کیفیة الاخذ واری ان یاخذها فیمسکها فان أیس من توبته یصرفها الی مایری وفی شرح الآثار التعزیر بالمال کان فی ابتداء الاسلام ثم نسخ والحاصل ان المذهب عدم التعزیر باخذ المال.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۱۹۶ جلد۳ مطلب فی التعزیر باخذا المال)

﴿۳﴾ قال العلامه الحصکفی رحمه الله: ویکره امامة عبد وفاسق. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۱۳، ۴۱۴ جلد۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

## دَ منکراتو نه ډک "دعوتِ ولیمه" کښې دَشریک کیدونکی امام اقتداء

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوځل دَجمعې مونځ نه پس دَ کلی والو خلقو اتفاق اوکړو چه کوم سړې په واده کښې ځانې بجانې راولی بدکارې ښځې ډانس دپاره راولی نودَهغه په دعوتِ ولیمه کښې به شرکت نشی کولې.بیاروستو یو سړی داسې اوکړل چه په هغې کښې ډیرخلق شریک نه شول لیکن بعضې خلق پکښې شامل شول اودَهغوی په وجه امام صاحب هم دعوتِ ولیمه کښې شریک شو ،اوس خلق دې امام پسې مونځ نه کوی نو دَداسې کس دَامامت څه حکم دې ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:مولوی گل زمان راولپنډی .......۱۹۷۸ء.

**الجواب**:دې امام کښې دینی حمیت اوغیرت نشته اوچاچه شرکت نه دې کړې په هغوی کښې دینی حمیت اوغیرت شته دې (۱).که دا امام په دې خپل کار باندې پښیمانه وی(۲) نو خلقو باندې ضروری ده چه مونځ ورپسې کوی اوخپل ځان دې دَامامت اوجماعت دَثواب نه نهٔ محرومه کوی.(۳)

وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامه حصکفی: دعی الی ولیمة وثمة لعب او غناء قعدو اکل لو المنکر فی المنزل فلو علی المائدة لاینبغی ان یقعد بل یخرج معرضا لقوله تعالیٰ فلا تقعد بعد الذکریٰ مع القوم الظالمین فان قدر علی المنع فعل والا یقدر صبر ان لم یکن ممن یقتدی به فان کان مقتدی ولم یقدر علی المنع خرج ولم یقعد لانه فیه شین الدین الخ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۲۵ جلد۵ کتاب الحظر والاباحة)

﴿۲﴾ عن عبد الله بن مسعود قال قال رسول اللهﷺ التائب من الذنب کمن لا ذنب له رواه ابن ماجه والبیهقی فی شعب الایمان...... وفی شرح السنة روی عنه موقوفا قال الندم توبة والتائب کمن لا ذنب له.

(مشکواة المصابیح ص ۲۰۶ جلد ۱ باب الاستغفار)

﴿۳﴾ عن ابن عمر قال قال رسول اللهﷺ صلوٰة الجماعة تفضل صلوٰة الفذ بسبع وعشرین درجة متفق علیه. (مشکواة المصابیح ص ۹۵ جلد ۱ باب الجماعة وفضلها)

## دَ ساحر جادوګر او شرکی عقیدو ساتلو والا دَ امامت حکم

**سوال:** علمائي دين لاندينو مسئلوباره کښې څه فرمائي:(۱).دکوم سړی چه عقيده صحيح نه وی جادوګروی په بعضي کارونوکښې دَالله تعالی سره شريک هم جوړوی دَهغه دَامامت څه حکم دې؟ (۲).که يو مولوی صاحب دَ ستورو په ذريعې سره دَغيبو خبرې کوی جادوهم کوی نوآيادَهغه امامت صحيح دې؟ (۳).يوامام صاحب دَيوخاندان دَماشومانو جنازه اوکړه خوچه کله ددغې جينکو نيکه مړشو نودَپارټۍ بازئ په غصه کښې راغې اوجنازه ئې اونکړه.آيادَهغه دَ متعصبانه رويئے په وجه دده امامت صحيح دې؟ بينوا توجروا

المستفتی:لياقت علی راوالپنډی.

**الجواب:**(۱) دَمشرک اوجادوګرامام پسې اقتداء کول باطل او کالعدم ده.(۱). البته صرف تهمت چه ثابت نه وی دَاوريدلو قابل نه دې.(قواعدفقه). (۲).سحر او جادو چه ترڅوپورې کفرته نه وی رسيدلې نودَهغې حکم په اولنی جواب کښې ليکلې شوې دې.(۲) اوچه کوم جادودکفرحدته رسيدلې وی نوددې عامل امام پسې اقتداء کول مکروه تحريمی دی(کبيری)(۳) (۳).مولوی صاحب دَکومو وجوهاتوپه بناباندې دَجنازې مونځ نه دې کړې دَهغې وضاحت ضروری

---

﴿۱﴾قال العلامه حصکفی : وان انکر بعض ما علم من الدين ضرورة کفر بها کقوله ان الله تعالیٰ جسم کالاجسام وانکاره صحبة الصديق فلا يصح الاقتداء به اصلا فليحفظ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۱۵ جلد ۱ قبيل مطلب فی امامة الامرد)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدين: فهذه انواع السحر الثلاثه قد تقع بما هو کفر من لفظ او اعتقاد او فعل وقد تقع بغيره کوضع الاحجار وللسحر فصول کثيرة فی کتبهم فليس کل ما يسمی سحرا کفراً اذ ليس التکفير به لما يترتب عليه من الضرر بل لما يقع به مما هو کفر کاعتقاد انفراد الکواکب بالربوبية او اهانة قرآن او کلام مکفر ونحو ذلک ملخصا. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۴ جلد ۱ مطلب السحر انواع)

﴿۳﴾ قال العلامة الحلبی: کذا فی فتاویٰ الحجة وفيه اشارة الی انهم قدموا فاسقا يأثمون بناء علی ان کراهة تقديمه کراهة تحريم. (الشرح الکبير ص ۴۷۵ فصل فی الامامة )

دي چه مونږ په فتوى وركولو باندې قادر شو. وهو الموفق.

## دَتوبې كولو نه پس دَفاسق په اقتداء كښې څه حرج نشته

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه په دروغه قسم خوړلو والا پسې مونځ كيږى يا نه ؟ بينوا توجروا.

المستفتى: رحمت دين سنگ جانى راولپنډى........ ١٩٧٢ء/٩/١٨.

**الجواب:** په دروغه قسم خوړلو والا سخت گناهگار دې.(١) ليكن دَتوبې كولو نه پس ورپسې اقتداء كولو كښې څه حرج نشته. وهو الموفق.

## په دروغه قسم كولو نه توبه ويستلو نه پس امامت مكروه نه دې

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه يو سړې په دروغه قسم اوخوړلو بياهغه سړى توبه هم اوكړه اوكفاره ئې هم ادا كړه نو دَتوبې اوكفارې نه پس ئې امامت جائز دې كه مكروه ؟ بينوا توجروا.

المستفتى: سيد غلام حيدر شاه سورجال راولپنډى......... ١٩٦٩ء/١١/٢٧.

**الجواب:** يمين غموس گناهِ كبيره ده.(٣) داسړې چه كله توبه اوكړى نو اقتداء

---

﴿١﴾ عن عبد الله بن عمرو قال قال رسول الله ﷺ الكبائر الاشراك بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس رواه البخارى وفى رواية انس وشهادة الزور بدل اليمين الغموس متفق عليه. (مشكواة المصابيح ص١٧ جلد١ باب الكبائر وعلامات النفاق)

﴿٢﴾ وعن عبد الله بن مسعود قال قال رسول الله ﷺ التائب من الذنب كمن لا ذنب له. (مشكواة المصابيح ص٢٠٦ جلد١ باب الاستغفار والتوبة الفصل الثالث)

﴿٣﴾ عن عبد الله بن عمرو قال قال رسول الله ﷺ الكبائر الاشراك بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس رواه البخارى وفى رواية انس وشهادة الزوربدل اليمين الغموس متفق عليه. (مشكواة المصابيح ص١٧ جلد١ باب الكبائر وعلامات النفاق)

وریسې مکروه نه ده(۱) په دې شرط چه دَفسق نورکارونه پکښې نه وی.وهوالموفق

## دَ مودودی جماعت سره تعلق ساتلو والا پسې دَ اقتداء حکم

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم سړې یامولوی صاحب دَ مودودی جماعت حمایت کونکې وی هغه پسې اقتداء جائز ده که نه نه ؟ اولړې کول ئې پکار دی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:فیض محمد جامعه اسلامیه اکوړه خټک.....۱۰/جون ۱۹۷۰ء.

**الجواب**:(۱) چونکه د مودودی صاحب په نزد په ګنده معاشره کښې حدود جاری کول ظلم دې او مودودی صاحب دَقرآن دَاطلاق مقید کول په خپلې رائې سره کړی دی.اوپه کومو امورو سره چه دَظلم انسداد کیږی هغې ته ئې ظلم وئیلې (۲).دغه شان دَبعضې پیغمبرانوعلیهم السلام اوبعضې صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعین او اکثرو علمائې کرامومتعلق ئې ګستاخانه خبرې کړې دی. (۳).خصوصاً دَخلافت وملوکیت" په بعضې بابونوکښې ئې بې سنده تاریخی واقعاتو ته داسې ترتیب ورکړې چه دَهغې تاثرپه صحابه کرام باندې بدګمانه کیدل دی.

**لطیفه**: مودودی صاحب دګنده معاشرې دَوجې نه اصلاحی عمل یعنی حدود جاری کولو ته ظلم وئیل جائز وائی اودَخلافت وملوکیت دَ ګنده ترتیب ګنده تاثر په وجه ددې کتاب مطالعې اوخورولو ته ظلم نه وائی په دې بې انصافئ باندې تعجب دې ؟

(۴).تراوسه پورې دَمودودی صاحب مسلک هم متعین نه دې او نه دَهغه په نزد دَ کفرمدارمتعین دې ددې وجه نه کله کله هغه کفاروته چه دَدین دَضروریاتو نه منکروی دکفراواسلام په مینځ معلق وائی.اوکله لکه دَ خوارجو پشان دَحج پریخودونکی باره کښې دکافرکیدلوعقیده ساتی.

---

(۱) عن عبد الله بن مسعود قال قال رسول الله ﷺ التائب من الذنب کمن لا ذنب له رواه ابن ماجة والبیهقی فی شعب الایمان...... وفی شرح السنة روی عنه موقوفا قال الندم توبة والتائب کمن لا ذنب له. (مشکواة المصابیح ص۲۰۶ جلد ۱ باب الاستغفار والتوبة)

ددې وجوهاتو په بناء په مودودی باندې د کفر خطره ده لهذا هغه پسې اقتداء نه کول ضروری دی او دَجماعتِ اسلامی په افرادو کښې چه څوک دَ مودودی په رنګ کښې رنګ دی دَهغوی هم دا حکم دې. او کوم کسان چه مودودی صاحب سره په سیاسی امورو کښې شریک وی او په مداهنت کښې مبتلا وی یعنی نه دَمودودی صاحب نه انکارِ کوی او نه ترنه جدا کیږی. بلکه مودودی صاحب پسې خبرې کونکی سره په جنګ کیږی نو هغوی پسې اقتداء نه کول ضرورد ی. او چه کوم افراد داسې نه دی نو دَهغوی حکم آسان دې خو داسې کسان تر اوسه زما په علم کښې نه دی راغلې.

قال رسول اللهﷺ من قال فی القرآن برأیه فلیتبوأ مقعده من النار، رواه الترمذی ﴿۱﴾ ،وقال رسول اللهﷺ من وقر صاحب بدعة فقد اعان علی هدم الاسلام رواه البیهقی ﴿۲﴾ وقال رسول اللهﷺ لتتبعن سنن من قبلکم شبراً بشبر وذراعاً بذراع ﴿۳﴾قلت ومن سننهم عدم اجراء الحدود لمصالح دنیویة، وقال الله تعالیٰ ولا ترکنوا الی الذین ظلموا ﴿۴﴾ وقال علیه السلام من تشبه بقوم فهو منهم ﴿۵﴾وقال الله تعالیٰ ودوا لو تدهن فیدهنون ﴿۶﴾ وقال علیه الصلاة والسلام مثل المدهن فی حدود الله والواقع فیها مثل قوم استهموا سفینة الحدیث رواه البخاری ﴿۷﴾ وقال الفقهاء والمتکلمون ویعزل به (الفسق) الا لفتنة ﴿۸﴾ قلت فامام الحیی یعزل باولیٰ فافهم وللتفصیل موضع آخر. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (مشکواة المصابیح ص ۳۵ جلد ۱ کتاب العلم الفصل الثانی)

﴿۲﴾ (مشکواة المصابیح ص ۳۱ جلد ۱ باب الاعتصام بالکتاب والسنة الفصل الثالث)

﴿۳﴾ (مشکواة المصابیح ص ۴۵۸ جلد ۲ باب تغیر الناس الفصل الاول)

﴿۴﴾ (سورة هود پاره: ۱۲ رکوع: ۱۰ آیت ۱۱۳)

﴿۵﴾ (مشکواة المصابیح ص ۳۷۵ جلد ۲ کتاب اللباس الفصل الثانی)

﴿۶﴾ ( سورة القلم پاره: ۲۹ رکوع: ۳ آیت: ۹)

﴿۷﴾ (الجامع الصحیح للبخاری ص ۳۶۹ جلد ۱ باب القرعة فی المشکلات کتاب الشهادات)

﴿۸﴾ (الدر المختار علی هامش ردلمحتار ص ۴۰۵ جلد ۱ باب الامامة)

## دَ درود شریف په خوشی آوازی سره دَ وئیلو تشبیه راګ سره دَورکونکی سړی امامت

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه يو مولوی صاحب وائی چه صلوٰة وسلام دَراګ په شکل کښې وئيل حرام دی "راګ خوپه ډول وغيره سره کيږی اوصلوٰة وسلام خوپه ولاړه يا ناسته په سريلی آواز کښې وئيلې کيږی. نوداسې الفاظ ويونکی مولوی صاحب دپاره څه حکم دې ؟آيا هغه پسې مونځ کول صحيح دی ؟ بينوا توجروا.

المستفتي: صوفی محمدفيروزخان کوه مری بودريا.....۱۵/دسمبر۱۹۷۹ء.

**الجواب:** دَدې مولوی صاحب الفاظ صحيح دی البته دکومې مادې اومثال متعلق چه ئې دا الفاظ وئيلی دی په هغې باندې دا الفاظ منطبق نه دی. نو دا مولوی صاحب دَامامت لائق دې اودَ ملامت لا ئق دې خولائق دَعزل عن الامامت" نه دې .وهوالموفق.

## دَ فاسق دَ کور نه دَ خوراک والا امامت

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه يو امام صاحب دَداسې سړی دَ کورنه خوراک کوی چه هميشه مونځ نه کوی ،بدمعاش اوظالم دې په هرناجائز کارکښې مخکښې وی نو دَدې خوړونکی امام امامت صحيح دې يا نه ؟ بينوا توجروا.

المستفتي: يومسلمان رور دَکوهاټ ........۱۹۷۸ء/۷/۲۹.

**الجواب:** حرام خوراک دَفسق باعث دې.(۱) ليکن دکافريافاسق دکورنه

---

(۱) قال العلامه ابن عابدين: (قوله وفاسق) من الفسق وهو الخروج عن الاستقامة ولعل المراد به من يرتكب الكبائر كشارب الخمر والزانی وآكل الربا ونحو ذلك.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۲ جلد ا قبيل مطلب البدعة خمسة اقسام)

خوراک کول فاسق کونکې نه دي. لان النبی علیه السلام اجاب دعوة یهودخیبر(۱).
وکان یوسف علیه السلام یاکل من بیت العزیز (۲). وهوالموفق.

(۲) الجواب: دَامامت صحیح والی دپاره دَمونځ پابندی کونکی سړی خوراک شرط نه دي. هیڅ یو امام هم داشرط نه دي مقرر کړي. وهوالموفق.
۱۹۷۸ء۱۹۷

## دَ غل سړی دَ امامت مسئله.

سوال: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیوجمات امام صاحب دَغلا کولو عادی دې او دَدې خپل خراب کارنه منع کیږی هم نه. ډیرپوهه کړې شو لیکن سمیږی نه. دغه شان خپلې جامې هم نه وینځی خپې ابله خپوسره کړځی، اودغه شان جمات ته داخل شی اومونځ ورکوی، چه دَهغې په وجه دَمقتدیانو نفرت کیږی، آیا داسې کس دَامامت نه معزول کول جائز دی؟ بینوا توجروا
المستفتی: وحید هیئر کټنګ..........۱۹۷۳ء/۵/۷.

الجواب: که دا امام صاحب توبه ګار کیږی نه او دَده نه بهتر امام موندلې کیږی، نو دَقوم مشرانو دپاره دَده معزول کول جائز دی. ونظیره الامام الا کبر (۳). وهوالموفق.

---

(۱) عن جابر ان یهودیة من اهل خیبر سمت شاة مصلیة ثم اهدتها لرسول اللهﷺ فاخذرسول اللهﷺ الذراع فاکل منها واکل رهط من اصحابه معه فقال رسول اللهﷺ ارفعوا ایدیکم وارسل الی الیهودیة فدعاها فقال سممت هذه الشاة الخ رواه ابوداؤد والدارمی. (مشکواة المصابیح ص ۵۴۱ جلد۲ باب فی المعجزات)

(۲) قال الله تعالیٰ: وقال الذی شتره من مصر لا امرأته اکرمی مثواه عسی ان ینفعنا او نتخذه ولداً، وکذلک مکنا لیوسف فی الارض ولنعلمه من تأویل الاحادیث والله غالب علی امره ولکن اکثرالناس لا یعلمون. (سورة یوسف پاره۱۲، رکوع ۱۳ آیت: ۲۱)

(۳) قال ابن عابدین الشامی: وعند الحنفیة لیست العدالة شرطا للصحة فیصح تقلید الفاسق الامامة مع الکراهة واذا قلد عدلا ثم جار وفسق ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د علماؤ خلاف چغل خوری کولو والا کس امامت

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه څمونږ ځائي کښي يو امام صاحب دي هغه د پيپلزپارټئ يو وزيرته خط اوليکلو چه څه ستاسو حمايت کونکي يم او دلته دوه مولوی صاحبان دی هغوی د بي نظيربهټو خلاف تقريرونه کوی دوی ضلع بدرکړه اوحال دادي چه دي دواړو مولوی صاحبانو دا کار بالکل نه دي کړي آيا دي چغل خور مولوی صاحب پسي اقتداء کول جائزدی؟ بينوا توجروا

المستفتی: محمد رحمان معرفت عثمان ټريډنګ کمپنی بټ خيله

**الجواب:** صرف دخط په وجه باندي څوک مُتهَم کول دقانون نه خلاف قاعده قدم اوچتول دی(۱)،الا عند البينة اوالاعتـراف،يا کوم مولوی ياخلق چه ښکاره په ښکاره د پيپلزپارټئ او نيشنل پارټئ وغيره حمايت کونکي دی نوهغوی ته کومه سزا ورکړي شوه؟ فافهم. وهوالموفق

## د سوشلسټ امام د اقتداء حکم

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه د سوشلزم عقيدي ساتلو والا امام پسي د مونځ څه حکم دي؟ بينوا توجروا

المستفتی:محمد اقبال تاروتنګی چارسده

**الجواب:** چاچه سره د پوهي نه ددي نظريي امداد کړي وی نوهغه

---

(بقيه حاشيه)لا ينعزل ولكن يستحب العزل ان لم يستلزم فتنة......(قوله ويعزل به) ای بالفسق لو طرأ عليه والمراد انه يستحق العزل كما علمت آنفا ولذا لم يقل ينعزل. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۰۵ جلد۱ باب الامامة)

(۱) عن ابی هريرة قال قال رسول اللهﷺ اياكم والظن فان الظن اكذب الحديث الخ. (مشكواة المصابيح ص۴۲۷ جلد۲ باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

## دچا په قسم د اعتمادنه کونکی اوهغه ته کنځلې کونکی سړی امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو دینداره اوپه شرع برابرسړی د قرآن شریف تلاوت کولوچه د جمات امام صاحب راغې اوهغه ته ئې څه اوونیل نوهغه سړی قرآن شریف بند کړو اوجواب ئې ورکړوچه کوره څما په لاسونو کښې کلام الله شریف دې څه قسم خورم چه نه ما داخبره کړې اونه ما داکارکړې دې.نوامام ورته جواب کښې اووې چه ته کافرئې. منافق ئې. ابلیس ئې.ستاپه دې خبره هم څما اعتماد نشته.نوددې امام مذکوره څه حکم دې؟د امامت قابل دې یا نه؟د اسلام د کړښې نه بهر دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالمنان چمیالی هزاره..... ۱۳ نومر ۱۹۷۴ھ

**الجواب:** ددې امام د مخکنی سړی په قسم اعتماد نشته اوپه کلام الله شریف باندې باقاعده اعتماد لری لهذا داامام کافرشوې نه دې البته د کنځلو په وجه فاسق شوې دې.قال رسول الله ﷺ سباب المسلم فسوق (رواه مسلم) (۱) ده پسې د نیکانو خلقو اقتداء مکروه ده.کما صرح بــه فی امامــة البحـر (۲) وهوالصواب

## د والی بال او کبډی کولو والا امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یوامام ځوئې د نورلسو(۱۹) کالودې،د مونځ روژې پابند دې صورت اوسیرت ئې د شریعت اوسنت موافق دې.کله کله امامت هم کوی لیکن دې هلک کښې دا عیب دې چه همزولوسره والی بال اوکبډی کوی او هغوی سره د مهیانو ښکارهم کوی.

---

﴿۱﴾ (الصحیح المسلم ص۵۸ جلد ۱ باب قول النبی ﷺ سباب المسلم فوق وقتاله کفر)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن نجیم: فالحاصل انه یکره لهؤلاء التقدم ویکره الاقتداء بهم کراهة تنزیهیة فان امکن الصلاة خلف غیرهم فهو الفضل والا فالاقتداء اولیٰ من الانفراد. (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

اوس بعضې شرپسند او غيرمتشرع كسان دې دريو وارو لوبو ته ناجائز او حرام وائى نو آيا ددې هلك امامت جائزدې؟ دغه شان كله كله دغه خلق ددې هلك بې عزتى او توهين هم كوى نو آيا ددې هلك بې عزتى او توهين د امام بې عزتى اوتوهين نه دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبدالعظيم......١٩٧٤ء١٤١٠١

**الجواب**: (١) داخبره دې واضحه وى چه ښكاركول مباح دى. كما يدل عليه القرآن(١) والاحاديث (٢) وصرح به الفقهاء الكرام (٣) اوپه كبډى كولو كښې هم څه باك نشته كله چه دكشف عورت نه خالى وى. البته والى بال لوبه كول مكروه ده ځكه چه دا دانګريزانو ايجاد شوې لوبه ده. اوپه دې كښې چه كوم منفعت دې هغه په نورو ذريعو سره هم حاصليږى، اوكشف عورت وغيره ددې دعام لوازماتو نه دى. لهذا ددې نه اجتناب ښه دې. بهرحال د اقتداء د صحت نه مانع نه دې. (٢) دهرمسلمان بې عزتى اوتوهين ناجائزدى خصوصاً چه كله حقدار وى يا دحقدار اولاد وى.

**لحديث: المسلم اخوالمسلم لا يظلمه ولا يخذله ولا يحقره بحسب امرأ من الشران يحقر اخاه المسلم، وكل المسلم على المسلم حرام دمه وماله وعرضه رواه مسلم ﴿٤﴾. وهو الموفق**

## بغير اجرت نه مړو ته غسل وركولو والا امامت

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه ديو لوئې جمات پيش امام دې نيک اومتقى انسان دې ليكن دامامت سره سره دښار مړوته غسل

---

﴿١﴾قال الله تعالىٰ: احل لكم صيد البحر وطعامه متعا لكم وللسيارة وحرم عليكم صيد البر ما دمتم حرما واتقوا الله الذى اليه تحشرون. (سورة المائدة پاره: ٧ آيت: ٩٦ ركوع:٣)

﴿٢﴾(مشكواة المصابيح ص٣٥٧ جلد٢ كتاب الصيد والذبائح)

﴿٣﴾قال الحصكفى الصيد هو مباح...... الالمحرم فى غير الحرم او للتلهى الخ. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص٣٢٨ جلد٥ كتاب الصيد)

﴿٤﴾ (الصحيح المسلم ص٣١٧ جلد٢ باب تحريم ظلم المسلم الخ)

هم ورکوی لیکن داکار د پیشي په طور په اجرت او مزدورئ باندې نه کوی آیا دده په اقتداء کښې کراهت شته؟ بینوا توجروا

المستفتی حاجی نواب خان باړه مارکیټ نوشهره.....۱۹۸۷ء\۱۰\۱۱\۲۱

**الجواب:** کوم امام چه د مړو لامبول د معاش ذریعه جوړه کړی نوهغه پسې اقتداء بغیر دځه کراهت نه جائزده، ځکه چه دې امام کښې اګرچه خلاف مُروت یو کارموجود دې لیکن قوم اکثر طورسره په فسق او فجوروکښې مبتلاوی او امام هغه دمعاش ذریعه نه جوړوی نو ده پسې به اقتداء په طریقه اولی مکروه نه وی. (۱) وهوالموفق

## نسواری امام پسې اقتداء

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم امام د نسوارو عادتی وی آیا هغه پسې اقتداء صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: شاه مست دره آدم خیل .....۱۹\مارچ ۱۹۷۵ء

**الجواب:** د تمباکو استعمال مباح دې نو د هغې استعمال د امامت سره ټکراؤ نه خوری.

**کما فی ردالمحتار ص ۲۰۶ جلد ۵ فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولااضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل فی الاشیاء الاباحة (۲). وهوالموفق**

## د حرامی امامت خلاف اولی دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم کس دبل چا په ښځې قبضه اوکړی او ناجائز تعلقات ورسره اوساتی او بیا ترینه بچې پیدا

---

**(۱)** قال العلامه ابن نجیم رحمه الله: وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتدا بهم عند وجود غیرهم والافلا کراهة کما لا یخفیٰ.

(البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

**(۲)** (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۳۲۶ جلد ۵ کتاب الاشربة)

شی او هغه غټ شی او امام جوړکړې شی نو آیا د هغه اقتداء جائزده؟ بینوا توجروا
المستفتی: فضل معبود پنج پیر صوابی.....۱۹۷۲ء/۱/۹

**الجواب**: که دا امام دقوم په نسبت سره پوهه وو نو دده په امام جوړولو کښې هیڅ حرج نشته ګنې نو خلاف اولی دې.

**فی الدرالمختار ویکره تنزیهاً امامة عبد وولد الزنا هذا ان وجد غیرهم (ای من هو احق بالامامة منهم شامی) والا فلا کراهة (هامش ردالمحتار ص۵۲۵ جلد۱)﴿۱﴾ وهوالموفق**

## د ضروریات دین نه د منکر امامت صحیح نه دې

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یوسړی عقیده ده چه نبی کریم ﷺ حاضر اوناظر دې، مختارکل اوغیب دان دې. بشرنه دې بلکه نوردې، او اولیاء الله نفع اونقصان رسولې شی،دهغوی په نوم نذر او منختې،دهغوی نه مدد غوښتل، او دڅه حاجت دپاره ئې په مزار باندې دیګ پخول صحیح دی.آیا داسې کس پسې مونځ کول صحیح دی؟ بینوا توجروا
المستفتی: عبدالغفور غورغشتی کیملپور....۱۹۷۲ء/۸/۱۷

**الجواب**: بشرط صدق مستفتی دا سړې د ضروریات دین نه د انکار په وجه کافردې په ده پسې اقتداء صحیح نه ده.﴿۲﴾ وللتفصیل موضع آخر. وهو الموفق

---

**﴿۱﴾( ردالمحتار مع الدرالمختار ص۴۱۵ جلد۱ قبیل مطلب فی امامة الامرد باب الامامة)**

**﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وان انکر بعض ما علم من الدین ضرورة کفر بها کقوله ان الله تعالیٰ جسم کالاجسام وانکاره صحبة الصدیق فلایصح الاقتدا به اصلا. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۱۵ جلد۱ مطلب فی امامة الامرد باب الامامة)**

## هغه شافعی امام چه د وینې وتلو نه اودس کوی د هغه پسې د حنفی مقتدی مونځ صحیح دې

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم شافعی المسلک امام د وینې وتلو نه اودس نه کوی آیا د حنفی کس هغه پسې مونځ صحیح دې ځکه چه دهغوی په وینې وتلو سره اودس نه ماتیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حمید گل مهمندی فاضل حقانیه... ۱۱۲\جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب**: کوم شافعی المذهب امام چه د فرضو خیال ساتی مثلاً د پوزې نه وینې وتلو نه پس اودس کوی(۱) نو هغه پسې اقتداء صحیح ده.

ما فی ردالمحتار ص۵۲۷ جلد ۱ والذی یمیل الیه القلب عدم کراهة الاقتداء بالمخالف مالم یکن غیر مراع فی الفرائض لان کثیراً من الصحابة والتابعین کانوا ائمة مجتهدین وهم یصلون خلف امام واحد مع تباین مذاهبهم انتهیٰ﴿۲﴾. قلت فعلی التفحص والتجسس لا نهم تعاملوا به. وهوالموفق

## د خونی بواسیرو بیمارئ والا د امامت حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې د خونی بواسیرو ناجوړه دې د علاج نه پس ئې وینه راتلل بند شو لیکن کله کله اوبه شان راځی خو داسې نه چه په جامو باندې اولګی، نو داسې کس امامت کولې شی که نه؟ آیا دده اقتداء صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمدعمر چهوتی روډ کیملپور ۱۱۷\جمادی الثانی ۱۳۸۹ء

**الجواب**: چه کله د مونځ د ابتداء نه دمونځ ختمیدلو پورې څه پلیتی وینه،

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین: والمعنی انه یجوز فی المراعی بلا کراهة وفی غیره معها لم مواضع المهمة للمراعاة ان یتوضأ من الفصد والحجامة والقئی والرعاف ونحو ذلک. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۶ جلد ۱ مطلب فی الاقتداء بشافعی......)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۷ جلد ۱ مطلب اذا صلی الشافعی قبل الحنفی الافضل الصلاة مع الشافعی ام لا باب الامامة)

اوبه بهرشوې نه وی نودې سړی دپاره امامت صحیح دې.(یدل علیه مافی الدرالمختار ص٢٧٢ جلد١) ﴿١﴾ وهو الموفق

## د ,,صراط,, په ځائې ,,سراط,, وئیلو او د جینې په وادۀ باندې د پیسو اخستووالا امامت

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (١) د ,,صراط المستقیم,, په ځائې د ,,سراط المستقیم,, وئیلو والا د اقتداء څه حکم دې؟ (٢) کوم امام چه د خپلې لورپه وادۀ باندې د خاوند دکوروالا نه پیسې اخلی دهغه د اقتداء څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله پبی.........١٣٩٨\٢\١٣ھ

**الجواب**: (١) په دې صورت کښې اقتداء صحیح ده خومشق ورته ضروری دې.﴿٢﴾ (٢) چونکه امام د قوم په نسبت سره بهتردې لهذا په ړندوکښې یو سترګې والا بادشاه کیدو په وجې سره ده پسې اقتداء صحیح ده.﴿٣﴾ وهو الموفق

## د قاتل د امامت حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه پلار خپل ځوئې په ګولئ سره زخمی کړو په زخمی حالت کښې ځوئی بیان ورکړو چه ځه خپل

﴿١﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولا طاهر بمعذور هذا ان قارن الوضوء الحدث او طرا علیه بعده وصح لو توضا علی الانقطاع وصلی کذلک کاقتداء بمفتصد امن خروج الدم.(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص٣٢٨ جلد١ قبیل مطلب فی الا لثغ باب الامامة)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله:(قوله الا ما یشق) قال فی الخانیة والخلاصة الاصل فیما اذا ذکر حرفا مکان حرف وغیر المعنی ان امکن الفصل بینهما بلا مشقة تفسد والا یمکن الا بمشقة کالظاء مع الضاد المعجمتین والصاد مع السین المهملتین والطاء مع التاء قال اکثرهم لا تفسد. (ردالمحتار ص٢٦٨ جلد١مطلب اذا قرأ تعالیٰ جد بدون الف لا تفسد باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)

﴿٣﴾قال العلامه ابن نجیم: وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والا فلا کراهة. (البحر الرائق ص٣٤٩ جلد١ باب الامامة)

خپل پلار زخمی کړې یم لیکن د قتل دعوی پرې نه کوم، څوارلس ورځې پس هلک مړشو. دهلک مور دغه ملزم پلار په عدالت کښې اوبخلو.اوس دغه سړې د جمات امام جوړشو نو آیا د قاتل امامت جائزدې؟ بینوا توجروا

المستفتی: احمد خان تحصیل بازارچارسده..... ۱۹۸۴ء\۵\۲

**الجواب**: په ناجائز قتل کولو والا باقاعده امام جوړول مکروه تحریمی دی. ﴿۱﴾ خو که یو قوم کښې دده نسبت په ړندو کښې د یو سترګې والا وی یعنی د قوم نه پوهه دې نو څه کراهت نشته.(بحر) ﴿۲﴾ وهوالموفق

## د پیغمبر علیہ السلام حاضر ناظر، نذر لغیرالله او د عبدالقادر جیلانی د امداد ګویانه سړی امامت

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د کوم سړی دا عقیده وی چه پیغمبر علیہ السلام حاضر ناظر او عالم الغیب دې د نذر لغیرالله عقیده ساتی، او د عبدالقادر جیلانی د امداد قائل وی.او دداسې عقیدو تشهیرکوی نو آیا ده پسې اقتداء صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا عبدالرحمن تجوړی لکی مروت ....... ۱۹۷۲ء\۱۱\۲

**الجواب**: بشرط صدق مستفتی دا سړې د کفر په وجه ناقابل امامت دې.

یدل علیه ما فی البزازیه من قال ارواح المشائخ حاضرة یعلم الغیب تعلم یکفر﴿۴﴾ وفی شرح الفقه الاکبر ذکر الحنفیة تصریحاً بالتکفیر باعتقاد ان النبی صلی الله علیه وسلم یعلم

---

﴿۱﴾عن ابی هریرة قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اجتنبوا السبع الموبقات قالوا یا رسول الله وماهن قال الشرک بالله والسحر وقتل النفس التی حرم الله الابالحق...... متفق علیه. (مشکواة المصابیح ص۱۷ جلد ۱ باب الکبائر وعلامات النفاق)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والافلا کراهة کما لا یخفیٰ. البحر الرائق ص ۳۶۹ جلد ۱ باب الامامة)

﴿۳﴾ قال الحصکفی: وان انکر بعض ما علم من الدین ضرورة کفر بها...... فلا یصح الاقتداء به اصلا فلیحفظ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۱۵ جلد ۱ قبیل مطلب فی امامة الامرد)

﴿۴﴾(فتاویٰ بزازیه علی هامش الهندیه ص ۳۲۶ جلد ۶ الباب الثانی فیما یتعلق بالله تعالیٰ)

الغیب لمعارضة قوله تعالیٰ قل لا یعلم من فی السموات والارض الغیب الا الله ﴿۱﴾ وفی الخانیة تصریح بکفر من تزوج امرء ة بشهادة الله ورسوله﴿۲﴾. وهوالموفق

## سره د پوهې نه د جوارئ د مال اخستلو والا اقتداء مکروه ده

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ کلی کښې یو مولوی پیش امام دې دهغه رور په بمبئ کښې اوسیږی اوهغه جواری کوی. او ټول کاروبار ئې په جوارئ باندې روان دې او دا جوارګر دې مولوی صاحب ته پیسې رالیږی، اوس څمونږ په کلی کښې دا مولوی صاحب مالدار ترین سړې دې او رورئې کروړ پتی دې اودا مولوی صاحب لاکهه پتی دې اوپخپله هم اقرار کوی چه د پردی مال څوکیدار یم، او د جوارئ هم اقرارکوی نو دې امام پسې د جمعې مونځ کول جائز دی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حیات خان ستهینو دفتر ډویژنل انسپکټر آف سکولز پشاور. ۱۹\۱۱ جمادی الثانی ۱۳۸۹ء

**الجواب**: د مولوی صاحب رور فاسق دې (د جوارئ په وجه) او دې مولوی صاحب دپاره سره د پوهې نه داسې مال اخستل جائزنه دی، ځکه چه دې غنی دې ﴿۳﴾ اوپه داسې امام پسې (چه سره د مالدارئ نه د جوارئ مال خوری)

---

﴿۱﴾ (شرح فقه الاکبر ص ۱۵۱ حکم تصدیق الکاهن بما یخبر به من الغیب)

﴿۲﴾ قال العلامه فخر الدین حسن بن منصور المعروف بقاضی خان: رجل تزوج امرأة بغیر شهود فقال الرجل والمرأة خدائے راوپیغامبر مراگواه کردیم قالوا یکون کفرا لانه اعتقد ان رسول الله ﷺ یعلم الغیب وهو ما کان یعلم الغیب حین کان فی الاحیاء فکیف بعدالموت. (فتاویٰ قاضی خان موضوع علی هامش الهندیه ص ۵۷۶ جلد۳ مایکون کفرا من المسلم ومالایکون)

﴿۳﴾ علامه عبد الحی لکهنوی فرمائی چه: دچا سره حرام مال دې. حلال هم ورسره دې اوهغه د حرامو په نسبت ډیر دې نو دهغه نذر قبلول او دهغه دعوت خوړل دهغه صدقه او تحفه اخستل، اود کور کرایه یا د علاج اجرت اخستل صحیح دی.

(باقی حاشیه په راروان مخ)

اقتداء مکروه ده لیکن دځان له مونځ نه افضل ده.(۱) (منقول از فتاوی مولانا لکهنوی وغیره) وهو الموفق

## د دووث امامت مکروه تحریمی دي

**سوال**: علمائې دین دي مسئلي باره کښې څه فرمائی چه د یو وادۀ کړی سړی د ملازمت په سلسله کښې چرته بدلی اوشوه هلته ئې د یوسړی سره ملاقات اوشو او دوستانه تعلقات ئي قائم کړل، دهغې نه روستو ئې کورته راوستلو او ښځې ته ئې اووئیل چه دا ددې کورسړې دې.دده نه به پرده نه کوې. هروخت راتللې شی. څه موده پس ئې ددغه سړی واده دخپل ښینې سره اوکړو لیکن د ناکامئ په بنیاد باندې ئې څه موده پس طلاق ورکړو، د طلاق نه پس هم دا سړې په کورکښې اوسیږی، اوهغه پخپله ډیوټئ ته ځی. دده ښځه هم ددغې سړی تابع ده، آیا ددې بې غیرته سړی امامت صحیح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نیو اتحاد هارډ وئیر سټور ډی آئی خان..... ۱۹۸۲ء/۸/۱۶

**الجواب**: بشرط صدق وثبوت دا سړې بې غیرته دې (۲) ده پسې اقتداء کول

---

(بقیه حاشیه) په دې شرط چه دا معلومه نه وی چه کوم مال ده راکړو داعین حرام مال دې اوکه دا معلومه وی یا داچه حرام مال غالب وی نو بیا هیڅ هم صحیح نه دی.په اشباه والنظائرکښې دی.

**اذا كان غالب مال المهدى حلالا فلا بأس لقبول هديته واكل ماله مالم يتبين انه من حرام وان كان غالب ماله الحرام لا يقبلها ولا يأكل الا اذا قال انه حلال ورثه او استقرضه. (مجموعة الفتاوىٰ ص ۱۹۴ جلد۲ كتاب الحظر والاباحة)**

**(۱) قال العلامه ابن عابدين: فان امكن الصلوٰة خلف غيرهم فهو افضل والا فالاقتداء اولىٰ من الانفراد. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۱۳ جلد ۱ قبيل مطلب امامة الامرد)**

**(۲) قال الحصكفى: (قوله ديوث) هو من لا يغار على امرأته او محرمه (يا قرطبان) مرادف ديوث، قال ابن عابدين: هو الذى يرى مع امرأته او محرمه رجلا فيدعه خاليا بها وقيل هو المتسبب للجمع بين اثنين لمعنى غير ممدوح وقيل هو الذى يبعث امرأته مع غلام بالغ او مع مزارعه الى الضيعة او يأذن لهما بالدخول عليها فى غيبته. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۲۰۲ جلد۳ قبيل مطلب فيما لو شتم رجلاً بالفاظ متعددة باب التعزير)**

مکروه تحریمی ده خو په عوامو کښې د امام په نسبت سره زیات فسقونه موجود وی لهذا د عوامو اقتداء دې امام پسې مکروه نه ده. کما یشیر الیه کلام البحر فی الامامة ﴿١﴾.

**نوټ**: پردې، لیور، او د نورو محرمو کسانو حکم یوشان دې او د بې غیرتوب نه ډیرکم خلق محفوظ دی.وهو الموفق

## د چرس څکلو والا امام اقتداء مکروه تحریمی ده

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې باقاعده طریقې سره په ورځ کښې دوه ځلې چرس څکی.کله کله د هیروئن کش هم راکاړی، په داسې امام پسې اقتداء صحیح ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورالحق صاحب باړه بازار خیبرایجنسی...٥\١١\١٩٨٨

**الجواب**: چرس او هیروئن څکل مکروه تحریمی دی.لحدیث کل مسکرحرام﴿٢﴾ و فی شرح التنویرص٤٠٤ج٥ یحرم اکل البنج والحشیشة هی ورق العنب والافیون﴿٣﴾ انتهی قلت والشرب فی حکم الاکل، پس په داسې امام پسې اقتداء کول مکروه تحریمی دی. وهو فی حکم الفاسق کما فی شرح الکبیر﴿٤﴾ البته واجب الاعاده نه دې،وهو حکم الاقتداء بکل فاسق کما صرحوا به﴿٥﴾.وهو الموفق

---

﴿١﴾قال العلامة ابن نجیم: وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والا فلا کراهة کما لا یخفیٰ. (البحر الرائق ص ٣٤٩ جلد ١ باب الامامة)

﴿٢﴾ عن بریدة ان رسول اللهﷺ قال نهیتکم عن الظروف فان ظرفا لا یحل شیئا ولا یحرمه وکل مسکرحرام...... رواه مسلم . (مشکواة المصابیح ص٣٧٢ جلد٢ باب النقیع والانبذة)

﴿٣﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص٣٢٥ جلد٥ کتاب الاشربة)

﴿٤﴾ فی فتاویٰ الحجة وفیه اشارة الی انهم قدموا فاسقا یاثمون بناء علی ان کراهة تقدیمه کراهة تحریم. (الشرح الکبیر ص٤٧٥ فصل فی الامامة)

﴿٥﴾قال العلامه ابن عابدین: فان امکن الصلوة خلف غیرهم فهو افضل والا فالاقتداء اولیٰ من الانفراد وفی الدرالمختار هذاان وجد غیرهم والا فلا کراهة بحر بحثا وفی النهر عن المحیط صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص٤١٣، ٤١٥ جلد ١ مطلب فی امامة الامرد باب الامامة)

## د بد اخلاق او غیبت کولو والا امام اقتداء

**سوال**: علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د بداخلاق او غیبت کولو امام په اقتداء کښې مونځ کول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد فاضل فاروقی واه کینټ..... ۳۰\ ذی قعده ۱۴۰۴ھ

**الجواب**: په داسې امام پسې د نیکانو خلقو مونځ مکروه دې.(۱) کنې نو په ړندو کښې یو سترګې والا بادشاه وی.(بحرالرائق) (۲) وهوالموفق

## د سلس البول د مریض اقتداء باطل ده

**سوال**: (۱) د سلس البول تعریف څه دې؟ (۲) که په یو کلی کښې مستند عالم موجود وی او په دې کلی کښې بل څوک عالم نه وی او دغه اولنې عالم په سلسل البول بیمارئ کښې اخته دې نو آیا په دې سلسل البول مریض عالم پسې اقتداء صحیح ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ابراهیم ضمیئه تیمرګره ملاکنډ ډویژن...۲۵\شوال۱۳۸۹ھ

---

﴿۱﴾ قال العلامه شرنبلالی: وروی محمد عن ابی حنیفة وابی یوسف ان الصلاة خلف اهل الاهواء لا تجوز والصحیح انها تجوز علی الحکم الذی ذکرنا مع الکراهة خلف من لا تکفره بدعته لقوله ﷺ صلوا خلف کل بر وفاجر، وصلوا علی کل بر وفاجر وجاهدوا مع کل بروفاجر رواه الدار قطنی کما فی البرهان واذا صلی خلف فاسق او مبتدع یکون محرزا ثواب الجماعة لکن لا ینال ثواب من یصلی خلف تقی، قال ﷺ من صلی خلف عالم تقی فکانما صلی خلف نبی کذا فی مجمع الروایات والحدیث الضعیف یعمل به فی فضائل الاعمال. (امداد الفتاح شرح نورالایضاح ص ۳۲۴ بیان من تکره امامتهم)

﴿۲﴾ قال ابن نجیم: وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والا فلا کراهة کما لا یخفیٰ. (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

**الجواب**: (١) دا لفظ سلس البول دې ,,سلسل البول،، غلط دې او د سلس البول تعریف دادې (من به سلسل البول هومن لا یقدر علی امساکه،، یعنی هغه مرض چه په هغې کښې بې اختیاره متیازې اوځی، هدایه مع العینی ص٥ ج١ ﴿١﴾، (٢) که دا عالم معذور نه وی یعنی دومره وقفه موندلې شی چه په هغې کښې اودس اوکړی او مونځ اوکړی نو دده اقتداء صحیح ده. ﴿٢﴾. اوکه دومره وقفه هم نه مومی نو بیا ورپسې اقتداء باطل ده.﴿ ٣﴾ (معتبرات الفقه). وهوالموفق

## د استاذ نه د ,, عاق،، امامت او مونځ

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم سړې دخپل استاذ او پیش امام چه د پلار نیکه راسې پرله پسې د علم دین تعلیم ورکوی دې سړی هم مونځ او قرآن شریف ددې استاذ نه زده کړې دې، او استاذ د امامت پوره حقوق اداکوی،او د علم دین نه باخبره هم دې.نو بغیر دڅه شرعی قصورنه استاذ ته کنځل کول، ناجائز بکواس کول، په سپک نظر سره کتل، او دهغه خلاف پروپیګنډه کول وغیره، نو عندالشرع ددې سړی څه حکم دې؟ استاذ دې عاق کړې دې،آیا دده مونځ وغیره عبادتونه قبول دی یانه؟ دده دامامت کولو څۀ حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم ........

---

﴿١﴾قال العلامه اکمل الدین البابرتی: ومن به سلس البول وهو من لا یقدر علی امساکه. (عنایه علی هامش فتح القدیر ص ١٥٩ جلد ١ فصل فی الاستحاضة)

﴿٢﴾وفی الهندیه: او مما یتصل بذلک احکام المعذور شرط ثبوت العذر ابتداء ان یستوعب استمراره وقت الصلوٰة کاملا وهو الاظهر الخ. (فتاویٰ عالمگیریه ص ٤٠ جلد ١ )

﴿٣﴾ وفی الهندیه: ولا یصلی الطاهر خلف من به سلس البول ولا الطاهرات خلف المستحاضة وهذا اذا قارن الوضوء الحدث او طرا علیه هکذا فی الزاهدی.

(فتاویٰ عالمگیریه ص ٨٤ جلد ١ الفصل الثالث فی بیان من یصلح اماما لغیره)

**الجواب:** بعضې فتاوې مثلاً د فتاوی نورالهدی په صفحه ۳۸۲ کښې لیکلي شوي دی چه د استاذ نه دعاق امامت اوعبادت نامنظوره دې اود دنیا نه به بې ایمانه ځی.

**حيث قال وينبغي للمتعلم ان يعظم استاذه لان فى تعظيمه بركة ومن لم يعظم او شتم فهو عاق ولا تقبل صلوته ولا امامته ويعزر ويشهر وعليه الفتوىٰ فى زماننا ثم قال بعد احرف وتسقط عدالته ولا يعتبر قوله ولا يعمل بفتواه لو كان مفتيا (وقال ايضا) لا يحل ذبيحة العاق و لا امامته لانه يصير مرتداً فى الحال ومثواه فى النار، انتهىٰ**

لیکن دا احکامات نه دځه دلیل شرعی نه ثابت دی اونه چرته د معتبرکتاب نه منقول دی، لهذا داسې احکامات (علی تقدیر الثبوت) په سد باب او تعزیر باندې محمول کولې شی.اوحقیقت دادې چه عاق فاسق دې، په هغه پسې اقتداء مکروه ده.(۱) واجب التعزیر دې اوپه عاق باندې ضروری ده چه استاذ راضی کړی او د الله تعالی نه دې هم معافی اوغواړی.

**والدليل على التعزير مافى الدرالمختار وللشاب العالم ان يتقدم الشيخ الجاهل وقال الرملى فالمتقدم ارتكب معصية فيعزر (ردالمحتار ص ۲۹۸ جلد۵)﴿۲﴾**

خلاصه داده چه بشرط صدق وثبوت دا سړې فاسق او واجب التعزیردې.وهو الموفق.

---

**﴿۱﴾قال ابن عابدين: واما الفاسق فقد عللوا كراهة تقديمه بانه لا يهتم لا مردينه وبان فى تقديمه للامامة تعظيمه وقد وجب عليهم اهانته شرعا ولا يخفى انه اذا كان اعلم من غيره لا تزول العلة فانه لا يؤمن ان يصلى بهم بغير طهارة فهو كالمبتدع تكره امامته بكل حال بل مشى فى شرح المنية على ان كراهة تقديمه كراهة تحريم لما ذكرنا قال ولذا لم تجز الصلاة خلفه اصلا عند مالک ورواية عن احمد فلذا حاول الشارح فى عبارة المصنف وحمل الاستثناء على غير الفاسق والله اعلم**

**(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۴۱۴ جلد ۱ قبيل مطلب البدعة خمسة اقسام)**

**﴿۲﴾قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله وللشاب العالم ان يتقدم) لانه افضل منه ولهٰذا يقدم فى الصلاة وهى احد اركان الاسلام وهى تالية......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)**

## د اسقاط اخستونکی مالدار امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د یو پیش امام آمدنی د فصلونو د عُشر نه علاوه د امامت تنخواه هم ده. او سالانه آمدنی ئې د ګذارې نه زیاته شی او غله دانې خرڅوی هم. دغه شان ټیلر ماسټرهم دې. آیا داسې امام دپاره د حیلۀ اسقاط په دائرد کښې کیناستل جائزدی؟ که نه وی نو آیا ده پسې مونځ کول ښه دی او که ځان له ښه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد شفیع سورجال راولپنډی.... ١٩٢٩ء١٧\٣١

**الجواب:** که امام غَنی وی نوهغه دپاره په دائره اسقاط کښې کیناستل جائزنه دی(١) او د حیلې نه پس ورته اسقاط اخستل جائزدی. اوکه سره د مالدارئ نه فدیه اخلی، اوپه دائرۀ اسقاط کښې کینی نو په هغه پسې اقتداء مکروه تحریمی ده لیکن اقتداء د انفراد نه ډیره افضل ده.(٢) وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) الایمان زیلعی وصرح الرملی فی فتاواه بحرمة تقدم الجاهل علی العالم حیث اشعر نزول درجته عند العامة لمخالفة لقوله تعالیٰ یرفع الله الذین آمنوا منکم والذین اوتوالعلم درجات الی ان قال وهذا مجمع علیه فالمتقدم ارتکب معصیة فیعزر.
(ردالمحتار ص٥٣٣ جلد٥ مسائل شتیٰ قبیل کتاب الفرائض)

(١) قال العلامه مرغینانی: ولا تدفع الیٰ غنی لقوله ﷺ لا یحل الصدقة لغنی وهو باطلاقه حجة علی الشافعی رحمه الله فی غنی الغزاة وکذا حدیث معاذ رضی الله عنه علی ما روینا، قال العلامه ابن الهمام: اخرج ابوداؤد والترمذی عن ابن عمر عنه علیه السلام لا تحل الصدقة لغنی ولا لذی مرة سوی حسنه الترمذی.
(هدایه مع فتح القدیر ص٢٠٨ جلد٢ باب من یجوز دفع الصدقة الیه ومن لا یجوز)

(٢) قال الحصکفی: صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة قال ابن عابدین افاد ان الصلاة خلفهما اولیٰ من الانفراد.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص٤١٥ جلد١ باب الامامة)

## د مودودی جماعت والو د اقتداء حکم

**سوال**: علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه د مودودی د جماعت سره تعلق ساتلو والا د اقتداء څه حکم دي؟ بينوا توجروا

المستفتي: روح الامين ايم ايس سی نفسيات پشاور يونيورسټی ۱۳۰ ذی الحجه ۱۴۰۲ھ

**الجواب**: ددي جماعت دکوم کس چه هغه عقيده وی کومه چه د مودودی صاحب عقيده وه (۱) نوداسي کسانو پسي اقتداء مکروه ده(۲)وهوالموفق

## په ګيره خرئيلی پسي د ګيري والا مونځ

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام ددين ددي مسئلي باره کښي چه ګيره خرئيلی دپاره مونځ ورکول جائزدی يا نه؟ اوهغه پسي ديو بي علمه ګيري والا مونځ کول صحيح دی يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: ډاکټرخالدحسين انچارج سکاوټ هسپتال شمالی وزيرستان۱۴ اربيع الثانی ۱۳۹۲ھ

**الجواب**: فاسق پسي اقتداء کول مکروه ده (۳) يعنی په موجودګئ د صالحانو

---

(۱) علامه مفتی کفايت الله صاحب فرمائی: د مودودی جماعت افسر مولوی ابوالاعلی څه پيژنم هغه چرته د معتبر اومعتمدعليه عالم شاګرد اوفيض يافته نه دي، اګرچه دهغه نظر دخپلي مطالعي د وسعت په لحاظ سره ډير لوئي دي.ليکن دينی رجحان ئي ضعيف او کمزوري دي،او اجتهادی شان ئي ښکاره دي.هم ددي وجي نه دهغه په مضمونونو کښي په لوئي لوئي علماء کرامو بلکه په صحابه کرامو باندي اعتراضونه دی.نوپه دي وجه مسلمانانو له ددي تحريک نه ځانته کيدل پکاردی، او ددوی سره ميل جول او تعلق او اتحاد ساتل نه دی پکار....الخ.(کفايت المفتی ص۳۲۹ ج۱فصل پنجم فرقه مودودی)

**(۲) وفی شرح التنوير: ويکره امامة عبد ......وفاسق...... ومبتدع ای صاحب بدعة وهی اعتقاد خلاف المعروف عن الرسول.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام)**

**(۳) وفی الهنديه: وتجوز امامة الاعرابی والاعمی والعبد وولد الزنا والفاسق الا انها تکره هکذا فی المتون. (فتاویٰ عالمگيريه ص ۸۵ جلد ۱ الفصل الثالث فی بيان من يصلح اماما لغيره)**

کښې، لیکن د انفراد نه دا اقتداء بهتره ده.(١) . وهوالموفق

## د ضروریات دین نه د منکراوبدعتی سړی اقتداء!

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په غورغشتر کښې دمذهبی او دینی جماعتونو واړه واړه شاخونه موجود دی.مثلاً مفتی ګروپ، هزاروی ګروپ.نورانی ګروپ.مودودی جماعت.تبلیغی جماعت. توحیدی جماعت وغیره وغیره.په دې جماعتونو کښې ډیرکرته داسې واقعه مخې ته راشی چه یوبل پسې مونځ نه کوی آیا په دوی کښې څه داسې جماعت شته چه هغوی پسې زمونږ مونځ نه کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عزیزالبشرغورغشتی اټک ......١٥جنوری ١٩٧٥ء

**الجواب:** ددې جماعتونوهغه افراد چه دضروریات دین نه منکردی هغوی پسې اقتداکول صحیح نه دی،اګرکه هغه تاویل کونکی وی.(٢)اوچه کوم کسان دڅه استحسان په وجه په بدعات سیئه کښې ملوث وی نودهغوی پسې اقتداء کول مکروی دی البته دانفرادنه اقتداء افضل ده.(٣) (ماخوذ ازشامی، بحر، هندیه) وهوالموفق

---

﴿١﴾ قال العلامة الحصكفی رحمه الله: صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة، قال ابن عابدين: افاد ان الصلاة خلفهما اولی من الانفراد.
(الدرالمختار مع هامش ردلمحتار ص٤١٥ جلد ١ باب الامامة قبيل مطلب فی امامة الامرد)

﴿٢﴾قال الحصكفی: وان انكر بعض ما علم من الدين ضرورة كفربها كقوله ان الله تعالیٰ جسم كالاجسام وانكاره صحبة الصديق فلا يصح الاقتداء به اصلا.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص٤١٥ جلد ١ قبيل مطلب فی امامة الامرد)

﴿٣﴾قال ابن نجيم رحمه الله: فان قلت فما الا فضلية ان يصلی خلف هؤلاء او الانفراد قيل اما فی حق الفاسق فالصلاة خلفه اولی لما ذكر فی الفتاویٰ قلمناه واما الآخرون فيمكن ان يكون الانفراد اولی لجهلهم بشروط الصلاة ويمكن ان يكون علی قياس الصلاة خلف الفاسق والافضل ان يصلی خلف غيرهم فالحاصل انه يكره لهؤلاء التقدم ويكره الاقتداء بهم كراهة تنزيهية فان امكن الصلاة خلف غيرهم فهو افضل والا فالاقتداء اولی من الانفراد. (البحر الرائق ص٣٤٩ جلد ١ باب الامامة)

## دَ بدعتي دَ اقتداء حكم!

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه آيادَبدعتى امامت جائزدې يانه؟ بينوا توجروا.

المستفتي:صوفى لعل خان........ ١٩٧٠ء/٢/٥

**الجواب**: كه بدعتي كافروى لكه مرزائى اواكثرشيعه گان نوهغوى پسې اقتداء باطل اوكالعدم ده اوكه كافرنه وى نومكروه تحريمى ده(١) وهوالموافق

## دَ مودوديت اعتراف او پرچار نه كولو والا امامت ممنوع نه دې

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه يوسړې په ظاهره دَ مونځ پابند اوپرهيزگار دې اوزمونږه پيش امام دې،ليكن په هغه كښې دوه غلطئ دى،يوداچه دَمودودى دَتفسيراولنې جلدورسره موجوددې،او دويم دا چه دَمودودى د رسالو وغيره مطالعه كوى،نوپه دې وجه ورپسې مونږه مونځ كول پريخې دې،امام وائى چه مونځ كوئ ځكه چه دَمودودى عقيده خرابه نه ده، دغه شان ما مودودى ليدلې هم نه دې اونه دَهغه شاگرديم مونږ پښتنو ځانته بيل جماعت شروع كړې دې،تفصيلى جواب راؤليږئ ډيره مهربانى به وى؟ بينوا توجروا.

المستفتي: حاجى عزيزالرحمن(دوبئ)...... ١٩٧٢ء/١٠/١٣

**الجواب**: چونكه د ا امام نه دَمودوديت اعتراف كوى اونه ئې پرچاركوى بلكه

---

(١) وفى الهنديه: تجوز الصلاة خلف صاحب هوى وبدعة ولا تجوز خلف الرافضى والجهمى والقدرى والمشبهة ومن يقول بخلق القرآن و حاصله ان كان هوى لايكفر به صاحبه تجوز الصلاة خلفه مع الكراهة والا فلا هكذا فى التبيين والخلاصه.
(فتاوىٰ عالمگيريه ص ٨٤ جلد ا الفصل الثالث فى بيان من يصلح اماما لغيره)

بيزارى ښكاره كوى،لهذا ده پسې اقتداء ممنوع نه ده.البته دده دَوينانه بيدار اوسيدل ضرورى دى.وهوالموفق.

## دَ ګډ اقتداء مكروه تنزيهى ده.

**سوال:**:عملمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه دګډ دَاقتداء څه حكم دې هغه پسې مونځ كيږى يانه؟ اوآياهغه دَامامت نه لرې كولې شى يانه؟ بينوا توجروا.

المستفتى:محمد دانش منډى بالاپشاور......١٩٧٨ء/١/١١

**الجواب**: ګډ پسې اقتداء مكروه تنزيهى ده كمافى الهنديه ص٨٩جلد١ولوكان لقدم الامام عوج وقام على بعضها يجوزوغيره اولى.﴿١﴾ نودَدې عيب په وجه دَهغه لرې كول يوبې قانونه كاردې البته دَهغه دپاره پخپله مستعفى كيدل بهتردى.وهوالموفق

## دَ سود خور امام اقتداء مكروه تحريمى ده.

**سوال:**:علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه ديوجمات امام مشهور سودخوردې اويوځائې كښې نه مختلفوځايونوكښې ښكاره په ښكاره سودكوى دَداسې امام اقتداء ياپه جمات كښې دده امام جوړول څنګه دى؟ بينوا توجروا

المستفتى: حجاب شاه مياں خان مردان......١٩٧٢ء/٢/٢.

**الجواب**: مكروه تحريمى دى.﴿٢﴾ :وهوالموفق.

## دَ كوم امام نسب چه معلوم نه وى دَهغه دَاقتداء حكم.

**سوال:**علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى.بعضې خلق وائى چه دَ

---

﴿١﴾ (فتاوىٰ عالمگيريه ص٨٥ جلد١ الفصل الثالث فى بيان من يصلح اماما لغيره)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله: وكذا تكره خلف امرد...... وشارب الخمر وآكل الربا. (الدرمختار على هامش ردالمحتار ص ٤١٥ جلد١ مطلب فى امامة الامرد)

کوم امام نسب معلوم نه وی هغه پسې اقتداء صحیح نه ده. آیا دا صحیح خبره ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی بادشاه گل ډهیری شبقدر چارسده...... ۱۰۶۹ ۱۴/۱/۱ء

**الجواب:** په اسلام کښې علم او تقوی لوئې څیز دي(۱) نسب صرف په انتظامی کارونو کښې معتبر دې. په دې وجه دا مسئله بالکل صحیح نه ده.(۲). وهوالموفق

## په یوې خپې سره دَمعذور کس امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی کۀ امام چه دَسجدې او قعدې (التحیات) په حالت کښې یوه خپه په سنت طریقه نشی کینبودلې، او په دغه کلی کښې صحیح وجود والا سړی هم موجود دی. دهغوی په موجودګئ کښې دَدې کُه امامت صحیح دې یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولوی حاجی ایوب گلګت...... ۸/ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

---

﴿۱﴾ قال العلامه عماد الدین ابن کثیر: (وقوله تعالیٰ: ان اکرمکم عند الله اتقاکم) ای انما تتفاضلون عند الله تعالیٰ بالتقویٰ لابالاحساب وقد وردت الاحادیث بذلک عن رسول الله ﷺ قال البخاری: ...... عن ابی هریرة قال: سئل رسول الله ﷺ ای الناس اکرم؟ قال: اکرمهم عند الله اتقاهم قالوا: لیس عن هذا نسألک قال: فاکرم الناس یوسف نبی الله، ابن نبی الله، ابن نبی الله ابن خلیل الله، قالوا: لیس عن هذا نسئلک قال: فعن معادن العرب تسألونی؟ قالوا: نعم قال، فخیارکم فی الجاهلیة خیارکم فی الاسلام اذا فقهوا.

(تفسیر ابن کثیر ص ۲۷۵ جلد۴ سورة الحجرات آیت:۱۳)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: والاحق بالامامة الاعلم باحکام الصلاة فقط صحة وفسادا بشرط اجتنابه للفواحش.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۱۲ جلد۱ باب الامامة)

وقال العلامه طاهر بن عبد الرشید: وفی الاصل لا یجوز للسید الجاهل ان یتقدم علی الفقیه لان شرف العلم فوق النسب.

(خلاصة الفتاویٰ ص ۳۲۴ جلد۴ کتاب الکراهیة جنس آخر)

**الجواب**:که دا گڼه اعلم القوم نه وی نو ده پسې اقتداء افضل نه ده کما فی ردالمحتار ص ۵۲۵ جلد ۱ و کذلک اعرج یقوم ببعض قدمه(۱) البته ددې عیب په وجه باندې واجب العزل نه دې.وهوالموفق

## والدین سره د گستاخی کونکی کس امامت مکروه دې.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید دَیوې محلې امام دې دَمور پلار گستاخی کوی.آیادده امامت صحیح دې؟خلقوته دده تبلیغ اوتعلیم ورکول څه حکم لری؟ بینوا توجروا.

المستفتی:نامعلوم.........۵/جنوری ۱۹۷۵ء

**الجواب**:که دَ زید مور پلار په حقه وی نودَعقوق(نافرمانئ) په وجه زید پسې اقتداء (دَنیکوخلقوپه موجودگئ کښې) مکروه تحریمی ده.

**لان العقوق من الكبائر كما فی حديث متفق عليه﴿۲﴾ والاقتداء خلف الفاسق مكروه تحريماً كما صرح به فی شرح الكبير ص ۴۷۹ باب الامامة﴿۳﴾واما التقيد المذكور فلما فی البحر ص ۳۴۹ جلد ا وينبغی ان يكون محل كراهة الاقتداء بهم عند وجود غيرهم والافلا كراهة ﴿۴﴾**

---

**﴿۱﴾ قال العلامه الشامی: وكذلک اعرج يقوم ببعض قدمه فالاقتداء بغيره اولیٰ تاترخانية.**
**(ردالمحتار هامش الدرالمختار قبيل مطلب فی الاقتداء بشافعی الخ باب الامامة ص ۴۱۲ جلد ا)**

**﴿۲﴾ عن عبد الله بن عمرو قال قال رسول الله ﷺ الكبائر الاشراک بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس رواه البخاری وفی رواية انس وشهادة الزور بدل اليمين الغموس متفق عليه.**
**(مشكواة المصابيخ ص ۱۷ جلد ا باب الكبائر وعلامات النفاق)**

**﴿۳﴾قال الحلبی : كذا فی فتاویٰ الحجة وفيه اشارة الی انهم قدموا فاسقا ياثمون بناء علی ان كراهة تقديمه كراهة تحريم. (الشرح الكبير ص ۴۷۵ فصل فی الامامة)**

**﴿۴﴾ (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ا باب الامامة)**

لیکن دَ کراهت باوجود دَځانله مونځ نه اقتداء بهترده.﴿١﴾ :صرح به فی امامة البحر والفتح والهندیه وردالمحتار.اودَداسې کس دپاره پهٔ تعلیم ورکولو اوتبلیغ کولو کښې هیڅ ګناه نشته.لان المنکرف قوله تعالی اتامرون الناس بالبروتنسون انفسکم هوالمعطوف.﴿٢﴾ :فقط.وهوالموفق.

## دَ امورشرعیه پابندی نه کونکی اود دروغ ویونکی کس امامت!

**سوال:**علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ پـه امام کښې لاندینۍ کمزورئ دی.(١).پهٔ رمضان کښې ئې صرف درې روژې اونیولې.
(٢) دَمتیازونه روستو اودس نه اوچوی.(٣).دَمونځ هیڅ پابندی نه کوی.
(۴).بغیر دَعذر نه هم کله کله مونځ نه کوی.(۵) قرآن مجید کله دَیوځائې نه کله دَبل ځائې نه وائی.(٦) .دَدروغو نه ځان نه ساتی.آیا داسې کس پسې اقتداء صحیح ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم.........١٩٧۴ء/٢١/١١.

**الجواب:**بشرط صدق وثبوت داسې کس پسې دَنیکانوخلقو اقتداء مکروه ده.یدل علیه مافی البحرص٣٤٩جلد١وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم الفاسق والعبدوغیره عندوجودغیرهم والافلا کراهة.﴿ ٣﴾ وهوالموفق.

---

**﴿١﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: فالحاصل انه یکره لهؤلاء التقدم ویکره الاقتداء بهم کراهة تنزیهیة فان امکن الصلاة خلف غیرهم فهو افضل والا فالاقتداء اولیٰ من الانفراد.**
**(البحر الرائق ص٣۴٩ جلد١ باب الامامة)**
﴿٢﴾ علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی اودایت نه مقصوددادې چه واعظ ته پخپل وعظ باندې ضرورعمل کول پکاردی دامطلب نه دې چه فاسق دې چاته نصیحت نه کوی.(تفسیرعثمانی پاره: اول سورة البقره آیت: ۴۴ رکوع ۵)
﴿٣﴾ (البحرالرائق ص٣۴٩ جلد١ باب الامامة)

## دَ خپل استاد عالم دین بې عزتی اوتوهین کونکی کس امامت!

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې دَخپل استاد چه عالم دین هم دې، دَدنیاوی لالچ په وجه بې عزتی اوتوهین کوی. آیا داسړې دَدې فقهی جزئیه لاندې داخل نه دې؟ چه من اهان عالما بغیرسبب خیف علیه الکفر، او په دې سلسله کښې داشاګرد عاق دې اوکه نه؟ اودَده امامت به جائز وی یانه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ هدایت الرحمن مانکی صوابی ۱۲/محرم الحرام ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دَعالم سره دَعلم دین په وجه عداوت کول دَ کفرباعث دې. دَذاتیاتو په وجه سره عداوت کفرنه دې. ﴿۱﴾ البته دَسباب المسلم فسوق﴿۲﴾ په بنابانډې دا سړې فاسق دې، اوداسې کس پسې اقتداء مکروه تحریمی ده. ﴿۳﴾ چه کله په قوم کښې دَدې سړې نه نیک خلق موجود وی، دَعاق هم داحکم دې.

(ماخوذ از شرح فقه الاکبروبحرالرائق). وهوالموفق.

---

**﴿۱﴾ قاله الملا علی قاری: من ابغض عالما من غیر سبب ظاهر خیف علیه الکفر قلت الظاهر انه یکفر لانه اذا ابغض العالم من غیرسبب دنیوی او اخروی فیکون بغضه لعلم الشریعة ولا شک فی کفر من انکره فضلاً عمن ابغضه.**

**(شرح فقه الاکبرلملا علی قاری ص ۱۷۳ فصل فی العلم والعلماء)**

**﴿۲﴾ عن عبد الله بن مسعود قال قال رسول الله ﷺ سباب المسلم فسوق وقتاله کفر.**

**(الصحیح المسلم ص ۵۸ جلد ۱ کتاب الایمان)**

**﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویکره امامة عبد وفاسق واعمی، قال ابن عابدین: (قوله ای غیر الفاسق) واما الفاسق فقد عللوا کراهة تقدیمه بانه لا یهتم لامردینه وبان فی تقدیمه للامامة تعظیمه وقد وجب علیهم اهانته شرعا ولا یخفیٰ انه اذا کان اعلم من غیره لا تزول العلة فانه لا یؤمن ان یصلی بهم بغیر طهارة فهو کالمبتدع تکره امامته بکل حال بل مشی فی شرح المنیة علی ان کراهة تقدیمه کراهة تحریم.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۴۱۴ جلد ۱ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)**

## د پردو خلقو کور ته بغیر پردې نه دَ تللو راتللو والا کس امامت.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی؟چه یو سړې بالکل پردې اودعلاقه غیراوسیدونکې وی اودلته ئې څوک رشته دار نه وی اونه ئې څوک پیژنی.اوداسړې بوداسې کورته بې پردې ځی راځی چه په هغې کښې ډیرې پیغلې جینکۍ وی اوڅه واده کړې شوې اوڅه کونډې وی چه په دغه کور کښې اوسیږی یعنی ټولې غیرمحرم وی اودې په دغه کورکښې خوری څکی هم.په شریعت کښې دَداسې سړی دَامامت څه حکم دې.جائز دې یا ناجائز؟ بینوا توجروا.

المستفتی:عطاء الله جان مانکی صوابی...... ۱۹۷۱ء/۱۲/۲۳.

**الجواب:** چونکه عوام هم په دې خراب کارکښې اخته دی لهذا ددې امام پسې دَعوامو اقتداء مکروه نه ده که په مقتدیانوکښې غیرفاسق موجود وی نوبیا به ده پسې اقتداء مکروه وی.یدل علیه مافی البحرص۳٤۹جلد۱وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عندوجودغیرهم والافلاکراهة لمالایخفی(۱).وهوالموفق

## زنا کار امام جوړول مکروه تحریمی دی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَزناکارامام جوړول جائز دی یانه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: هیډ ماسټرپرائمری سکول....... ۱۹۷۲ء/۱/۱۲

**الجواب:** زناکارپسې مونځ کول یاهغه باقاعده امام جوړول مکروه تحریمی دی(۲)

---

(۱) (البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)

(۲) قال العلامه محمد امین ابن عابدین: (قوله وفاسق) من الفسق وهو الخروج عن الاستقامة ولعل المرادبه من یرتکب الکبائر کشارب الخمر والزانی وآکل الرباء ونحو ذلک. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۱۴ جلد ۱ قبیل مطلب البدعة خمسة اقسام)

كمافى شرح الكبير كراهة تقديمه كراهة تحريم ص٤٧٩(١) ليكن ځانله مونځ نه فاسق پسې اقتداء كول افضل دى.

**كما فى شرح التنوير صلى خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة، وفى ردالمحتار ص٥٢٥ جلد ١ افاد ان الصلاة خلفهما اولىٰ من الانفراد لاكن لا ينال كما ينال خلف تقى وورع﴿٢﴾. وهوالموفق**

## دَ پلار او استاذ اهانت كونكى امامت

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه زيد .عمراوبكردرې رونړه دى.په دوى كښې زيد مستند عالم دين دې او واده شوې هم دې او بكر اوعمرپه كوركښې نه وى بلكه دكاروبارپه سلسله كښې په سفرباندې وى. بكر اوعمردَزيدسره دافيصله كړې وه چه دَمورپلار خرچه به په شريكه ادا كوو. ليكن دَزيد اخلاق دَمورپلارسره ډيرډَسپكاوى ده اوزيددَخپل پلار شاګردهم دې.زيدضعيف عمروالا مورپلار دكورنه اوويستل ګوزارونه ئې ورته وركړل اودَچائې پياله ئې هم پرې په زور سره واړوله.زيدمورپلار ته په كوركښې عزت سره روټئ هم نه وركوى.خپل پلار په هره خبره باندې زورى.اوبدې ردې ورته وائى.نوسوال دادې چه دَداسې سړى دَاقتداء څه حكم دې؟ بينوا توجروا.

المستفتى: مولاناغلام حيدرلنډااحمدخيل بنوں......١٢/صفر١٣٩٢ھ

**الجواب**: بشرط صدق مستفتي زيدعاق اوفاجردې.ده پسې اقتداء مكروه تحريمى ده.لحديث الكبائرومنها عقوق الوالدين(٣).وفى منحة الخالق

---

**﴿١﴾ (غنية المستملى المعروف بالكبيرى ص٤٧٥ فصل فى الامامة)**

**﴿٢﴾ (ردالمحتار مع الدرالمختار ص٤١٥ جلد ١ قبيل مطلب فى امامة الامرد باب الامامة)**

**﴿٣﴾ عن عبدالله بن عمرو قال قال رسول الله ﷺ الكبائر الاشراك بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس رواه البخارى وفى رواية انس وشهادة الزور بدل اليمين الغموس متفق عليه . (مشكواة المصابيح ص١٧ جلد ١ باب الكبائر وعلامات النفاق الفصل الاول)**

قال الرملی ذکرالحلبی ان تقدیم الفاسق والمبتدع کراهة التحریم(هامش البحر ص٣٤٩ جلد١). (١).

**نوټ**: که قوم دَده نه هم خراب وی نو اقتداء مکروه نه ده، (بحر) **(٢)**. وهو الموفق

## مشرک پسې اقتداء باطل ده

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مشرک پسې دَ اقتداء څه حکم دې جائز ده که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: احمد خان راولپنډی........١٩٨٣ء/١٢/١٩.

**الجواب**: مشرک پسې اقتداء باطل ده که دَهرمکتبِ فکرسره تعلق ساتی. **(٣)**.

وهو الموفق

## دَ بینک دَ ملازم دَامامت حکم.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید دَیوزمینداره بینک سیکرټری دې چه دا بینک دَکواپریټوبینک یو شاخ دې، دابینک لس فیصده یازیات په سالانه شرح سره قرضه ورکوی دَاصل رقم نه علاوه چه کوم زیاتی رقم شرح جوړیږی بینک دَزید دپاره تنخواه دَدغې شرح دَرقم نه مقرر کړې او دَبینک داټول کاروبار زید کوی. اوس دلته زید دجماعت امام مقرر کولې شی خو بعضې کسان دَزید امامت او اقتداء صحیح نه ګڼړی. دَشریعت

---

**(١)** (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ص ٣٤٩ جلد ١ باب الامامة)

**(٢)** قال العلامه ابن نجیم: وینبغي ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم والافلا کراهة لما لا یخفیٰ.

(البحر الرائق ص ٣٤٩ جلد ١ باب الامامة)

**(٣)** وفی الهندیه: ولا تجوز خلف الرافضی والجهمی والقدری والمشبهة ومن یقول بخلق القرآن وحاصله ان کان هوی لا یکفر به صاحبه تجوز الصلوٰة خلفه مع الکراهة والا فلا.
(فتاویٰ عالمگیریه ص ٨٤ جلد ١ الفصل الثالث فی بیان من یصلح اماما لغیره)

رنړا کښې دده دَ امامت څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمداکرم قریشی واه کینټ.........شوال ١٣٨٩ھ

**الجواب**:زید دَتعاون فی المعصیت په وجه باندې دَامامت لائق نه دې، چرته یو نیک سړې دې امام جوړ کړې شی.قال الله تعالی ولاتعاونوا علی الاثم والعدوان(١) وایضالعن رسول اللهﷺ کاتب الربوافتکون ذنبا کثیرة(٢) واضحه دې وی چه ربوا، سود او منافع یوځیز دې په صحیح احادیثوسره ثابت دی چه په قرضې باندې منافع اخستل سود او حرام دی.(٣).وهوالموفق

## دَ بادی بواسیرو والا امامت.

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو امام دَبادی بواسیرو مریض دې دَهغه دَاقتداء څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی:میاں محمدیاسین فضل آباد ملاکنډایجنسی.

**الجواب**:که دا امام شرعی معذورنه وی نو امامت کولې شی(شامی)(٤) وهوالموفق

---

(١) (سورة مائده پاره: ٦ آیت:٢ رکوع١)

(٢) عن جابر قال لعن رسول اللهﷺ آکل الربوا وموکله وکاتبه وشاهدیه وقال هم سواء رواه مسلم. (مشکواة المصابیح ص٢٤٤ جلد١ باب الربوا الفصل الاول)

(٣)وعن علی قال: قال رسول اللهﷺ کل قرض جر منفعة فهو ربا، رواه الحارث بن ابی اسامة واسناده ساقط وله شاهد ضعیف عن فضالة بن عبید عند البیهقی وآخر موقوف عن عبد الله بن سلام عند البخاری. (بلوغ المرام للعسقلانی ص٢٨٢ رقم حدیث: ٨١٢ قبیل باب التفلیس والحجر) وقال الشیخ اشرف علی التهانوی: اخرجه البیهقی فی المعرفة عن فضالة بن عبید موقوفا بلفظ کل قرض جر منفعة فهو وجه من وجوه الرباء ورواه فی السنن الکبرٰی عن ابن مسعود وابی ابن کعب وعبد الله بن سلام وابن عباس موقوفا علیهم.
(امداد الفتاوٰی ص٢١٥ جلد٣ رساله کشف الدجٰی عن وجه الربوا)

(٤) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولا طاهر بمعذور هذا...... (بقیه حاشیه په بل مخ)

## کنځلو والا او [illegible] کونکی کس امامت

**سوال:** [illegible] کسی [illegible] امامت [illegible] امامت په کنځل او کړل. داجاهل [illegible] دي د علماؤ توهین هم کوی. قرات هم غلط کوی. دداسې کس دامامت څه حکم دي؟ بینوا توجروا.

المستفتی مولوی عبدالاکبر مسجد خانان.

**الجواب:** که دا الزام مسلم یا مبرهن وی نو دې امام پسې اقتداء مکروه ده. (۱) البته دانفرادنه اقتداء افضل ده. (شامی بحر. هندیه). وهوالموفق.

## ښځه د خرچې نه محرومه کونکی په کوژدن کښې ډول وهونکی او دغیرمحرم د مونکی کس امامت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو کس په آخری عمر کښې دویم واده اوکړی. او اولنۍ ښځه دشرعی حقوقو او خرچې وغیره نه محرومه کړی. اوبچی هم محروم کړی. په دویم واده کښې په کوژدن کښې ډمان رااوغواړی او ډولونه اووهی. اوپردې ښځې ګډوی. اوسندرې پکښې اووئیلې شوې. دغه شان غیرمحرم ښځې په ښکاره مخ دموی وغیره وغیره. آیا دده امامت جائز دي؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فقیراحمدشاه ډیره اسماعیل خان.

---

(بقیه حاشیه) ان قارن الوضوء الحدث او طرأ علیه بعده وصح لو توضأ علی الانقطاع وصلی کذلک کالاقتداء بمفتصد امن خروج الدم.

(الدرالمختار ص۴۲۸ جلد ا باب الامامة قبیل مطلب فی الالثغ)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وفی النهر عن المحیط صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة، قال ابن عابدین : افاد ان الصلاة خلفهما اولی من الانفراد. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۵ جلد ا قبیل مطلب فی امامة الامرد باب الامامة)

**الجواب** [illegible] (۱) [illegible] (۲) [illegible] وعقد فريضه ده چه هغوى د [illegible] (۳) [illegible] برقرار پاتې شى نو بيا دانفراد نه اقتداء افضل ده. په درمختار كښې دى من صلى خلف فاسق اومبتدع نال فضل الجماعة(۴). وهوالموفق.

## دَ افيمو نشه كونكى مړو ته دَپيشې په طور غسل وركونكى او دَ جادوګر امام اقتداء

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره كښې څه فرمائى چه كوم كس هميشه دَ افيمو په نشه كښې مست وى اومړوته دَپيشې په طورمستقل غسل وركوى. سحر. جادو منتراوغلط تعويذونه كوى. دَده امامت صحيح دې يانه؟ بينوا توجروا

المستفتى: شمس الرحمن كالتهكس ضلع دير..........۱۹۷۳ء/۵/۴.

---

**﴿۱﴾ قال العلامه محمد بن البزاز الكردرى: استماع صوت الملاهى كالضرب بالقضيب ونحوه حرام لقوله عليه السلام استماع الملاهى معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها كفر اى بالنعمة.**

**(فتاوىٰ بزازيه على هامش الهنديه ص ۳۵۹ جلد۶ الباب الثالث فيما يتعلق بالمناهى)**

**﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله: ويكره امامة عبد وفاسق واعمى ومبتدع، قال ابن عابدين: تكره امامته بكل حال بل مشى فى شرح المنية على ان كراهة تقديمه كراهة تحريم.**

**(ردالمحتار مع الدرالمختار ص۴۱۴ جلد۱ قبيل مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)**

**﴿۳﴾ قال الحصكفى: ويكره تقليد الفاسق ويعزل به الا لفتنة، قال ابن عابدين: اى بالفسق لو طرا عليه والمراد انه يستحق العزل كما علمت آنفا ولذا لم يقل ينعزل.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۴۰۵ جلد۱ باب الامامة)**

**﴿۴﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص۴۱۵ جلد۱ قبيل مطلب فى امامة الامرد باب الامامة)**

للنوم [illegible] چه افسم څکل حرام دی لمافی الدرالمختار ويحرم اكل البنج والحشيشة هي ورق القنب [illegible] والافيون [illegible] الخ(١) ومثله فی سائر کتب الفتاویٰ،او حرام کار کونکي د سو دي خصوصاً چه علی الدوام وی او فاسق پسې اقتداء مکروه تحریمی ده، صرح به فی الکبیری. (٢) دغه شان پیشه ورمړی لامبونکي دَخلقو په نظرکښې سپک وی، چه دَ کراهیت اقتداء باعث دي، کمایدل علیــه تعلیــل الهدایة حیث قال ولان فی تقــدیم هــؤلاء تنفیرالجماعــة ص ١١٠ جلــد ١ (٣).او جادوګرتوب دَفسق یا کفر نه خالی نه وی،لهذا داسې امام پسې اقتداء نه دی کول پکار. (۴) .وهوالموفق.

## په ناجائزه معامله کښې دَ مور پلار نه دَخفه څوئی اقتداء جائز ده.

**سوال**: علمائي دین دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو پیش امام دَخپلې مورنه خفه دي هغه ته قوم وائی چه دَمورنه راضی نامه واخله یاترینه معافی اوغواړه لیکن هغه نه راضی نامه اخلی او نه معافی غواړی او دَموربیان ئې دادي ،خبره داسې ده چه زماځوئ فلانکی ځوئ دَفلانکی .....قوم..... کلي..... خفه شوي اودَچاکورته تلې دي اوزمادَخاوند اته(٨) کاله اوشوچه مړشوي په دي اته(٨) کالو کښې هغه زماهیڅ مدد نه دي کړې،پروسکال هغه کورته راغې

---

﴿١﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ٣٢٥ جلد٥ کتاب الاشربة)

﴿٢﴾ قال العلامة الحلبی فی شرح المنیة: فی فتاوی الحجة وفیه اشارة الی انهم قدموا فاسقا یاثمون بناء علی ان کراهة تقدیمه کراهة تحریم. (الشرح الکبیر ص ۴٧۵ فصل فی الامامة)

﴿٣﴾ (هدایه ص ١١٠ جلد ١ باب الامامة کتاب الصلوٰة)

﴿۴﴾ قال الحصکفی : وحرام وهو علم الفلسفه والشعبذة والتنجیم والرمل وعلوم الطبائعین والسحر، قال العلامه ابن عابدین: فهذه انواع السحر الثلاثة قد تقع بما هو کفر من لفظ او اعتقاد او فعل وقد تقع بغیره کوضع الاحجار وللسحر فصول کثیرة فی کتبهم فلیس کل مایسمی سحرا کفراً اذ لیس التکفیر به لما یترتب علیه من الضرر بل لما یقع به مما هو کفر کاعتقاد انفراد الکواکب بالربوبیة واهانة قرآن او کلام مکفر ونحو ذلک. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٣٣ جلد ١ مطلب السحر انواع)

مونږ جرګه کینوله هغه ته مو اووئیل نو دې خفه شو دباں ځکه نه لا [illegible]
واتي چه څه به د مونږ نه خفه او [illegible]
غواړئ نو زما غونبه [illegible] او څه به
دَدې جولاګنړې نه معافي اونه غواړم، په دې صورت کښې دداسې څوني
امامت جائز دې یانه؟ بینوا توجروا.

المستفتي:مولوی محمدغنی راولپنډی ١٩٧٩ء/١١/٢٢.

**الجواب**:تاڅه تفصیل نه دې ښودلې چه دَخفګان وجه څه ده. لهذا تعلیقي جواب درکولې شي، یعنی که چرته دَمورد جائز معاملې په وجه داخفګان وی نو دَفسق په وجه ده پسې اقتداء مکروه تحریمی ده،(١). او که دَمور په څه ناجائزه معامله باندې داخفګان وی نو په ده باندې هیڅ خبره نشته. لحدیث لاطاعة للمخلوق فی معصیة الخالق.(٢). وهو الموفق.

**دَحضور ﷺ په باره کښې دَ نازیبا کلماتو ویونکی دَ توبې نه پس دَامامت حکم**

**سوال**:علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زما په پلار مولانا امین الحق صاحب باندې بعضې مخالفینو دَذاتی عناد په وجه دا الزام لګولې دې چه ده دَنن نه څلویښت(٤٠) کاله مخکښې دَآنحضرت فداه ابی وامی په باره کښې نازیبا کلمات استعمال کړی وو، چه دَهغې په وجه دَهغې وخت علماؤ دې دَامامت نه لرې کړې وو، حال داچه زما والد صاحب په خپل ټول عمر کښې چرته داقسم الفاظ نه دی وئیلې، زما والد صاحب دَسلسله عالیه قادریه سره منسلک دې، دَاولیاء الله منلو والا او معتقد دې، او دَحضور ﷺ په ادنی امتی

﴿١﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویکره امامة عبد واعرابی وفاسق واعمی ومبتدع، قال ابن عابدین: تکره امامته بکل حال بل مشی فی شرح المنیة علی ان کراهة تقدیم کراهة تحریم. (ردالمحتار مع الدر المختار ص٤١٤ جلد ١ مطلب البدعة خمسة اقسام باب الامامة)

﴿٢﴾ (مشکواة المصابیح ص ٣٢١ جلد ١ الفصل الثانی کتاب الامارة)

کیدلو باندې فخر کوی. خدائ دې نکړی که چرته دَبشریت په مقتضاء داقسم الفاظ وئیلي وی اوده توبه ویستلې وی او انابت الی الله شوې وی. نوآیاده پسې اقتداء صحیح ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی سیدالابرارمنشی فاضل نوشهره.......۱۹۶۹ء/۴/۲.

**الجواب:** په شرعي ثبوت سره پیغمبرته کنځل کولو دَثابتیدلو نه پس دکنځل کونکی توبه دَقرآن. حدیث او فقهې په بنیاد صحیح ده. اوامامت ئې هم صحیح دې.

**قال الله تعالیٰ فی شان المنافقین، ولقد قالوا کلمة الکفر وکفروا بعد اسلامهم وهموا بما لم ینالوا الی ان قال فان یتوبوا یک خیرالهم (الایة)﴿۱﴾ وجه الاستدلال ان المنافقین کانوا مسلمین ظاهرا، ویجری علیهم احکام المسلمین وقال الله تعالیٰ غافر الذنب وقابل التوب﴿۲﴾ من غیر تقید وتخصیص ، وقال رسول الله ﷺ التائب من الذنب کمن لا ذنب له ﴿۳﴾ وقال العلامة الشامی فی ردالمحتار ص ۲۰۲ جلد۳ فهذا صریح کلام القاضی عیاض فی الشفاء والسبکی وابن تیمیه وائمه مذاهب علی ان مذهب الحنفیة قبول التوبة بلاحکایة قول آخر عنهم وانما حکوا الخلاف فی بقیه المذاهب الخ﴿۴﴾. وهوالموفق**

## په کاڼړه باندې د نفع اخستونکی اودَ پیشه ورامام دَاقتداء حکم.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه(۱)یو پیش امام چاته درې زره(۳۰۰۰) روپې ورکړې او زمکه ئې ترګاڼړه جوړه کړه، اودَزمکې دَپیداوارنه مالک ته هیڅ هم نه ورکوی او ورکړې شوې رقم په دستور سره ساتی.آیا دَداسې قسم معامله کونکی اقتداء جائز ده ؟(۲). داسې کس چه

﴿۱﴾ (سورة التوبة پاره: ۱۰ رکوع: ۱۶ آیت: ۷۴)
﴿۲﴾ (سورة المؤمن پاره: ۲۴ رکوع: ۱ آیت: ۳)
﴿۳﴾ (مشکواة المصابیح ص ۲۰۶ جلد۱ باب الاستغفار والتوبة)
﴿۴﴾ (ردالمحتارهامش الدرالمختار.ص۳۱۹ جلد۳ مطلب مهم فی حکم ساب الانبیاء باب المرتد)

همیشه دپاره دَامامت پیشه اختیارکړي.هغه پسې همیشه دپاره مونځ کول څنګه دي.(٣) .که داسې پیشه ور امام پسې اقتداء صحیح نه وي نودې به څنګه په صحیح لاره راوستلې شي؟ بینوا توجروا.

المستفتي: شوکت علی ولدتاج ملوک خان طوروردان...... ١٩٦٩ء٤ ٨.

**الجواب:**(١) .په مرهونه باندې نفع اخستل جائز نه ده.که مشروط وي اوکه معروف وي.اوزمونږ په علاقوکښې معروف ده لهذا حرام ده.اودَدې مرتکب فاسق دې،ده پسې مونځ کول مکروه تحریمی دی.(١) .لیکن دَانفراد نه اقتداء افضل ده.

**عن ابی برده بن ابی موسیٰ قال قدمت المدینة فلقیت عبد الله بن سلام فقال انک بارض فیها الربوا فاش فاذا کان لک علی رجل حق فاهدیٰ الیک تبن او حمل شعیر او حبل قت فلا تاخذه فانه ربوا، رواه البخاری ،وقال ابن عابدین: قلت والغالب من احوال الناس انهم انما یریدون عند الدفع الانتفاع ولو لاه لما اعطاه الدراهم وهذا بمنزلة الشرط لان المعروف بمنزلته کالمشروط وهذا مما یعین المنع ﴿٢﴾ (ردالمحتار ص٤٢٧ جلد٥) وفی منحة الخالق قال الرملی ذکر الحلبی فی شرح المنیة ان کراهة تقدیم الفاسق والمبتدع کراهة تحریم وفی البحر بعد عبارة والا فالاقتداء بهم اولیٰ من الانفراد (بحر ص ٣٤٩ جلد ١)﴿٣﴾ .**

(٣.٢)،دَامامت پیشه خوپخپله باندې یومستحسن کار دې بیشکه چه کله په اجرت کښې فرائض او واجبات اخلي یا دَشرعی مالدارتوب باوجود زکوة اوفطراني اخلی نوداکارډیرقبیح دې په محلي والوباندې ضروری ده چه دَده دپاره تنخواه مقررکړي او زکوة وغیره ورله په اجرت یعنی تنخواه کښې نه ورکوي.وهوالموفق.

---

**﴿١﴾قال العلامة الحصکفی رحمه الله: صلی خلف فاسق او مبتدع نال فضل الجماعة وکذا تکره خلف امرد، قال ابن عابدین: افاد ان الصلاة خلفهما اولیٰ من الانفراد . (الدرالمختار مع ردالحتار ص٤١٥ جلد ١ مطلب فی امامة الامرد باب الامامة)**

**﴿٢﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ص٣٤٣ جلد٥ کتاب الرهن)**

**﴿٣﴾ (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ص ٣٤٩ جلد ١ باب الامامة)**

## ریډیو ټی وی وغیره مرمت کونکی مستری پسې دَ اقتداء حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیو مولوی صاحب ځوئ دَریډیو او ټی وی مستری دې نوآیا دې مستری ځوئی پسې مونځ اداکول جائز دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: هدایت الله کانګړه چارسده...... ۲۱/شعبان ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** فاسق پسې دَفاسقانو اقتداء بغیردَڅه کراهت نه جائزده.(۱) . (ماخوذ از بحرهندیه باب الامامة). وهوالموفق.

---

**(۱) قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: وینبغی ان یکون محل کراهة الاقتداء بهم عندوجود غیرهم والا فلا کراهة کما لا یخفیٰ.**

**(البحر الرائق ص ۳۴۹ جلد ۱ باب الامامة)**

....

# باب القراءة فی الصلوة

## په لااله باندې وقف کول مونځ فاسدونکې نه دې.

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې دکلمه توحید دَذکرپه دوران کښې یادَمونځ په دوران کښې په لااله،باندې وقف اوکړی، اودَ وقف نه پس الا الله، اووائی اوداوقف کول قصدا یا په هیره اویا د ناپوهئ په وجې سره وی نو دَدې څه حکم دې؟ مونځ به فاسدوی یانه؟ بینوا توجروا.

المستفتی:مولاناغلام جلیل صاحب مدرس مدرسه مفتاح العلوم هنګو..۱۹۸۲ء/۱۰/۷

**الجواب**:دَمفتٰی به قول مطابق داوقف دَمونځ فاسدونکې نه دې.(فلیراجع الی الهندیه ص۸۵جلد۱الفصل الخامس زلة القاری(۱)).وهوالموفق.

## دَ دوو(۲) سورتونو په مینځ کښې ورکوټې سورت پریخودل مکروه دی.

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو امام دوه(۲) سورتونه مثلاً اولنی رکعت کښې سورة الفیل اولولی،اودویم رکعت کښې سورة الماعون اووائی یاپه اولنی رکعت کښې سورة العصر اووائی او په دویم رکعت کښې الم ترکیف اووائی نو دامکروه دی یانه؟ ددې دواړو صورتونو څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم.......۱۹۸۲ء/۹/۱۴

---

**(۱) قال فی الهندیه: وان تغیر به المعنی تغیرا فاحشا نحو ان یقرأ شهد الله انه لا اله ووقف ثم قال الا هو لا تفسد صلاته عند عامة علمائنا وعند البعض تفسد صلاته والفتویٰ علی عدم الفساد بکل حال هکذافی المحیط. (فتاویٰ عالمگیریه ص ۸۱ جلد ۱ فصل الخامس فی زلة القاری)**

**الجواب**:چه کله یو امام په اولنی رکعت کښې الم ترکیف اووائی او په دویم رکعت کښې ارایت الذی اووائی نودامکروه دی.اوچه کله په اولنی رکعت کښې والعصر اووائی اوپه دویم رکعت کښې الم ترکیف ....الخ.اووائی نودامکروه نه دی.

**کمافی شرح التنویر مع ردالمحتار قبیل باب الامامة ویکره الفصل بسورة قصیرة اما بسورة طویلة بحیث یلزمه منه اطالة الرکعة الثانیه اطالة کثیرة فلا یکره ، شرح المنیة ﴿١﴾. وهوالموفق**

## په مونځ کښې دوه سورتونوسره فصل کول جائز دی اوپه یو ورکوټي سورت سره فصل کول مکروه دی

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې په اولنی رکعت کښې سورة الکافرون اوپه دویم رکعت کښې سورة الاخلاص اووائی یا په اولنی رکعت کښې سورة التین اوپه دویم کښې سورة القدر اووائی نو آیا دا طریقه مکروه ده یاغیرمکروه ده؟ مدلل اومبرهن جواب راؤلیږئ؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: حکیم عبدالرؤف صاحب پابینی صوابی......٩/١/١٩٨٩ء.

**الجواب**:که په دوه سورتونوسره فصل(جداوالې) وی نومکروه نه دې اوکه په یو سورت سره وی نو مکروه دی خوچه دافصل راوستونکې سورت ورکوټې وی. او که ښکاره اوږد سورت وی نومکروه نه دی.

**کمافی شرح التنویر ص ٥١٠ جلد ١ ویکره الفصل بسورة قصیره، امابسورة طویلة بحیث یلزم منه اطالة الرکعة الثانیه اطالةً کثیرة فلا یکره (شرح المنیة) کما ذا کانت سورة قصیرتان ﴿٢﴾. وهوالموفق**

## یولوئ آیت په دوه رکعتونو باندې تقسیم سره لوستل جائز دی خوډ سنتونه خلاف دی

**الجواب**:محترمی ومکرمی جناب صدر دارالافتاء مفتی صاحب دارالعلوم حقانیه

---

﴿١﴾ (ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ٣٠٤ جلد ١ قبیل باب الامامة)

﴿٢﴾ (ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ٣٠٤ جلد ١ قبیل باب الامامة)

یوه استفتاء خدمت کښې وړاندې کوم. چه په څو اجزاؤباندې مشتمله ده جواب ئې راکړئ.(الف)____ په فرض جهری مونځ کښې امام دپاره په یو رکعت کښې دَیو آیت کم نه کم څومره حصه لوستل ضروری ده؟
(ب)____ یو آیت څومره لوئ وی(دَقرآن کریم دَبعضې لویو آیتونو حوالې راکړئ). چه دَهغې دَیو جزء حصه لوستلو سره رکعت صحیح کیږی. اوقرأت اداکیږی. (ج)_ یو امام صاحب دَفجرپه دوه رکعتونوکښې یو رکعت کښې سورة الفتح دآخری آیت نمبر ۲۹ صرف آخرنئ حصه یعنی سیماهم فی وجوههم نه اجراً عظیماً پورې اولوستله اورکوع ئې اوکړه آیا دامونځ به صحیح وی؟ بینوا توجروا
المستفتی: حبیب الله چوک ابریشم گران پشاور.......۱۹۸۸ء/۷/۲.

**الجواب:** چه کله مونځ گذار اوږدآیت لکه آیت الکرسی یادَسورة الفتح آخری آیت په دوه رکعتونوباندې تقسیم کړی یا دَسورة الکوثر په اندازه ترینه اووائی نوواجب قرأت اداشو اومونځ صحیح شو البته دَسنتونه خلاف دې. فلیراجع الی ردالمحتارص ۲۲۱ جلد۱ بحث واجبات الصلوة(۱)وهوالموفق.

## په العالمین او الرحمن کښې وصل او وقف دواړه جائز دی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ امام په الحمدلله رب العالمین. باندې وقف اوکړو او الرحمن الرحیم ئې جدا اووې. په دې باندې یوسړی اعتراض اوکړو چه داغلط دې بلکه وصل کوه یعنی نَ الرحمن الرحیم وایه، ځکه چه دا وقف غلط دې. خبره دې پورې راغله چه امام صاحب

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: لو قرأ آیة طویلة کآیة الکرسی او المداینة البعض فی رکعة والبعض فی رکعة اختلفوا فیه علی قول ابی حنیفة قیل لا یجوز لانه ماقرأ آیة تامة فی کل رکعة وعامتهم علی انه یجوز لان بعض هذه الآیات یزید علی ثلاث قصار او یعدلها فلا تکون قراءته اقل من ثلاث آیات وهذا یفید ان بعض الایة کالآیة فی انه اذا بلغ قدر ثلاث آیات قصار یکفی. (ردالمحتارهامش الدر المختار ص۳۳۸ جلد ۱ مطلب واجبات الصلاة)

ورته اووئیل چه دیربنه بنه تعلیم یافته خلق ماپسې مونځ کوی هغوی غلطی نه نیسی نو ته بې تعلیمه زماغلطی څنګه نیسې، ستامونځ ماپسې نه کیږی، تقریبًا دوه میاشتې پس یو ورکوټې اشتهار (پوستر) خورشو په هغې کښې ئې د دروغو ګوته لګولې او فتوی ئې لګولې وه چه ددې امام شکل د کافرانو پشان دې، ده پسې مونځ نه کیږی. سوال دا دې چه ددې مونځ اوددې سړې څه حکم دې چه د امام خلاف ئې د دروغو اشتهار خور کړې دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: خان زمان دارتیان خانپورهزاره...... ۱۷/نومبر۱۹۲۹ء

**الجواب:** وقف او وصل دواړه جائزدی رب العالمین الرحمن الرحیم هم جائز بلکه بهتر دې، لان الوقف بین الصفة والموصوف غیرمستحسن عندالفقهاء، وصرح به فی الخانیه علی هامش الهندیه ص۱۴۳ جلد۱ (۱). اوالرحمن. الرحیم (جدا) لوستل هم جائز دی، لحدیث مرفوع رواه الترمذی (۲). (لاکنه منقطع) نودې کښې سختی کول نه دی پکار، اودروغ جوړول فسق دې لهذا دې سړی لره توبه ویستل اومعافی غوښتل ضروری دی. فقط.

---

﴿۱﴾ قال العلامه فخرالدین القاضی خان: او فصل بین الوصف والموصوف بان قرأ انه کان عبدا ووقف ثم ابتدء بقوله شکوراً فمثل هذا لا یحسن ولا تفسد به الصلاة وکذا لو فصل بین قوله الا بذکر الله تطمئن القلوب لا تفسد الصلاة وان کان لا یحسن هذا الوقف لان مواضع الوصل والفصل لا یعرفها الا العلماء.

(فتاویٰ خانیه علی هامش الهندیه ص ۱۵۵ جلد ۱ فصل فی قرأة القرآن)

﴿۲﴾ عن ام سلمة قالت کان رسول الله ﷺ یقطع قرأته یقرأ الحمد لله رب العالمین لم یقف الرحمن الرحیم ثم یقف وکان یقرأها ملک یوم الدین هذا حدیث غریب وبه یقرأ ابوعبید ویختاره هکذا روی یحی بن سعید الاموی وغیره عن ابن جریج عن ابن ابی ملیکة عن ام سلمة ولیس اسناده بمتصل لان اللیث بن سعد روی هذا الحدیث عن ابن ابی ملیکة عن یعلی ابن مملک عن ام سلمة انها وصفت قراءة النبی ﷺ حرفا حرفا وحدیث اللیث اصح ولیس فی حدیث اللیث وکان یقرأ مالک یوم الدین.

(سنن الترمذی ص۱۱۶ جلد۲ ابواب القراءات عن رسول الله ﷺ)

## دَ اخترد مونځ په قرأت او هيئت کښې دَغلطۍ شبه

**سوال:** محترم جناب مفتی صاحب دام مجدکم دارالعلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک! مسئلہ آن ست کہ مایاں نماز عید الفطر مے گزاردیم چوں در رکعت اول خطیب صاحب سورۃ الاعلیٰ شروع کرد، پس گفت سبح اسم ربک الاعلی الذی خلق، پس گفت والذی قدر فهدیٰ دوقسم لغزش صادر شد، یکے وقف بر خلق، ودوم ترک فسویٰ ، چوں رکعت دوم شروع کرد سورۃ غاشیہ بخواند بمصیطر مع صاد بخواند، فاصلة السين والصاد بدل عنه ولهٰذا ذكر المفسر فی تفسیر الجلالین بمسیطر والاعادته قراءة ابی عمرو فی المتن غالباً، بعدہ بہ تکبیرات زوائد رکعت دوم شروع کرد پس بجائے سہ تکبیر پنج بگفت، چوں تکبیر چہارم گفت ہمہ مردمان ماسوائے چند افراد کہ امام بنظر ایشان درے آمد، بقیام ماندند، باقی ہمہ اشخاص برکوع رفتند، چو تکبیر پنجم گفت، مردماں بقومہ افتند وامام ہنوز برکوع آمد، وآن کسان چند کہ امام درنظر شان بود آں ہم برکوع افتند بمتابعت امام خود چوں سمع الله بعد از تکبیر پنجم بگفت مردمان بقومہ رفتہ متحیر شدند، کہ ایں چہ مصیبت برپا شد بعض در گفتگوئے مفسد نماز ہم در آمدند، چوں از سلام فارغ شد، من بندہ ناچیز عرض کردم کہ نماز را اعادہ باید کرد، ازانکہ متابعت کنندہ گان را نماز مکروہ شدہ، ومخالفین رکوع را کہ امام را دراول وآخر رکوع قطعاً نیافتند، نماز فاسد شد، ازانکہ شرکت باامام در رکن شرط است برائے ادراک رکن باامام ومتابعت ہم ضرور یست۔ ہر دو فوت شدند، مگر ایشان بجواب من گفتند کہ نماز صحیح است حالانکہ در "مفتاح الصلاۃ" مے نویسد کہ اگر از مصلی فرض فوت شد اعادہ نماز فرض است واگر واجب فوت شد نماز را اعادہ کردن واجب واگر سنت فوت شد سنت واگر مستحب فوت شد اعادہ نماز مستحب است، چونکہ شمایاں را اللہ تعالیٰ علم وسیع وجامع عطا فرمودہ لہٰذا حل ایں مشکل بکنید۔ والسلام

المستفتی: مولوی میر اکبر پیش امام مسجد میناخیل لکی مروت...... ۱۹۶۹ء/۱/۵

**الجـواب**:درصورت مذکوره بالانمازعیدصحیح است هیچ مفسدازامام متحقق نه شده است وگفتگوکنندگان نماز خودراازوجه جهل فاسدکرده اند.امام رادرین هیچ گناه نیست_فقط.

## په مونځ کښې دَ نا مکمل آیات لوستلوحکم

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په مونځ کښې صرف مسلمات قانتات تائبات،لوستل څنګه دی؟دَ عسی ان يبدله نه لوستل ضروری دی یانه؟په وضاحت سره اوفرمايئ چه مونځ فاسدشوې دې يانه؟

**الجواب**:په مسئوله صورت کښې مونځ فاسد نه دې خو مکروه دې.

لان غاية الامر انه قرء وسط الاية وترک اولها، وقرء الصفة وترک الموصوف ولافساد فيه بدليل مافی ردالمحتار لو قرء آية طويله کآية الکرسی او المداينة البعض فی رکعة والبعض فی رکعة اختلفوا فيه علی قول ابی حنيفة قيل لا يجوز لانه ما قرء آية تامة فی کل رکعة وعامتهم علی انه يجوز لانه بعض هذه الايات يزيد علی ثلاث آيات قصار الخ﴿۱﴾، قلت فلو کانت القراءة من وسط الاية مفسدة لحکموا بالفساد وما قالوا قلت ومن قرء کراماً کاتبين يعلمون ما تفعلون بعد الفاتحة هل تصح صلوته اولا، فافهم، نعم الوقف بين الصفة والموصوف غير مستحسن کما فی فتاویٰ قاضی خان فليراجع ﴿۲﴾. وهوالموفق

﴿۱﴾(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص۳۳۸جلد ۱ مطلب واجبات الصلاة)

﴿۲﴾قال العلامه فخرالدين المعروف بقاضی خان: وان وصل فی غير موضعه او فصل فی غير موضعه فقد ذکرنا نحوه ان لم يتغير المعنیٰ تغيرا فاحشا بان وقف علی الشرط وابتدأ بالجزاء فقرأ ان الذين آمنوا وعملوا الصالحات ووقف وقفا تاما ثم ابتدأ بأُلئک هم خيرالبرية او قرأ من عمل صالحا من ذکر او انثی وهو ......(بقيه حاشيه په راروان مخ ....)

## په اولنی رکعت کښې دَ یوسورت حصه او په دویم کښې پوره سورت لوستل افضل نه دی

**سوال**:که په اولنی رکعت کښې دَیوسورت یوه رکوع اوپه دویم رکعت کښې پوره سورت اولوستلې شی نوآیاپه دې سره مونځ کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمدوصی الدین راولپنډی......۱۹۷۵ء/۱۱/۲۲

**الجواب**:داسې کول جائزدی دَاعتراض قابل نه دې.البته افضل او بهترنه دی.
**كما فی ردالمحتار ص ۵۱۰ جلد ۱ وكذا لو قرء فی الاولیٰ من وسط سورة او من سورة اولها ثم قرء فی الثانية من وسط سورة اخرىٰ او من اولها او سورة قصيرة الاصح انه لا يكره لاكن الاولیٰ ان لا يفعل من غير ضرورة ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## که په قرأت کښې تغیرفاحش نه وی راغلی نومونځ نه فاسدیږی

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې په مونځ کښې قرآن په غلطې طریقې سره وائی لکه دَ .انا .په ځائې .اِن.دَ.ارسلنا .په ځائې، ارسلنَ، دَ کیف فعل.لام اوږد کړی فعلا .وائی اوپه سورة الم نشرح کښې چه څومره دَ.کَ.ضمیرونه دَخطاب دی هغې ټولو کښې آواز اوږدکړی او.کا.وائی

**(بقيه حاشيه)مؤمن ووقف عليه ثم ابتدأ بقوله فلنحيينه حياة طيبة او فصل بين الوصف والموصوف بان قرأ انه كان عبداً ووقف ثم ابتدأ بقوله شكورا فمثل هذا لا يحسن ولا تفسد به الصلاة وكذا لو فصل بين قوله الا بذكر الله تطمئن القلوب لا تفسد الصلاة وان كان لا يحسن هذ الوقف لان مواضع الوصل والفصل لا يعرفها الا العلماء.**

**(فتاوىٰ خانيه علىٰ هامش الهنديه ص ۱۵۵ جلد ۱ فصل فی قرأة القرآن)**

**﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۰۴ جلد ۱ قبيل باب الامامة)**

دغه شان دَسورة کوثرپه .ان، کښې آواز اوږد کړی نو ،انا ،وائی ،نوپه دې سر مونځ فاسدیږی یانه؟ اوکه فاسدیږی نولوستونکې که چرته امام وی نود مقتدیانوبه څه حکم وی؟ بینوا توجروا

المستفتی محمدعلی حسن خَیل.....۲۸/۷/۱۹۷۵ء.

**الجواب**:په دې امام باندې ضروری ده چه مشق اوکړی او صحیح لوستونکې جوړشی البته دَفاحش تغیر نشتوالی په وجه باندې به مونځ نه فاسدیږی(۱). وهوالموفق.

## په قرآن کښې دَ وقف پریخودل دَ کفرموجب اودَمونځ فسادونکې نه دی

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ،لست علیهم بمصیطر، الا من تولی و کفر،فیعذبه الله العذاب الاکبر،الایة،په باره کښې ئې په حاشیه سجاوندی کښې دې آیت باندې لیکلې دی چه په ،کفر،باندې وقف کول نه دی پکار، که چاپه قصداوکړو نو کافر به شی،اوکه سهواً ئې اوکړو نومونځ به ئې فاسد شی.نودَمحشی داقول صحیح دې اودَقانون بالکل مطابق دې وجه ئې داده چه دلته ،الا، مستثنی منقطع ده او ددې آیت معنی داده چه ته په دوی باندې نګران نه ئې اوکوم کس چه مخ واړوی اوکفراوکړی نو الله تعالی به هغه ته لوئې عذاب ورکړی،نودې صورت کښې په ،کَفَرَ،باندې

(۱) قال فی الهندیه: (ومنها) ذکر حرف مکان حرف، ان ذکر حرفا مکان حرف ولم یغیر المعنی بان قرء ان المسلمون ان الظالمون وما اشبه ذلک لم تفسد صلاته وان غیرالمعنی فان امکن الفصل بین الحرفین من غیر مشقة کالطاء مع الصاد فقرأ الطالحات مکان الصالحات تفسد صلاته عند الکل وان کان لا یمکن الفصل بین الحرفین الا بمشقة کالظاء مع الضاد والصاد مع السین والطاء مع التاء اختلف المشائخ قال اکثرهم لا تفسد صلاته هکذا فی فتاویٰ قاضی خان.

(فتاویٰ عالمگیریه ص ۸۹ جلد ۱ الفصل الخامس فی زلة القاری)

په تیوسلی صورت کښې دفاحش غلطئ په وجه مونځ فاسد دې.(سیف الله حقانی)

وقف نه کیږی. اوچه کله ئي په کفر، باندې وقف اوکړو نودامعنی به شی. اې پیغمبر علیه السلام نه په دوی باندې نګران نه ئي مګرپه هغه چانګران ئي چه مخ ئي واړولو او کفرئې اوکړو. چه دا دَالله تعالی دَمرضئ بالکل خلاف دی. او متصل به شی، په دې صورت کښې قصداً وقف کول کفر کیدل او سهواًمونځ فاسد کیدل پکار دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید لعل شاه بخاری خطیب واه کینټ مدنی مسجد.....۴ شعبان۱۳۹۴ھ

**الجواب:** دَیو مسلمان واقف دا فاسده معنی مراد نه وی نو لهذا دا وقف به نه مفسد وی او نه به مکفروی. ﴿۱﴾

**کمافی منحة الفکر ص ٦٢ وحاصل معنی البیت بکماله انه لیس فی القرآن وقف واجب یا ثم القاری بترکه ولا وقف حرام یا ثم بوقفه لانهما لا یدلان علی معنی فیختل بهما الا ان یکون لذلک سبب یستدعی تحریمه و موجب یقتضی تاثیمه**

---

﴿۱﴾ قال الشیخ محمد امین ابن عابدین: (قوله او بوصل حرف بکلمة نحوا یاکنعبد او بوقف وابتداء لم تفسد وان غیر المعنی به یفتیٰ بزازیة) قال فی البزازیه الصحیح انه لا یفسد وفی المنیة لا یفسد علی قول العامة وعلی قول البعض یفسد وبعضهم فصلوا بانه ان علم ان القرآن کیف هوالا انه جری علی لسانه لا تفسد وان اعتقدان القرآن کذلک تفسد قال فی شرحها والظاهر ان هذا الاختلاف انما هو عند السکت علی ایا ونحوها والافلا ینبغی لعاقل ان یتوهم فیه الفساد ، واما قطع بعض الکلمة عن بعض فافتی الحلوانی بانه مفسد وعامتهم قالوا لا یفسد لعموم البلویٰ فی انقطاع النفس والنسیان وعلی هذا لو فعله قصداً ینبغی ان یفسد وبعضهم قالوا ان کان ذکر الکلمة کلها مفسداً فذکر بعضها کذلک والا فلا قال قاضی خان وهو الصحیح والاولیٰ الاخذ بهذا فی العمد وبقول العامة فی الضرورة وتمامه فی شرح المنیة (قوله او بوقف وابتداء) قال فی البزازیة الابتداء ان کان لا یغیر المعنی تغیراً فاحشا لا یفسد نحو الوقف علی الشرط قبل الجزاء والابتداء بالجزاء وکذا بین الصفة والموصوف وان غیر المعنی نحو شهد الله انه لا اله ثم ابتدأ بالاهو لا یفسد عند عامة المشائخ لان العوام لا یمیزون ولو وقف علی وقالت الیهود ثم ابتدأ بما بعده لا تفسد بالاجماع وفی شرح المنیة والصحیح عدم الفساد فی ذلک کله. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص٤٦٧ جلد ١ قبیل مطلب اذا قرأ تعالیٰ جد بدون الف لا تفسد)

کان یقصد الوقف علی مامن اله، رانی کفرت ونحوهما کماسبق من غیر ضرورة اذ لا یقصد ذلک مسلم واقف علی معناه واذالم یقصد فلا یحرم علیه الاالوصل ولا وقف فی مبناه، واما غیر واقفین علی معناه ففی الامرسعة علیهم لا کن لاحسن مع عدم القصد ان یجتنب الوقف علی مثل ذلک مطلقا للایهام علی خلاف المرام لا سیما اذا کان مستمعا فی ذلک المقام. وهوالموفق

## په قرآن کښې کتلوسره لوستل مونځ فاسدوی او دعائې حفظ والا مونځ ثابت دي

**الجواب**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه(۱) یوسړې یعنی مونځ ګزار په قرآن مجید کښې کتلوسره مونځ کولې شی یانه؟(۲).دَمونځ یو کتاب دې (کتاب مکمل) په هغې کښې دی چه دَهفتې په شپه یادَجمعې په شپه څلور رکعته نفل اوکړه یورکعت کښې سورة دخان،دویم کښې سورة یاسین دریم کښې سجده ا وپه څلورم کښې سورة الملک اولوله.نو آیاددې سورتونو تخصیص راغلې دې که نه؟ او داحدیث دې یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل الرحمن عرفانی خطیب ملټری کالج انجنیرنګ رسالپور

**الجواب**: په مونځ کښې دَقرآن شریف نه لوستل مونځ فاسدوی،(۱) (هدایه وغیره) هومذهب امام الائمه وهومکروه عندصاحبیه وجائزعندالشافعی رحمه الله وغیره

---

(۱) واذاقرأ الامام من المصحف فسدت صلاته عند ابی حنیفة رحمه الله وقالا هی تامة لانهاعبادة انضافت الی عبادة اخریٰ الا انه یکره لانه تشبه بصنیع اهل الکتاب ولابی حنیفة رحمه الله ان حمل المصحف والنظر فیه وتقلیب الاوراق عمل کثیر ولانه تلقن من المصحف فصار کما اذا تلقن من غیره ...... اما فساد الصلاة فبالعمل الکثیر.

(هدایه علی صدر فتح القدیر ص ۳۵۱ جلد ۱ باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)

داحدیث په ترمذی شریف کښې مروی دې.﴿۱﴾ اودَدې سورتونولوستل په یادو ضروری دی.

## په مونځ کښې دَ ثنا پریخودلو. درودشریف . دَ قاف په ځائې کاف اودَ الحمد په ځائې دَحمدوئیلوحکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږدَجمات امام هم په مونځ کښې سبحانک اللهم...الخ پریږدی.دَقاف په ځائې کاف او دَالحمد په ځائې حمد (بغیرالف لام نه) وائی.مونځ ډیرزرختموی.تردې چه کله کله درود شریف هم نه وائی.نوداسې قراة کول یعنی غلط لوستل دَمونځ فاسدونکې دی یانه؟ دغه شان که زمونږمونځ نه کیږی نوداسې امام معزول کول لازمی دی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالطیف امان گړهـ

**الجواب**:فقهائې کراموليکلي دی چه په سبحانک اللهم پریخودلوسره.الف لام پریخودلوسره،دَقاف په ځائې کاف وئیلوسره.اودَدرودشریف پریخودلوسره مونځ خلافِ سنت اومکروه کیږی.﴿۲﴾ پس دې امام صاحب دپاره ضروری دی چه دَدې شکایتونوازاله اوکړی یا پخپله مستعفی شی.باقی دَداسې

---

﴿۱﴾ عن ابن عباس انه قال بینما نحن عند رسول الله ﷺ اذ جاءه علی ابن ابی طالب فقال بابی انت وامی تفلت هذا القرآن من صدری فما اجد نی اقدر علیه فقال له رسول الله ﷺ یا اباالحسن افلا اعلمک کلمات ینفعک الله بهن وینفع بهن من علمته ویثبت ماتعلمت فی صدرک قال اجل یا رسول الله فعلمنی قال اذا کان لیلة الجمعة فان استطعت ان تقوم فی ثلث اللیل الآخر فانها ساعة مشهودة والدعاء فیها مستجاب وقد قال اخی یعقوب لبنیه سوف استغفرلکم ربی یقول حتی تاتی لیلة الجمعة فان لم تستطع فقم فی وسطها فان لم تستطع فقم فی اولها فصل اربع رکعات تقرأ فی الرکعة الاولیٰ بفاتحة الکتاب وسورة یاسین وفی الرکعة الثانیة بفاتحة الکتاب وحم الدخان وفی الرکعة الثالثة بفاتحة الکتاب والم تنزیل السجدة وفی الرکعة الرابعة بفاتحة الکتاب وتبارک الملک المفصل الخ.
(جامع الترمذی ص۱۹۶ جلد۲ ابواب الدعوات باب فی دعاء الحفظ)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدین: واما المتأخرون کابن مقاتل وابن سلام واسمعیل الزاهد وابی بکر البلخی والهندوانی وابن الفضل والحلوانی فاتفقوا......(بقیه حاشیه په راروان مخ....)

جماتونو امامان چه دهغوی باقاعده مناسب تنخواه مقرر نه وی، معزول کول دَعاقبت اندیشئ والا کارنه دي.داسي جماتونوته دَداسي امامانو نه بغیربل ځوک رغبت نه کوی. وهوالموفق

## په سورة العصرکښې وعملوا الصالحات پریخودلوسره مونځ واجب الاعاده نه دي

**سوال:** علمائي دينْ دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ امام په سورة العصر کښې پوره وعملوا الصلحت، پریخودو اومونځ ئې اوکړو، دَدې مونځ اعاده واجب ده یانه؟ ځکه چه اندازةً دري واړه آیتونه یوځائي کول واجب دی. اوددې جملې دَپریخودلو په صورت کښې اندازه دَ دریو آیتونونه کم شوه.نود اعادې په صورت کښې به باجماعت اعاده کول غواړی که ځان له؟ بینوا توجروا

المستفتی:حاجی محمدعارف.مولوی عبیدالله دکی بلوچستان.... ٢٠/جنوری١٩٧٥ء

**الجواب:** په دې خذف سره فحش تغیرنه لازمیږی، اوداباقی هم دَ انااعطیناک الکوثر(سوره الکوثر) نه کم نه دي، لهذا په صورت مسؤله کښې به اعاده نشی کولې. کمافی الدرالمختاروکذالوکانت تعدل ثلثا قصاراً،(هامش ردالمحتار ص٤٢٧ جلد١ وکذا الحروف الباقی تزیدعلی ثلثین.(١) .فقط.

---

(بقیه حاشیه) علی ان الخطاء فی الاعراب لا یفسد مطلقا ولو اعتقاده کفرا لان اکثر الناس لا یمیزون بین وجوه الاعراب قال قاضی خان وما قاله المتأخرون اوسع وما قاله المتقدمون احوط وان کان الخطأ بابدال حرف بحرف فان امکن الفصل بینهما بلا کلفة کالصاد مع الطاء بان قرأ الطالحات مکان الصالحات فاتفقوا علی انه مفسد وان لم یمکن الا بمشقة کالظاء مع الضاد والصاد مع السین فاکثرهم علی عدم الفساد لعموم البلوئ. (ردالمحتار ص٤٢٦ جلد ١ مطلب مسائل زلة القاری)

وقال الحصکفی: وسنتها ترک السنة لا یوجب فساد او لا سهوا بل اساء ة لو عامداً ...... والثناء...... والصلاة علی النبی فی القعدة الاخیرة. (الدرالمختار ص٣٥٢جلد ١ مطلب سنن الصلوٰة)

(١) (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص ٣٢٨ جلد ١ باب صفة الصلاة مطلب کل صلاة ادیت مع کراهة التحریم تجب اعادتها)

## په سورة البقره کښې دَ .من رسله. نه پس والقدرخیره وشره الخ لوستل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که چرته امام دَسورت البقره په قرأت کښې دَ من رسله نه پس په غلطئ سره والقدر خیره وشره مـن الله تعالٰی والبعث بعدالموت هم اووائی نوسجده سهو واجب ده که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق ای ۲۳۲راوالپنډی.......۲/محرم۱۳۹۲ھ

**الجواب:** صریح جزئیه ملاؤنه شوه دَقواعدوپه بنا باندې سجده سهو واجب نه ده. لعدم الموجبات ولیس ههناتاخیرالفرض.فقط.

## په مونځ کښې د صِرَاطَ په ځائې صَرَاطَ (فتحې سره) او دَ کذبوه په ځائې کذبوها اویغشاها په ځائې یغشیٰ لوستل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زیدپه مونځ کښې صَرَاطَ دَ کذبوه په کذبوها اود یغشاها ،په ځائې یغشٰی،وائی.حال داچه زید په خپل گمان کښې صحیح لولی.نوپه دې سره مونځ فاسدیږی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: پیش امام مسجد قیام الدین بونیر سوات.... ۳۰/جنوری۱۹۷۵ء

**الجواب:** په دې ټول صورتونوکښې نه مونځ فاسدوی لعدم التغیر الفاحش،اونه مکروه دې.لکونه من الزلل التی لایخلومنهااحدمن البشر(۱).وهوالموفق.

---

**(۱)** قال فی الخانیه : اما الخطاء فی الاعراب اذا لم یغیر المعنی لا تفسد الصلاة عند الکل. (فتاویٰ الخانیه علی هامش الهندیه ص ۱۳۹ جلد ۱ فصل فی قرأة القرآن)

وقال العلائی: ومنها زلة القاری فلو فی اعراب او تخفیف مشدد وعکسه او بزیادة حرف فاکثر نحو الصراط اللین او بوصل حرف بکلمة نحو ایا کنعبد او بوقف او ابتداء لم تفسد وان غیر المعنیٰ به یفتیٰ بزازیة.

(الدرالمختار ص۴۶۷ جلد ۱ مطلب مسائل زلة القاری)

## ضاد دَ ظاد او دال دواړه سره مشابه لوستل جائز دی

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه .ضاد .دَظاء سره مشابه دې اوکه دال سره په مونځ کښې څنګه وئيل پکار دی.په کوم سره مونځ کيږی.اوپه کوم سره نه؟خلق په دې کښې ډير اختلاف ساتی؟

بينوا توجروا

المستفتی: رشيد احمد هاشمی خطيب جامع مسجد عمراوچ شريف

**الجواب:** دَ حرف ضاد .په مخرج يا دَصفاتوپه تعين کښې هيڅ اختلاف نشته. البته دَ ادا کولو په وخت کښې مختلف آوازونه اوريدلې کيږی،دَاکثريت ميلان مشابه بالظاء طرفته دې اودَ بعضو ميلان مشابه بالدال طرف ته دې. وهوالمسموع من قراء الحرمين الشريفين وسائر العرب،وهوالموفق.

## په "حرف ضاد" کښې تشدد کول نه دی پکار

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که ضاد "چرته دَ مفخم

---

﴿۱﴾قال فی امداد الفتاوىٰ: ملا علی قاری در شرح مقدمه جزری گفته ليس فی الحروف مايعسر على اللسان مثله والسنة الناس فيه مختلفة فمنهم من يخرجه ظاء ومنهم من يخرجه دالا مهملة او معجمة ومنهم من يخرجه طاء مهملة ومنهم من يشبه دالا ومنهم من يشبه بالظاء المعجمة لكن لما كان تميزه من الظاء مشكلا بالنسبة الى غيره امر الناظم بتميزه لفظاً الخ، وفی ردالمحتار مانصه وفی التاتارخانيه ...... الخطاء اذا دخل فی الحروف لا يفسد لان فيه بلوى عامة الناس لا نهم لا يقيمون الحروف الا بمشقة اه وفيها اذا لم يكن بين الحرفين اتحاد المخرج ولا قربة الا ان فيه بلوى العامه كالذال مكان الضاد او الزاى المحض مكان الذال والظا مكان الضاد لا تفسد عن بعض المشائخ اه قلت فينبغی على هذا عدم الفساد فی ابدال الثاء سينا والقاف همزة كما هو لغة عوام زماننا فانهم لا يميزون بينهما ويصعب عليهم جداً كالذال مع الزاء ولا سيما على قول القاضی ابی عاصم وقول الصفار.
(امداد الفتاوىٰ ص ۱۸۵ تا ۱۸۷ جلد ۱ فصل فی التجويد)

دال یا ظاء معجمه یا دَخالص دال یا دَ دال سره مشابه اولولې نو دَدې حکم
به په دې صورتونو کښې څه وی. کوم یو صحیح دې او کوم باندې به مونږ
کښې فرق راځی؟ تفصیلاً اولیکئ ډیره مهربانی به وی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: اساتذه دارالعلوم حنفیه مظهرالعلوم میران شاه وزیرستان... ۲۱ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دَ "ضاد" په صفاتو او مخرج کښې هیڅ اختلاف نشته البته په آواز کښې ئې اختلاف شته.

**قال العلی القاری فی المنح الفکریه ص۳۸ والسنة الناس فیه مختفلة فمنهم من یخرجه ظاء ومنهم من یخرجه دالاً مهملة او معجمة، ومنهم من یخرجه طاء مهملة کالمصریین: ومنهم من یسمه ذالاً ومنهم من یشیربها بالظاء المعجمة، انتهیٰ،**

په موجوده وخت کښې دَ دال مفخم او مشابه بالظاءِ ډیر رائج دی. کوم خلق چه مشابه بالظاء ته ترجیح ورکوی، هم قراء الهندوا کثرا کابرناالدیوبندیین. هغه دَ "زلة القاری" د جزئیاتو نه دلیل نیسی. اودَتجوید دکتابونو په دې عبارت لولا الاستطالة لکانت الضادطاء باندې هم استدلال کوی. کښې نودَائمهٔ فن په کتابونو کښې داعبارت نشته چه ان صوت الضاد کصوت الظاء اوکوم خلق چه مشابه بالدال المفخمه ته ترجیح ورکوی هغوی دَاهل لسان عربو په اداسره دلیل نیسی.

**ویؤیدهم ان القرآن متواتر وهو عبارة عن اللفظ الدال علی المعنی فلا جرم ان یکون صوت الضاد متواتراً ایضا کسائر الحروف فعلیک بالتمیزبین ما بقسر القاسر وبین غیره**

دغه شان دَ "سیرافی" دَ کلام نه هم معلومیږی. چه ظاء او مشابه بالظاء دَ ضاد ضعیفه غیرفصیحه آواز دې.

**کمافی الرضی ص۳۷۸ شرح الشافیه، قوله الضاد الضعیفه قال السیرافی انها فی لغة قوم لغتهم ضاد (وهم العجم کلهم) فاذا احتاجوا الی التکلم بها فی العربیه اعتاصت علیهم فربما اخرجوها ظاء...... وربما تکلفوا اخراجها من مخرج الضاد فلم یتأت لهم فخرجت بین الضاد والظاء فافهم،**

پس بنا برحدیث شریف اقرءوا فکل حسن رواه

ابوداؤد (۱) دې حرف کښې سختی کول نه دی پکار او مونځ دواړه قسم ویونکی پسې جائز دې. (۲) کمافی الفتاوی الرشیدیه وفتاوی دارالعلوم دیوبند وامدادالفتاوی. (۳)

**نوټ**: ائمه تجوید فرمائی لولاالاطباق لصارت الطاء دالا منح ص ۱۵، حال داچه دا دَهیچامذهب هم نه دې چه دَطاء آواز دَ دال دَآواز پشان دې. هوفکـذا فی الضاد والظاء فافهم، وهوالموفق.

## په حرف ضاد. کښې دَ علماؤ اختلاف اودَتطبیق تفصیل.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې فرمائی چه دَضاد په باره کښې کوم یوصحیح دې اوکوم یو راجح دې، یعنی مشابه بالظاء یا مشابه بالدال، دغه شان ددې خپل مستقل مخرج څه دې؟ آیاپه مخرج به اکتفاکؤلې شی یا آواز وغیره به هم معتبروی. دغه شان دَمونځ دَصحیح والی دارومدار په کوم قسم باندې دې هم ددې وجې دَجماعت دَپریخودلو څه حکم دې؟ هغه ته فاسق وئیلې کیدې شی یانه؟ بینوا توجروا المستفتی: شمس العابدین هزاره.

---

﴿۱﴾ (مشکواة المصابیح ص ۱۹۱ جلد ۱ کتاب فضائل القرآن الفصل الثالث)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین: (قوله الا مایشق) قال فی الخانیه والخلاصة الاصل فیما اذا ذکر حرفامکان حرف وغیر المعنی ان امکن الفصل بینهما بلا مشقة تفسد والا یمکن الابمشقة کالظاء مع الضاد المعجمتین والصاد مع السین المهملتین والطاء مع التاء قال اکثرهم لا تفسد. (ردالمحتار ص ۴۶۸ جلد ۱ مطلب مسائل زلة القاری)

(۳) حضرت شیخ رشید احمد گنگوهی رحمه الله فرمائی چه دَ، د، ظ، ض، دَجدا حرف کیدلو او جدا مخرج کیدلو په باره کښې خو شک نشته، لیکن چه څوک معذور وی اودالفظ دَخپل مخرج نه نشی اداکولې اودَخپل طاقت مطابق کوشش هم کوی دَهغوی مونځ صحیح دې، کوم کس چه ئې دَ ډک دال په آواز کښې وائی هغه پسې مونځ کوئ، فقط (فتاوی رشیدیه ص ۲۷۲ د حرف ضاد اداکولو طریقه، باب القراءة).

شیخ اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائی: دَضاد په ځائې دال وئیل غلط ظاء وئیل هم غلط قصداً وئیل گناه ده لیکن دعموم بلوې په وجه دَ دواړو مونځ (باقی حاشیه په بل مخ)

**الجواب:** ضاد ،ظاء او دال جدا جدا حرفونه دی او دَهریو جدا جدا مخرج دي.

**قال فی الشافیه وللضاد اول احدی حافتیه وما یلیها من الاضراس وللظاء طرف اللسان وطرف الثنایا وللدال طرف اللسان واصول الثنایا العلیا انتهیٰ مختصراً مع تقدیم وتاخیر فی العبارة، وهکذا فی کتب التجوید،**

او دَصفاتوپه اعتبارسره هم داحروف جدا دی،اګرچه ضاد او ظاء صرف په صفت استطالت کښې جدا دی او ضاد او دال په اوو(۷) صفتونو کښې جدا دی،(کمالایخفی علی من راجع الی کتب التجوید).دغه شان دَعلماء فن نه منقول دی چه ضاد دَصفاتوپه اعتبارسره ظاء ته نزدي اودَمخرج په اعتبارسره دال ته نزدي.اوداهم منقول دی که په ضادکښې اطباق نه وی نو دال به شی لکه چه په ضادکښې استطالت نه وی نو ظاء به شی.کما صرح به فی المفتاح الرحمانی فی علم القراءة،لولاالاطباق فیها لکان الصادسیناوالظاء ذالا والضاد دالا،انتهی،دَدې نه ثابته شوه چه دَ ضاد دال سره "قرب تام" دې صرف اطباق پکښې ممیزدې بلکه دَ مخرج په اعتبارسره ضاد ،دال سره ډیرقرب لری.

**صرح به فی امداد الفتاویٰ ص۱۷۷ جلد ۱ وفی شرح الشاطبی ان هذا الثلث (الضاد، والظاء، والدال) متشابهة فی السمع، والضاد لا تفترق من الظاء الا باختلاف المخرج وزیادة الاسطالة فی الضاد ولولا هما لکانت احداهما عین الاخریٰ (مجموعة الفتاویٰ ص۲۶۹ جلد ۱)**

---

(باقی حاشیه) نه فاسدیږی.دَماهرتجویدنه مشق اوکړئ دَصحیح وئیلوکوشش اوکړئ که بیاهم غلطی کیږی نومعذوری ده(امداد الفتاوی ص۱۸۰جلد۱).

شیخ عزیزالرحمن دیوبندی فرمائی: که ضاد دَمفخم دال په صورت کښې د وئیلو په وجه دَمونځ نه کیدلو حکم اوشی نودَتول عربودَقاریانو اوعلماؤ او امامانوکښې به دَهیچا مونځ اونشی،اونه به چرته دَیومقتدی مونځ اوشی،ځکه چه هغوی ټول،دوالین،وائی نو معلومه شوه چه داحکم لګول غلط دی اوپه دې کښې حرج دې.(فتاوی دارالعلوم دیوبند ص۹۲جلد۴ باب زلة القاری).

دَدې تمهیدنه پس واضحه شوه چه ضاد اګرچه دَظاء او دال سره نژدې دې لیکن دَهغې په اداکولو کښې السنة الناس"مختلف دی.

**قال فی المنح الفکریة ص ۳۸ ولیس فی الحروف مایعسر علی اللسان مثله والسنة الناس فیه مختلفة فمنهم من یخرجه ظاء ومنهم من یخرجه دالا مهملةً او معجمة ومنهم من یخرجه طاء مهملة کالمصریین ومنهم من یشبهه دالاً ومنهم من یشبهه بها بالظاء المعجمة،**

فقهاء او اکثرمجودین دَمشابه بالظاء طرفته ډیرمائل دی. کمالایخفی علی من راجع الی باب زلة القاری والی کتب التجوید، او بعضې ائمه مشابه بالظاء ته قبیح اومستهجن وائی،

**قال الرضی فی شرح الشافیه ص ۳۷۸ والضاد الضعیفة، قال السیرافی انها فی لغة قوم لیس فی لغتهم ضاد فاذا احتاجوا الی التکلم بها فی العربیه اعتاصت علیه فربما اخرجها ظاء لاخراجهم ایاها من طرف اللسان واطراف الثنایا وربما تکلفوا اخراجها من مخرج الفساد فلم یتات لهم فخرجت بین الضاد والظاء انتهیٰ. وفی کتب اللغة ان هذا الحرف لم یوجد فی غیر العربیة،**

پس داختلاف باوجود دې حرف کښې سختی کول نه دی پکار بلکه چه څوک دَدې حرف په اداکولو کښې دَمخرج اوصفت خیال ساتی نوچه کوم آواز هم اوځی هغې ته به غلط نه وئیلې کیږی، هغه پسې اقتداء صحیح ده.اودا رائې دَمحققینوعلماؤ ده.مولاناګنګوهی رحمه الله فرمائی چه اصل حرف ضاد دې دادَاصل مخرج نه اداکول واجب دی، که نشی کیدلې نودَمعذورئ په سبب دَډک دال په آواز باندې هم مونځ کیږی.(فتاوی رشیدیه ص ۲۷۲)

اوفرمائی چه دال یا ظاء خالص په قصدسره وائی هغه پسې مونځ مه کوئ، لیکن چه څوک ئې دَډک دال په آوازکښې وائی هغه پسې مونځ کوئ (ص ۲۷۴) وفی فتاوی دارالعلوم دیوبند(ص ۴۷ جلد ۱).وآنچه ازقراء وعلماء عرب وعلماء حرمین شریفین مسموع مے شود ،ضادرا شبه الصوت بالدال

المهملة المعجمه مے خواند. تغلیط آن همه علماء وقرائهم سهل نیست.حضرت تهانوی رحمة الله علیه فرمائی دَضاد په ځائې دال وئیل هم غلط دی ظاء وئیل هم غلط دی،قصداً وئیل گناه ده. لیکن دَعموم بلوی په وجه دَ دواړو مونځ نه فاسدیږی.دَماهرتجوید نه مشق اوکړئ دَصحیح وئیلو کوشش اوکړئ.که بیاهم غلط اداکیږی نومعذوری ده.(امدادالفتاوی ص ١٨٠ جلد ١) دَدې تصریحاتو په بناء دې کښې سختی ښه نه ښکاری ځکه چه حقیقت دادې چه دمشاقین قاریانوآوازونه هم مختلف وی.فقط.

## دَ"ضاد" په مسئله کښې دَ توسع نه کار اخستل پکار دی.

**سوال:** مایقول العلماء والمفتین فی مسئله الضاد! وقع فی قومنا اختلاف فی جواز الصلوٰة وعدم جواز الصلوٰة بقراءة " ض" المشابه بالظاء مع انه قال الملا علی القاری وفی المحیط سئل الامام الفضلی عمن یقرء الظاء المعجمة مکان الضاد المعجمة او یقرء اصحاب الجنه مکان اصحاب النار او علی العکس، وان تعمد فی الصلوٰة فقد کفر وان قرء سهواً فسدت صلوته (شرح فقه اکبر ص٢٠٥) طبع کانپور، فالسوال هذا ان قراءة الظاء مکان الضاد جائز ام لا؟ بینواتوجروا

المستفتی:نقیب الله قریشی انوارالعلوم گوجرانواله...... ٢٢/ نومبر١٩٨٤ء

**الجواب:** اعلم ان کل مصل وقاری یقصد قراءة الحرف الواقع بین الصاد والطاء ولا یقصد احد منهم الظاء والدال، فلا وجه لفساد الصلوٰة عند هذا الامر، نعم کلام السیرافی المذکورفی شرح الشافیه صریح فی ان اخراج هذا الحرف بصوت الظاء او بالمشابه بصوتها غیر فصیح وکذا اداء اهل اللسان یؤیده ایضا، واما کلام قراء الهند فیخالفه فالاصل ان یوسع فیه﴿١﴾ ویویده ما رواه ابوداؤد مرفوعا کل حسن ﴿٢﴾ حسن قراءة الاعجمی

---

﴿١﴾ محتاط ومحققین علماء واکابرین هند مثل مولانا مفتی عزیز الرحمن ، واشرف علی تهانوی وغیرهما اگرچه ترجیح مے دهند به مشابه بالظاء لیکن فتوی به صحت نماز مخالف نیز مے دهند۔(ازمرتب)

﴿٢﴾ عن جابر قال خرج علینا رسول الله صلی الله علیه وسلم ونحن نقرء القرآن وفینا الاعرابی والعجمی فقال کل حسن رواه ابو داؤد .(مشکواة المصابیح ص ١٩١ جلد ١ فضائل القرآن الفصل الثالث)

والعربی مع کون هذا الحرف من خواص لغة العرب وفی المقام کلام طویل.وهوالموفق

## دَ مخرج او صفاتو خیال ساتلو باوجود چه هرځنګه آواز اوځی دَ اعتراض قابل به نه وی

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه "حرف ضاد" دَخپل صحیح مخرج نه اوباسي اودَتولو صفاتو خیال ئي هم اوساتي نو آواز به ئي دَظاء آواز طرفته ډیر مائل وی که دال طرفته؟ بینوا توجروا.

المستفتی: قاری عبدالعزیزقریشی بجوړی ګیټ پشاور.....۸/مئ ۱۹۸۴ء

**الجواب:** دَ سیرافی "دکلام نه معلومیږی کوم چه دَ رضی شرح شافیه په صفحه ۳۷۸ باندي لیکلي شوي چه داحرف ظاء یامشابه بالظاء دواړه وئیل قبیح اوغیرفصیح دی.بهرحال دَمخرج او صفاتودَخیال ساتلو نه پس چه هرآواز واوریدلي شی دَاعتراض قابل نه دي،ځکه دَمخرج اوصفاتو دَ خیال ساتلو باوجودهم دَبعضي قاریانو نه مشابه بالظاء اوریدلي شی.اودَبعضي عربونه مشابه بالدال المفخم اوریدلي کیږی.《 ۱ 》 :لهذا مونږداجرأت نه شو کولي چه دَیوي ډلي مونځ فاسد او واجب الاعاده اوګرځوؤ.《 ۲ 》 : وهوالموفق.

《۱》 عن جابر قال خرج علینا رسول اللهﷺ ونحن نقرء القرآن وفینا الاعرابی والعجمی فقال کل حسن رواه ابو داؤد .(مشکواة المصابیح ص ۱۹۱ جلد ۱ فضائل القرآن الفصل الثالث)

《۲》 قال العلامه ابن عابدین: وفی الخانیه والخلاصة الاصل فیما اذا ذکر حرفا مکان حرف وغیر المعنی ان امکن الفصل بینهما بلامشقة تفسد والا یمکن الا بمشقة کالظاء مع الضاد المعجمتین والصاد مع السین المهملتین والطاء مع التاء قال اکثرهم لا تفسد...... وان جریٰ علی لسانه او لا یعرف التمیز لا تفسد وهو المختار حلیة وفی البزازیه وهو اعدل الاقاویل وهو المختار، وفی التتارخانیه ......الخطاء اذا دخل فی الحروف لا یفسد لان فیه بلوی عامة الناس لانهم لا یقیمون الحروف الا بمشقة وفیها اذا لم یکن بین الحرفین اتحاد المخرج ولا قربه الا ان فیه بلوی العامه کالذال مکان الصاد اوالزای المحض مکان الذال والظاءمکان الضاد لا تفسد عند بعض المشائخ، قلت فینبغی ......(بقیه حاشیه په راروان مخ..)

## "ضاد" د ادا کولو په وخت کښې اول "غ" لګول یعنی "غضاد" وئیل.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږه پیش امام صاحب دَضاد په ځائې غضواد "یا غضاد" وائی اوصرف په "غیرالمغضوب" کښې ضاد وائی هغه پسې مونځ صحیح دې یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: جان محمدوانا ټانك ډی آئی خان..... ۱۷/ ربیع الثانی ۱۴۰۳ھ.

**الجواب:** دې پیشِ امام باندې ضروری ده چه دا حرف صحیح وائی او "اطباق" دې زده کړی، پخوانو پښتنو به هم داطباق په وخت دا آوازپیدا کولو.لکه طغې (ط) اوظغې (ظ) داسې امامانو پسې اقتدا کول یومشتبه کار دې. (۱). وهوالموفق

## دَ "ضاد" په باره کښې دَ علمائې دیوبند مسلک اوفتوی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په مونځ کښې په ولاالضالین" کښې ضاد څنګه وئیل پکار دی.مشابه بالدال یا بالظاء.دغه شان دَعلمائې دیوبند مسلک اوفتوی پکښې څه ده،شرعی حکم ئې بیان کړئ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: سیف الدین دکهیراټک..... ۱۹۸۳ء/۱۲/۲۴.

---

(بقیه حاشیه) علی هذا عدم الفساد فی ابدال الثاء سینا و القاف همزة کما هو لغة عوام زماننا فالهم لا یمیزون بینهما ویصعب علیهم جداً کالذال مع الزای.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۲۸ جلد ۱ مطلب اذا قرأ تعالیٰ جد بدون الف لا تفسد)

﴿۱﴾ قال الحصکفی رحمه الله: (و) لا (غیر الالثغ به) ای بالا لثغ (علی الاصح) کما فی البحر عن المجتبیٰ وحرر الحلبی وابن الشحنة انه بعد بذل جهده دائما حتی کالامی فلا یوم الامثله ولا تصح صلاته اذا امکنه الاقتداء بمن یحسنه . قال ابن عابدین رحمه الله: اللثغ بالتحریک قال فی المغرب هو الذی یتحول لسانه من السین......(بقیه حاشیه په راروان مخ..)

**الجواب:** دَدیوبند اکابرین اګرچه مشابه بالظاء ته ترجیح ورکوی لیکن هغوی هم په خپلو فتوؤکښې مشابه بالدال ویونکی تـه فاسدنه دی وئیلې.فلیراجع الی امدادالفتاوی.﴿۱﴾ .وفتاوی دارالعلوم دیوبند وفتاوٰی الرشیدیه.﴿۲﴾ :ځکه که په مشابه بالدال سره دَمونځ دَفساد حکم اوکړې.شی نوپه تمام عرب او حرمین شریفین کښې به دَهیچامونځ هم صحیح نه وی.اوداډیرلوئې جرأت دې.وهوالموفق.

**(بقیه حاشیه) الی الثاء وقیل من الراء الی الغین او اللام او الیاء زاد فی القاموس او من حرف الی حرف...... الاحوط عدم الصحة.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۴۳۰ جلد ۱ باب الامامة مطلب فی الالثغ)**

**﴿۱﴾** علامه اشرف علی تهانوی رحمة الله علیه فرمائی دَضاد په ځائې دال وئیل هم غلط ،ظاء،وئیل هم غلط قصداً وئیل ګناه ده لیکن دَعموم بلوی په وجه مونځ دَ دواړو نه فاسدیږی.چرته دَ ماهرتجویدنه مشق اوکړئ اودَصحیح وئیلوکوشش اوکړئ.که بیاهم غلط اداکیږی نو معذوری ده.(امدادالفتاوی ص ۱۹۲جلد ۱ فصل فی التجوید).

**﴿۲﴾** مفتی عزیزالرحمن دیوبندی فرمائی که ضاد دَال مفخم په آواز سره دَمونځ دَنه کیدلو حکم اوکړې شی نودټولو عربو قاریانو ،علماؤ او امامانو مونځونو کښې به دَهیچا مونځ اونه شی.اونه به دَیومقتدی مونځ اوشی.ځکه چه هغوی ټول دَوالین وائی.نومعلومه شوه چه داحکم لګول غلط دی.اوپه دې کښې حرج دې البته ښه خبره او بهتره داده چه دمخرج نه اداکولو کښې کوشش کوئی مه ظاء وائی اومه دال.اوحضرت مولانا رشیداحمد ګنګوهی قدس سره لیکلې دی(فتاوی رشیدیه ص ۲۷۲باب القراءة) چه ضاد دَمفخم دال په صورت کښې وئیل دال وئیل نه دی لکه چه،طاء،ت،نه ده وقس علیه، بلکه ناقص مخرج دې.دَضاد چه دَډک دال مشابه معلومیږی.(فتاوی دارالعلوم دیوبند ۹۲جلد ۴باب زلة القاری).حضرت مفتی اعظم هندفرمائی!ضاد ظاء وئیل غلط دی دغه شان دال وئیل هم غلط دی ضاد که دَخپل مخرج نه صحیح طریقې سره اداشی نودَهغې آوازبه دَظاء سره مشابه وی چه سغې ته ډک دال وئیلې شی.هغه هم دَضاد آواز دې اودَضاد اداکولو په نیت سره آواز ویستلې کیږی.لهذا دواړه ډلې په یوبل باندې دَاعتراض کولو حق نه لری.(کفایت المفتی ص ۱۳۲جلد ۲باب ثالث مخارج حروف کتاب التفسیروالتجوید)

## دَ مابنام په مونځ کښې اوږد قرأت جائز دې مګر افضل نه دې.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دمابنام په مونځ کښې اوږد قراءت جائز دې یانه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حاجی سید اسماعیل شاه مرزا اټک......... ۱۸/محرم ۱۴۰۴ھ.

**الجواب**: اوږد قرأت جائز دې لیکن افضل نه دې. (۱) وهوالموفق.

## دَ وقف لازم نه مراد موکد دې واجب نه دې.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په قرآن مجید کښې کوم ځائې کښې (م) لیکلې شوې وی دَهغې څه حکم دې. آیا دا وقف لازم او واجب دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: اکرام الحق راوالپنډی........ ۱۹۷۸ء/۱۰/۱۱/۹

**الجواب**: دَ وقف لازم نه مراد موکد دې واجب نه دې نوپریخودونکې ګناه ګار نه دې خصوصاً چه په ترجمه کښې مهارت نه لری.

**کمافی المنح الفکریه ص۶۲ وحاصل معنی البیت بحاله انه لیس فی القرآن وقف واجب یأثم به القاری بترکه ولا وقف حرام یأثم بوقفه لانهما لا یدلان علی معنی فیختل**

---

**﴿۱﴾** قال العلامه حصکفی رحمه الله: ویسن فی السفر مطلقا ای حالة قرار او فرار...... الفاتحة وجوبا وای سورة شاء وفی الضرورة بقدر الحال ویسن فی الحضر لامام ومنفرد ذکره الحلبی والناس عنه غافلون طوال المفصل ...... فی الفجر والظهر...... واوساطه فی العصر والعشاء وباقیه قصاره فی المغرب ای فی کل رکعة سورة لما ذکر ذکره الحلبی واختار فی البدائع عدم التقدیر وانه یختلف بالوقت والقوم والامام، قال ابن عابدین: وفی البحر عن البدائع والجملة فیه انه ینبغی للامام ان یقرأ مقدار ما یخف علی القوم ولایثقل علیهم بعد ان یکون علی التمام وهکذا فی الخلاصة. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۳۳۹، ۳۴۰ جلد ۱ مطلب السنة تکون سنة عین وکفایة فصل فی القراءة)

بهما الا ان یکون لذلک سبب (الی ان قال) واما غیر الواقفین علی معناه فمعنی الامر سعة علیهم الخ. وهو الموفق

## دَ شوندو خوزولو نه بغیر په فکر سره دَ مونځ قرأت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې بالکل صحیح اللسان ویونکې دې هغه بغیر دَشوندو خوزولو نه په زړه کښې قرأت کوی ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولانامحمد اکرم دره آدم خیل......۱۹۷۵ء/۱۰/۹.

**الجواب:** داسړې په تفکراو قرأت کښې فرق نشی کولې دې په تفکر کښې مبتلا دې دده مونځ صحیح نه دې. کمافی شرح التنویروادنی المخافة اسماع نفسه ویجری ذلک فی کل مایتعلق بالنطق(هامش ردالمحتارص۳۵۹جلد۱).﴿۱﴾.وهوالموفق.

## دَ"صراط الذین" په ځائې "سراط الذین" دَ مونځ فاسدونکې نه دی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که چادَ"صراط الذین" په ځائې باندې "سراط الذین" یعنی دَ صاد په ځائې ئې سین اولوستلو دې سره مونځ فاسدیږی یانه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل منان بی خیل پبی.

---

﴿۱﴾ قال العلام الحصکفی رحمه الله: (و) ادنی (الجهر اسماع غیره (و) ادنی (المخافتة اسماع نفسه)

قال ابن عابدین رحمه الله: اعلم انهم اختلفوا فی حد وجود القرأة علی ثلاثة اقوال فشرط الهندوانی والفضلی لوجودها خروج صوت یصل الی اذنه وبه قال الشافعی وشرط بشرالمریسی واحمد خروج الصوت من الفم وان لم یصل الی اذنه لکن بشرط کونه مسموعا فی الجملة حتی لو ادنی احد صماخه الی فیه یسمع ولم یشترط الکرخی وابوبکر البلخی السماع واکتفیا بتصحیح الحروف. (ردالمحتار ص ۳۹۴ جلد ۱ فصل فی القرأة)

**الجواب**:دَ"صراط" په ځائې سراط يا سرات لوستلوسره مونځ نه فاسديږي. كمافي شرح الكبيرص۴۴۷وان لم يكن الابمشقه كالظاء مع الضاد والصادمع السين والطاء مع التاء،فقداختلفوافاكثرهم على عدم الفساد لعموم البلوى. (۱).وهوالموفق

## امام ته فتحه ورکولو د پاره الفاظ

**سوال**:علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائى که امام په آخرى قعده باندې دکيناستلو په ځائې قيام اوکړى يا دَقيام په ځائې قعده باندې کينى نودې صورت کښې مقتدى دَفتحې ورکولودپاره کوم الفاظ اسعمال کړى؟ بينوا توجروا.

المستفتى: محمدعبدالرحيم عزيرمولې پورکبيروالاضلع ملتان...۱۹۷۹ء/۳/۱۹.

**الجواب**:دَعالم دپاره "سبحان الله" کافى دى اودَناواقفه دپاره التحيات يا الحمد لله سره خبرول ناجائز نه دى.(لانه كالتسبيح).(۲) .وهوالموفق.

## په ماسپخين او مازيګر کښې فاتحه خلف الامام

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائى چه دَظهر اوعصر په مونځ کښې چه کله امام خاموش وى مقتدى لره فاتحه لوستل پکار دى يانه؟ بينوا توجروا.

المستفتى:ليفټننيټ محمددين جده سعودى عرب..... ۳۰/شوال ۱۴۰۳ھ

---

﴿۱﴾ (غنية المستملى المعروف بالكبيرى ص ۴۴۴فصل فى بيان احكام زلة القارى)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن الهمام:او يدفع بالتسبيح لما روينا من قبل قوله لما روينا من قبل يعنى قول النبىﷺ اذا نابت احدكم نائبة وهو فى الصلوٰة فليسبح.

(فتح القدير ص ۳۵۶ جلد ۱ قبيل فصل ويكره للمصلى الخ)

**الجواب**: زمونږ حنفی مذهب کښې مقتدی دپاره فاتحه یابل څه صورت لوستل جائز نه دی.(۱) .وهوالموفق.

## دَ"لاصلاة الابفاتحة الکتاب"حکم دَ مقتدی په حق کښې نه دې

**سوال**:علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ په سعودیه عربیه کښې ملازمان یو ،په فاتحه خلف الامام باندې مونږ ته داحدیث پیش کولې شی "لاصلاة الابفاتحة الکتاب" نومونږ دپاره فاتحه خلف الامام لوستل پکاردی یا ممنوع دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:افضل خان پوسټ بکس نمبر۲۵۷سعودیه عربیه....۲۳/صفر۱۴۰۵ھ.

**الجواب**:فاتحه خلف الامام ممنوع ده،قرآن (۲).

---

**﴿۱﴾ قال الحصكفى رحمه الله: (والمؤتم لا يقرأ مطلقا) ولا الفاتحة فى السرية اتفاقا وما نسب لمحمد ضعيف كما بسطه الكمال (فان قرأ كره تحريما) ...... (بل يستمع) اذا جهر (وينصت) اذا اسر لقول ابى هريره رضى الله عنه كنا نقرأ خلف الامام فنزل واذا قرئ القرآن فاستمعوا له وانصتوا.**

**(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ۲۰۲ جلد ۱ فصل فى القرأة)**

**﴿۲﴾ وفى المنهاج :قوله تعالىٰ :واذا قرئ القرآن فاستمعوا له وانصتوا لعلكم ترحمون، وجه الاحتجاج بالاية انها نزلت فى شان القرأة خلف الامام فقد اخرج ابن ابى حاتم وابن مردويه والبيهقى فى كتاب القرآءة عن عبد الله بن المغفل انه قال انما نزلت هذه الآية فى القرأة خلف الامام واخرج سعيد بن المنصور وابن ابى حاتم والبيهقى عن محمد بن كعب القرظى قال كان رسول الله ﷺ اذا قرء فى الصلوٰة اجابه من وراءه اذا قال بسم الله الرحمن الرحيم قالوا مثل مايقول حتى تنقضى فاتحة الكتاب والسورة فنزلت، واخرج عبد بن حميد والبيهقى عن ابى العاليه ان النبى ﷺ كان اذا صلى باصحابه فقرء قرء اصحابه فنزلت واخرج البيهقى عن الامام احمد قال اجمع الناس على ان هذه الاية نزلت فى الصلوٰة.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۸۹ جلد ۲ باب فى القرأة خلف الامام)**

احادیثو ﴿۱﴾ اوآثارو﴿۲﴾ سره ئې ممنوعیت ثابت دې.اودَ"لاصلوة الابفاتحة الکتاب" حدیث ماسوائې مقتدی مراد دی.﴿۳﴾ .وهوالموفق.

﴿۱﴾ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول اللهﷺ انما جعل الامام لیؤتم به فاذا کبر فکبروا واذا قرأ فانصتوا رواه ابوداؤد والنسائی وابن ماجه .
(مشکواة المصابیح ص ۸۱ جلد ۱ باب القرأة فی الصلوٰة الفصل الثانی)

﴿۲﴾ عن انس قال صلی رسول اللهﷺ ثم اقبل بوجهه فقال اتقرؤن والامام یقرأ فسکتوا فسألهم ثلاثا فقالوا انا لنفعل قال فلا تفعلوا قال علی رضی الله عنه من قرأ خلف الامام فلیس علی الفطرة، عن عبد الله بن دینار عن عبد الله بن عمر رضی الله قال یکفیک قرأة الامام فهو لاء جماعة من اصحاب رسول اللهﷺ قد اجمعوا علی ترک القرأة خلف الامام.
(شرح معانی الاثار للطحاوی ص۱۲۸،۱۲۹ جلد ۱)

﴿۳﴾ وفی منهاج السنن: والجواب عن حدیث عبادة المختصر( لاصلاة لمن لم یقرأ بفاتحة الکتاب) انه محمول علی غیر المقتدی لئلا یتخالف النصوص ویؤید هذا لحمل ماروی احمد والبخاری فی جزء القرأة عن ابی هریرة عن النبیﷺ لا صلوٰة الا بقراء ةالفاتحة وما زاد، وماروی ابوداؤد وابویعلی وابن حبان باسناد صحیح عن ابی سعید قال امرنا ان نقرء بفاتحة الکتاب وما تیسر، وما روی مسلم عبادة قال قال رسول اللهﷺ لا صلاة لمن لم یقرء بفاتحة الکتاب فصاعداً ای ان الحکم لم ینته بالمذکور قبله بل یرتقی ویزید ویصعد الی ان ینضم ما بعده الی ماقبله، وهو منصوب علی الحال حذف عامله تخفیفا لکثرة استعماله ای فیزداد المقدار علی الفاتحة صاعداً...... وکذا یؤید هذالحمل ما اخرجه ابوداؤد ثم اقرء بام القرآن وبما شاء الله ان تقرء وماروی احمد ثم اقرء بام القرآن ثم اقرء بما شئت وما اخرج الطحاوی لا صلوٰة الا بفاتحة الکتاب فما فوق ذلک، وما اخرجه ابن عدی لا تجزئ صلوٰة لا یقرء فیها بفاتحة الکتاب وآیتین فصاعداً وفی روایة وثلاث ایات فصاعداً، وماروی الترمذی فی باب تحریم الصلوٰة وتحلیلها لا صلوٰة لمن لم یقرء بالحمد وسورة ووجه التائید ان السورة خلف الامام لاتقرء عند من یعتد بقولهم.
(منها السنن شرح جامع السنن ص ۱۹۴ جلد۲ باب فی القرأة خلف الامام)

## دَ مقتدی د پاره فاتحه خلف الامام لوستل دَ صحیح حدیث نه مخالفت دي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې خلق فاتحه خلف الامام لازمی ګرځوی. او وائی چه دَدې نه بغیرمونځ نه کیږی. اومونږ خو فاتحه خلف الامام نه وایو نو زمونږه مونځ کیږی یانه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمد اقبال خان کیری مراخان ضلع هزاره...... ۱۹۷۹ء/۷/۲.

**الجواب**: دَمقتدی دپاره فاتحه لوستل دَصحیح حدیث نه مخالفت دي. (۲).
حدیث دادې من كان له امام فقراءة الامام له قراة(۲). اودَقرآن نه هم مخالفت کول دی ځکه چه فاتحه هم قرآن دې.

---

(۱) قال الحصكفي رحمه الله: (والمؤتم لا يقرأ مطلقا) ولا الفاتحة في السرية اتفاقا وما نسب لمحمد ضعيف كما بسطه الكمال (فان قرأ كره تحريما) ...... (بل يستمع) اذا جهر (وينصت) اذا اسر لقول ابي هريره رضي الله عنه كنا نقرأ خلف الامام فنزل واذا قرئ القرآن فاستمعوا له وانصتوا. (الدر المختار على هامش ردالمحتار ص ۳۰۲ جلد ۱ فصل في القراة)

(۲) وفي منهاج السنن: ولنا في السرية بل في مطلق الصلوة قوله ﷺ من كان له امام فقراءة الامام له قراة، وهو حديث صحيح له طرق كثيرة وشواهد رواه ابو حنيفة وغيره مسنداً مرفوعا من حديث جابر بن عبد الله كما هو في كتاب الآثار لابي يوسف وكتاب الاثار لمحمد بن الحسن والموطأ له والطحاوى واحمد بن منيع، قالوا جميع مافي الباب رواه من الصحابة لمائية واقواها حديث جابر واقوى سنده عندهم طريق احمد بن منيع في مسنده وقال الشيخ الانور اجل اسانيده واحسنها اسناد الطحاوى من طريق ابن وهب عن الليث بن سعد عن ابي يوسف عن ابي حنيفة الخ، وهذا الحديث بعمومه يشمل الصلوة السرية والجهرية والفاتحة والسورة بعدها، واخرج محمد في موطأه عن اسرائيل قال حدثني موسىٰ بن ابي عائشه عن عبد الله بن شداد قال ام رسول الله ﷺ في العصر فقرء رجل خلفه فغمزه الذى يليه فلما ان صلى قال لم غمزتني قال كان رسول الله ﷺ قدامك فكرهت ان تقرء خلفه فسمعه النبي ﷺ فقال من كان له امام فان قرأته له قرآءة، وهذه الرواية صريحة في ان القصة كانت في السرية وان قوله عليه السلام......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه....)

او الله تعالی فرمائی: واذ اقرئ القرآن فاستمعواله وانصتوا الایة.(١). او تر اوسه پورې اهلِ حدیثو وغیره داثابته نه کړه چه پیغمبر ﷺ ترآخری وخته پورې دَفاتحه وئیلو اجازت ورکړې اومونږ بحمده تعالی داثابته کړې ده چه پیغمبر علیه السلام آخره کښې دَقرأة خلف الامام نه منع کړې ده.وهوالموفق.

## دَ فرض مونځ په دریم اوڅلورم رکعت کښې قرأت نه کول ثابت دی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ فرض مونځونو په روستنودؤو رکعتونوکښې دَ ,,قل هوالله احد"نه لوستلوڅه حکم دې؟ بینوا توجروا
المستفتی: عبدالرشید جهلم.

**الجواب:** هم داسې دَ پیغمبر ﷺ نه ثابت دی.(٢) .وهوالموفق.

---

(بقیه حاشیه) من کان له امام خرج فی تائید مانع القرآة فیکون القرأة خلف الامام ممنوعة فی السریة وفی الجهریة بالطریق الاولیٰ.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ١٩١ جلد٢ باب فی القراة خلف الامام)

وقال النیموی: لقوله علیه السلام من کان له امام فقرأة الامام له قرأة رواه الطحاوی والامام محمد فی موطاه واسناده صحیح.

(آثار السنن ص٨٧ جلد١ باب فی ترک القرأة خلف الامام)

وقال علیه السلام واذا قرأ فانصتوا الحدیث رواه مسلم.

(مشکواة المصابیح ص ٧٩،٨١ جلد١ باب القرأة فی الصلوٰة)

(١) (سورة الاعراف پاره:٩ رکوع:١٤ آیت: ٢٠٤)

(٢) قال الحصکفی: (واکتفی) المفترض (فیما بعدالاولیین ولیتین بالفاتحة) فانها سنة علی الظاهر ولو زاد لاباس به (وهو مخیر بین قرأة) الفاتحة وصحح العینی وجوبها .

قال ابن عابدین رحمه الله: (قوله ولو زاد لا باس) ای لو ضم الیها سورة لا باس به لان القرأة فی الاخریین مشروعة من غیر تقدیر والاقتصار علی الفاتحة مسنون لا واجب فکان الضم خلاف الاولیٰ وذلک لا ینافی المشروعیة والا باحة بمعنی عدم الاثم فی الفعل والترک کما قدمناه.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص٣٨٧ جلد ١ باب صفة الصلاة)

## دَ سورت فاتحه نه مخکښې دَ "بسم الله" وئیلو حکم.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَفاتحې نه مخکښې دَ بسم الله وئیل سنت دی یا مستحب دی یا واجب؟ دَشامی په صفحه ۴۵۱ جلد ۱ مصری نسخه کښې دواړه قولونه نقل دی. زیلعی صفحه ۱۹۴ جلد ۱. برجندی ص ۱۰۴. بحرالرائق ص ۳۵۳ جلد ۱. کبیری ص ۳۵۱ جلد ۱. په دې کتابونو کښې ئې وجوب صحیح او احوط لیکلې. په "هندیه" کښې ئې سنت مؤکده لیکلې. په دې ټولو کښې مفتٰی به قول کوم یو دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: شمس الرحمن فاضل حقانیه......۲۸/محرم ۱۴۰۱ھ.

**الجواب**: دامسئله مختلف فیهاده، په سعایه کښې دَدې مسئلې تفصیل موجود دې. بهرحال محققین دَوجوب قائل دی. او جمهورعلماء سنت کیدلو ته ترجیح ورکوی. (۱) . پس زیات احتیاط دا دې چه دَمقتدی نه علاوه نور مونځ گذار دَهر رکعت په اول کښې "بسم الله" وائی. وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال الحصکفی رحمه الله: (سمی) غیر المؤتم بلفظ البسملة لا مطلق الذکر کما فی ذبیحة وصوء (سرافی) (لاول کل رکعة) ولو جهریة (لا) تسن (بین الفاتحة والسورة مطلقاً) ولو سریة ولا تکره اتفاقاً وما صححه الزاهدی من وجوبها ضعفه فی البحر. قال ابن عابدین رحمه الله: وکذا صرح فی الذخیرة والمجتبیٰ بانه ان سمی بین الفاتحة والسورة المقروءة سراً او جهراً کان حسنا عند ابی حنیفة ورجحه المحقق ابن الهمام وتلمیذه الحلبی لشبهة الاختلاف فی کونها آیة من کل سورة بحر.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۳۶۲ جلد ۱ باب صفة الصلاة)

وفی منهاج السنن: (ف) التسمیة فی ابتداء کل رکعة سنة عند ابی حنیفة وفی روایة واجبة یلزم السهو بترکها وفی روایة الحسن یسمی فی الرکعة الاولیٰ لا غیر، وروی عن محمد استحباب التسمیة بین السورة والفاتحة، وعند ابی حنیفة وابی یوسف تجوز بلا کراهة ولاتسن، وصرح فی الذخیرة والمجتبیٰ بانه ان سمی بین الفاتحة والسورة کان حسنا ابی حنیفة سواء کانت تلک السورة مقروءة سراً وجهراً ورجح ابن الهمام وتلمیذه الحلبی هذا القول.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۱۲۰ جلد۲ باب فی ترک الجهر ببسم الله الرحمن الرحیم)

## دَ قرآن دَبعضې آیاتونونه پس دَ مستحب کلماتوپه مونځ کښې دَ وئیلوحکم

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې حافظان تراويح کوی نوهلته بعضې ځايونوکښې مستحب کلمات هم په جهرسره وائی لکه دَسورة الملک په آخرکښې "الله يأتينا به وهورب العالمين،او دَفبای حديث بعده يؤمنون نه پس "آمنابالله" اودَ "ان الله وملائكته الخ،نه پس درورد شريف او بعضې حافظان دَ سوره والضحی نه والناس پورې دَهرسورت په آخره کښې الله اكبرالله اكبرلااله الا الله والله اكبرالله اكبروللہ الحمد درې ځلې وائی.په دې الفاظو سره مونځ فاسدېږی يانه؟ بينوا توجروا.

المستفتی:حافظ محمدزمين بنوی کمره نمبر۷۸حقانيه...يكم مارچ۱۹۷۵ء.

**الجواب**:دَدې کلماتوزيادت دَمونځ په دوران کښې مکروه دی.البته دا زيادت دَکلام الناس نه کيدلوپه وجه مفسدنه دی.

**( كمافی المرقلة ص ٣٠٥ جلد٢) وعند ابی حنيفة لايجوز الا فی غيرها ای غير الصلوٰة﴿١﴾ قلت وبعض الروايات تدل على جوازها فی النوافل فی غير الجماعة ﴿٢﴾. وهوالموفق**

---

**﴿١﴾(مرقاة المفاتيح ص٥٨٥ جلد٢ باب القراء ة فی الصلاة الفصل الثانی)**

**﴿٢﴾قال العلامه حصكفی : وليس بينهما ذكر مسنون وكذا ليس بعد رفعه من الركوع دعاء وكذا لا ياتی فی ركوعه وسجوده بغير التسبيح على المذهب وماورد محمول على النفل. قال ابن عابدين: محمول على النفل ای تهجد او غيره خزائن وكتب فی هامشه فيه رد على الزيلعی حيث خصه بالتهجد، ثم الحمل المذكور صرح به المشائخ فی الوارد فی الركوع والسجود وصرح به فی الحلية فی الوارد فی القومة والجلسة وقال على اله ان ثبت فی المكتوبة فليكن فی حالة الانفراد او الجماعة والمامون محصورون لا يتثقلون بذلك كما نص عليه الشافعية ولا ضرر فی التزامه وان لم يصرح به مشائخنا فان القواعد الشرعية لا تنبو عنه كيف والصلاة والتسبيح والتكبير والقرأة كما ثبت بالسنة. (الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ص٣٧٣ جلد١ قبيل مطلب فی عقد الاصابع عند التشهد)**

## "الرحمن او الرحیم" کښې دَ "راء" سره دَ واو آواز ویستل

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې حضرات دَ راء وئیلوپه وخت کښې دَ واو آواز هم اوباسی.مثلاً اعوذبالله من الشیطان الروجیم،بسم الله الروحمن الروحیم،الروحمن الروحیم" یعنی راء ساکن کړی او دَ راء نه پس دَ واو آواز اوباسی.آیا دې سره مونځ کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:حسین احمد گړهی کپوره..........۲۹/جون ۱۹۷۵ء

**الجواب**:په هرمسلمان باندې ضروری ده چه مشق اوکړی اوصحیح ادائیگی کوی.البته په کومه غلطئ کښې چه عموم بلوي وی په هغې کښې دَمونځ دَفساد فتوی نشی ورکیدلې.(۱) .وهوالموفق.

## الحمد دَ الف لام نه بغیر "حمدلله" وئیل.

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ "الحمدلله" په ځائې "حمدلله"یعنی بحذف الالف واللام.وئیلوسره مونځ فاسدیږی یانه؟
بینوا توجروا

المستفتی:عبدالشکوربنوں..........۱۵/۸/۱۹۸۴ء.

---

**(۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: واما المتأخرون كابن مقاتل وابن سلام واسمعيل الزاهد وابي بكر البلخي والهندواني وابن الفضل والحلواني فاتفقوا على ان الخطاء في الاعراب لا يفسد مطلقا ولو اعتقاده كفرا لان اكثر الناس لا يميزون بين وجوه الاعراب قال قاضي خان وما قاله المتأخرون اوسع وماقاله المتقدمون احوط وان كان الخطاء بابدال حرف بحرف فان امكن الفصل بينهما بلاكلفة كالصاد مع الطاء بان قرأ الطالحات مكان الصالحات فاتفقوا على انه مفسد وان لم يكن الا بمشقة كالظاء مع الضاد والصاد مع السين فاكثرهم على عدم الفساد لعموم البلوىٰ.**

**(ردالمختار هامش الدرالمختار ص٤٦٦ جلد ١ مطلب مسائل زلة القارى )**

**الجواب**: دَالف لام په حذف سره معنی غلطه فاحشه نه گرځی لهذا دامونځ نه فاسدوی. کمافی الشامیه ص۵۹۱ جلد۱ وان ترک کلمة من اية فان لم يتغير المعنى..... لاتفسد. (۱) . وهوالموفق.

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۶۸ جلد ۱ مطلب اذا قرأ تعالىٰ جد بدون الف لا تفسد باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها)

# باب المدرک والمسبوق واللاحق

## که مقتدی رکوع یاسجده دَامام سره اونکړل نوهغه به څه کوی؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې دَ اول نه امام سره شریک دې.په مینځ کښې ورته رکوع یاسجده دَامام سره ملاؤ نه شوه،بیائې هغه وخت کښې رکوع یاسجده ځانته ادا کړه نومونځ اوشویانه؟ بینوا توجروا.

المستفتی:حافظ تعویذګل نریاب هنګو......۲۸/ربیع الاول ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** داسړې لاحق دې،دافوت شوې رکوع وغیره به کوی او دَامام سره به شریک شی.وهوالموفق.

## که امام دَ آخری قعدې نه پس قیام اوکړی نومسبوق به څه کوی.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کله امام سهوا دَ آخری قعدې نه اودریږی قیام اوکړی نومسبوق به تابعداری کوی یانه؟ دغه شان دَمسبوق مونځ په سهواً او قصداً دواړو صورتونو کښې څه حکم لری؟

بینوا توجروا.

المستفتی:عبدالحمیدلدهاړی آئی خان.

**الجواب:** واضحه دې وی چه په صورت مسئوله کښې دَفسادعلت په "موضع الانفراد کښې اقتداء" ده.

---

(۱) قال العلامة حلبی رحمه الله:وامام اللاحق فقد یکون سبب مافاته النوم اوسبق الحدث والاشتغال بالوضوء او زحمة بحیث لم یجد مکانا وحکمه ان یقضی ما فاته او لاثم یتابع امام. (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص ۴۳۹ فصل فی سجود السهو)

کمافی البحرص٩٦ جلد١(١).وردالمحتارص٥٦٠ جلد١.(٢).اوداعلت عمداً اوسهواً دواړه صورتونوکښې متحقق دې اودادې هم واضحه وی چه دَفسادپه صورت کښې سلام ګرځول یوبې کاره حرکت دې.وهوالموفق.

## که امام دَ قعده اولی نه قیام ته لاړشی او مقتدی تشهد نه وی پوره کړې نو څه به کوی؟

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مقتدی اولنئ قعده دَتشهد پورې پوره کړې نه وی او امام دَقیام دپاره اودریدلو په مقتدی باندې

---

﴿١﴾ قال ابن نجيم رحمه الله: وهو سهو لان كلامهم فيما اذا قام الى قضاء ماسبق به وهو فى هذه الحالة لا يصح الاقتداء به اصلا فلا استثناء ولو ظن الإمام ان عليه سهو فسجد للسهو فتابعه المسبوق فيه ثم علم انه ليس عليه سهو ففيه روايتان والاشهران صلاة المسبوق تفسد لانه اقتدى فى موضع الانفراد قال الفقيه ابو الليث فى زماننا لا تفسد لانه الجهل فى القراء غالب كذا فى الظهيريه ولو لم يعلم لم تفسد فى قولهم كذا فى الخانية ولو قام الامام الى الخامسة فى صلاة الظهر فتابعه المسبوق ان قعد الامام على رأس الرابعة تفسد صلاة المسبوق وان لم يقعد لم تفسد حتى يقيد الخامسة بالسجدة فاذا قيدها بالسجدة فسدت صلاة الكل لان الامام اذا قعد على الرابعة تمت صلاته فى حق المسبوق فلا يجوز للمسبوق متابعته ولو نسى احد المسبوقين المتساويين كمية ما عليه فقضى ملاحظا للآخر بلا اقتداء به صح. (البحر الرائق ص٣٧٨ جلد ١ باب الحدث فى صلاة)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله تفسد) اى صلاة المسبوق لانه اقتداء فى موضع الانفراد ولان اقتداء المسبوق بغيره مفسد كما مر (قوله والا) اى وان لم يقعد وتابعه المبسوق لا تفسد صلاته لان ما قام اليه الامام على شرف الرفض ولعدم تمام الصلاة فان قيدها بسجدة انقلبت صلاته نفلا فان ضم اليها سادسة ينبغى للمسبوق ان يتابعه ثم يقضى ما سبق به وتكون له نافلة كالامام ولا قضاء عليه لو افسده لانه لم يشرع فيه قصدا رحمتى (قوله فالاشبه الفساد) وفى الفيض وقيل لا تفسدو به يفتى وفى البحر عن الظهيرية قال الفقيهه ابوالليث فى زماننا لا تفسد لان الجهل فى القراء غالب.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص٤٤٣ جلد ١ قبيل باب الاستخلاف)

خو اقتداء واجب ده نودې به اودریږي یاتشهدبه پوره کوی.ځکه چه دتشهد په اندازه باندې کیناستل هم واجب دی.اوس به مقتدی څه کوی؟ بینوا توجروا
المستفتی:حاجی گل محمد سکندرآباد کالونی حیدر آباد.... ۱۹۷۲ء/۵/۸

**الجواب**:دې سړی دپاره ضروری ده چه دتشهد پوره کولو نه پس قیام اوکړی.
فی الهندیه ص ۹۴ جلد ۱ الامام اذا تشهد وقام من القعدة الاولیٰ الی الثالثه فنسی بعض من خلفه التشهد حتی قاموا جمیعاً فعلی من لم یتشهد ان یعود ویتشهد ثم یتبع امامه وان خاف ان تفوته الرکعة ، انتهی﴿۱﴾ فافهم وتدبر وصرح به فی ردالمحتار ص ۴۳۹ جلد ۱ )﴿۲﴾. وهوالموفق

## دَ سحر مونځ شروع شو نو مقتدی به دَ فجر سنت کوی شریک کیږی به یا سنت به پریږدی؟

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه امام دَفجر مونځ شروع کړې دې نو مقتدی څه وخت دَامام سره شریک شی؟چه هغه دَفجرسنت هم نه دی کړې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولوی فضل مولی گل ډهیری مردان.

**الجواب**: فقهائې کراموليکلې دی چه دَآخرنی رکعت (یاقبل السلام علی قول ابن الهمام) دَموندلو امید وی نوسنت به کوی اوشریک به شی گنې نوسنت به پریږدی.﴿۳﴾ .وهوالموفق.

---

﴿۱﴾(فتاویٰ عالمگیریه ص ۹۰ جلد ۱ الفصل السادس فیما یتابع الامام وفیما لا یتابعه)
﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله:والحاصل ان متابعة الامام فی الفرائض والواجبات من غیر تأخیر واجبة فان عارضها واجب لا ینبغی ان یفوته بل یأتی به ثم یتابع کما لو قام الامام قبل ان یتم المقتدی التشهد فانه یتمه ثم یقوم.
(ردالمختار هامش الدرالمختار ص۳۴۷ جلد ۱ مطلب مهم فی تحقیق متابعة الامام)
﴿۳﴾ قال العلامه المرغینانی: ومن انتهیٰ الی الامام فی صلاة...... (بقیه حاشیه په راروان مخ..)

## چه په څلور رکعتومونځ کښې یورکعت اومومی نودَ باقی مونځ پوره کولو طریقه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو مونځ گزار دې په څلور رکعتونووالا مونځ کښې دَامام سره آخرنې رکعت لاندې کړی او درې رکعتونه ترې نه شوې وی باقی مونځ به عندالاحناف په کومه طریقه پوره کوی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل حق صاحب.....١٩٧٢ء/٢/٨.

**الجواب:** دامسبوق به دَ اودریدلونه پس په دوه رکعتونوکښې ضم دسورة اوکړی.اوردپه دریم رکعت کښې به صرف فاتحه وائی.اودَمفتی به قول په بناء باندې به دَاولنی رکعت نه پس تشهدوائی.

**فی الدرالمختار ویقضی اول صلوته فی حق قراء ة وآخرها فی حق تشهد فمدرک رکعة من غیر فجر یاتی بر کعتین بفاتحة وسورة وتشهد بینهما وبرابعة الرباعی بفاتحة (هامش ردالمحتار ص٥٥٨ جلد١) ﴿١﴾. فقط**

## دَ مسبوق د پاره دَ ماښام باقی دوه رکعتونه دَ پوره کولو طریقه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مقتدی دَ ماښام په

---

**(بقیه حاشیه) الفجر وهو لم یصل رکعتی الفجران خشی ان تفوته رکعة ویدرک الاخری یصلی رکعتی الفجر عند باب المسجد ثم یدخل لانه امکنه الجمع بین الفضیلتین وان خشی فوتهما دخل مع الامام لان ثواب الجماعة اعظم والوعید بالترک الزم بخلاف سنة الظهر.وقال العلامه ابن الهمام: ولو کان یرجوا ادراکه فی التشهد قیل هو کادراک الرکعة وقال الخوارزمی فی الکفایة وحکی عن الفقیه ابی جعفر انه قال علی قول ابی حنیفة وابی یوسف یصلی رکعتی الفجر لان ادراک التشهد عندهما کادراک الرکعة.**

**(هدایه مع فتح القدیر ص٤١٢ جلد١ باب ادراک الفریضة)**

**﴿١﴾ (الدرالمختار ص٤٤١ جلد١قبیل باب الاستخلاف)**

مونځ کښې [illegible] سره به دریم رکعت کښې شریک شو او س به دامقتدی به باقی [illegible] کښې [illegible] سورت هم لولی یاصرف په یو رکعت کښې به وائی [illegible] بینوا توجروا

[illegible] ۱/۲/۱۹۸۲ء

**الجواب:** دامقتدی به دسلام نه پس پاسی فاتحه او سورت به اووائی رکوع او سجده به اوکړی او التحیات به اووائی، اودهغې نه پس به دویم رکعت کښې فاتحه او سورت اووائی اودرکوع او سجدې نه پس به کینی التحیات به اووائی او دریم رکعت ئې دَ امام سره ادا کړې دي.﴿ ۱ ﴾ .وهوالموفق.

## دَ مسبوق په سهوسره سلام ګرځول اودَ چا په یادولو سره دَ باقی مونځ د پاره اودریدل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که مسبوق سهواً سلام اوګرځوی اوبل مقتدی ده ته دَمسبوقیت یادداشت اوکړی، اومسبوق په هغې باندې دَعمل کولو دپاره اودریږی نوداسې کول څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......... ۳/۴/۱۹۸۴ء.

**الجواب:** احتیاط دا دې چه دَفتحې په وخت کښې سوچ اوکړی اوپه هغې عمل اوکړی.﴿۱﴾ .وهوالموفق.

## دَ لاحق د پاره قرأت ممنوع دې لیکن دَسجده سهو موجب نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَلاحق دپاره په باقی مونځ کښې قرأت کول څنګه دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولوی حبیب الله کلې ملک شاهنواز کوهاټ.... ۲۴/۵/۱۹۸۴ء

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحلبی: لو ادرک مع الامام رکعة من المغرب فانه یقرأ فی الرکعتین الفاتحة والسورة ویقعد فی اولهما لانها ثنائیة ولو لم یقعد جاز استحسانا لاقیاسا ولم یلزمه سجود السهو. (غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص۴۳۸ فصل فی سجود السهو)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: حتی لو امتثل......(بقیه حاشیه په راروان مخ....)

**الجواب**: دَ لاحق دپاره قرأت ممنوع دي لیکن د سجده سهوې موجب نه دي (۱) وهو الموفق.

## د یو مقتدي په صورت کښې چه بل مقتدي راشي نو امام به مخکښې ځي که مقتدي به روستو کیږي

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو امام او مقتدی نزدې نزدې ولاړ وی. دې وخت کښې دویم مقتدی راشی او اودریږی نو امام به مخکښې ځی یا مقتدی به روستو راځی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالحمید........ ۱۹۷۴/۴/۲۳ء.

**الجواب**: بهتره دا ده چه مقتدی روستو راشی قال العلامة الشامی وهواولی من تقدمه لانه متبوع (ردالمحتار ص ۵۳۱ جلد ۱). (۱). او په ظاهر قدمونه او چتول او شاته کیدل پکاردی. لخلوه عن التکلف ولم اجده صریحاً. وهو الموفق.

## دَ لاسونو ترلونه بغیر تکبیرتحریمه وئیل او امام سره رکوع ته تلل.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې راغې امام ئې

(بقیه حاشیه) امر غیره فقیل له تقدم فتقدم...... فسدت بل یمکث ساعة ثم یتقدم برائه.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۵۹ جلد ۱ باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)

﴿۱﴾ قال ابن عابدین رحمه الله: وبیانه کما فی شرح المنیة وشرح المجمع انه لو سبق برکعة من ذوات الاربع ونام فی رکعتین یصلی اولا ما نام فیه ثم ما ادرکه مع الامام ثم ماسبق به فیصلی رکعة مما نام فیه مع الامام ویقعد متابعة له لانها ثانیة امامه ثم یصلی الاخریٰ مما نام فیه ویقعد لانها ثالیته ثم یصلی التی انتبه فیها ویقعد متابعة لامامه لانها رابعة وکل ذلک بغیر قراءة لانه مقتد ثم یصلی الرکعة التی سبق بها بقراءة الفاتحة وسورة والاصل ان اللاحق یصلی علی ترتیب صلاة الامام.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۳۰ جلد ۱ قبیل باب الاستخلاف)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۲۰ جلد ۱ باب الامامة)

په رکوع کښې اوموندلو نو په ولاړه ئې تکبیرتحریمه اووې اودَلاسونوتړلونه بغیرپه رکوع کښې دَامام سره شریک شو. اوس یو سړې وائی چه دده مونځ اونه شو نولهذا اعاده پرې واجب ده. ځکه چه دَتکبیرتحریمې نِه پس لاس په نامه نیم منټ اودریدل ضروری دی اووائی چه دامسئله په بهشتی زیور کښې ده. صحیح مسئله څه ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نیازمند حبیب الله.....۷۴ء/۳/۳۰.

**الجواب:** په ولاړه تکبیرتحریمه وئیلو نه پس متصل رکوع ته دَتلو نکی مونځ صحیح دې.

**کمافی الدرالمختار ومنها القیام بحیث لو مد یدیه لاینال رکبتیه ومفروضه وواجبه ومسنونه ومندوبه بقدر القرأة فیه فلو کبر قائماً فرکع ولم یقف صح لان ما اتی به من القیام الی ان یبلغ الرکوع یکفیه انتهی﴿۱﴾.**

یعنی دَحالتِ استوانه واخله تردَلاسونود کونډو پورې رسیدونه مخکښې پورې قیام دې اوحضرت تهانوی رحمه الله چه دَعدم صحت کوم حکم کړې دې داهغه وخت دې چه دَرکوع په حالت کښې تحریمه اوکړی. کماصرح به﴿۲﴾ وهوالموفق

## مسبوق به دَ سجده سهوې والا امام سره په سجده سهوه کښې شریک وی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په امام باندې سجده سهوه لازمه شوې وه اومسبوق دَامام سره په مونځ کښې شریک شو نومسبوق به هم دَامام سره سجده سهوه کوی یانه. دغه شان دَمسبوق سلام ګرځولو سره

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۳۲۸ جلد ۱ مبحث القیام باب صفة الصلاة)

﴿۲﴾ شیخ اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائی بعضې بې خبره چه کله جمات ته راشی اوامام په رکوع کښې وی نود تیزئ په خیال سره راتلو سره ټیټ شی، اوهم په دغه حالت کښې تکبیر تحریمه وائی. دهغوی مونځ نه کیږی ځکه چه تکبیرتحریمه دمونځ دصحیح والی شرط دې او د تکبیرتحریمه دپاره قیام شرط دې چه کله ئې قیام اونکړو نوهغه صحیح نه شو اوچه کله هغه صحیح نه شو نومونځ څنګه صحیح کیدې شی.

(بهشتی ګوهر(بهشتی زیور) ص۸۸۵ تکبیرتحریمه کابیان)

مونځ فاسدیږی یانه؟ دَامام سهوبه دَمسبوق شریکیدلونه پس معتبروی یااول والا که دې کښې څه فرق وی نوبیا اوښایئ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ تعویذګل ترناب پیښور.

**الجواب**: دامسبوق به دَامام سره په سجده سهوه کښې شریک وی سلام به نه ګرځوی اوکه دیادسره ئې سلام اوګرځولو نومونځ به ئې فاسد شی.

**کمافی الدرالمختار رابعها لو قام الی قضاء ما سبق به وعلی الامام سجدتا سهو ولو قبل اقتداء ه فعلیه ان یعود (هامش ردالمحتار ص٥٥٨جلد١) ﴿١﴾ وفی الهندیه ص١٣٦ جلد ١ سهو الامام یوجب علیه وعلیٰ من خلفه السجود کذا فی المحیط ولا یشترط ان یکون مقتدیا به وقت السهو حتی لو ادرک الامام بعد ما سها یلزمه ان یسجد مع الامام تبعاً له ﴿٢﴾. وهوالموفق**

## مسبوق به په خپلو اولنو دوه رکعتونو کښې سورت هم وائی.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یومونځ ګزاری دَامام سره(دَ ماسپخین دَمونځ) آخری دوه رکعتونه اداکړل.اوس به دامونځ ګزار په خپلو اولنودوه رکعتونوکښې سورت وائی که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل رازق مانکی صوابی........١٩٧٩ء/١٧/۴.

**الجواب**: عندالاحناف به داسې یعنی مسبوق دواړه رکعتونوکښې ضم دَسورت کوی.ځکه چه مسبوق دَمونځ اول رکعتونه اداکوی.

**فی الدرالمختار : ویقضی اول صلاته فی حق قراء ة وآخرها فی حق تشهد، قال العلامة الشامی: هذا قول محمد وظاهر کلامهم اعتماد قول محمد وزفر**

---

**﴿١﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۴۲جلد١ قبیل باب الاستخلاف)**

**﴿٢﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ص١٢٨ جلد١ فصل سهو الامام یوجب علیه وعلی من خلفه السجود)**

مختصراً (ص۵۵۸ جلد ۱)﴿۱﴾. وفی الهندیه ص ۹۶ جلد ۱ ولو ادرک رکعتین قضیٰ رکعتین بقراء ة ولو ترک فی احداهما فسدت﴿۲﴾. وهو الموفق

## دَ مدرک نه دَمونځ دَرکن پاتې کېدلوپه صورت کښې دَمونځ حکم.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په رمضان کښې مقتدی په وترو کښې دَامام سره شریک وو مقتدی دعائې قنوت پوره کولو چه امام دَرکوع نه قومې ته لاړلو. نو اوس به دا سړې خپل مونځ څنګه ادا کوی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم....... ۱۹۸۲ء/۵/۲۵.

**الجواب:** مقتدی دې فوراً رکوع اوقومه اوکړی اوپه سجده کښې دې دَامام سره شریک شی. اګرکه متابعت مقارنه یامتابعت متعاقبه ترې نه اونه شو، لیکن دَمتابعت بالتاخیرپه بنیادبه دده مونځ صحیح وی. لکه څنګه چه دَلاحق دَمونځ دې. که رکوع اوقومه پریږدی اوسمدستی دَامام متابعت اوکړی نودَامام دَ اوزګاریدو نه پس به یورکعت مستقل اوکړی مونځ به صحیح شی. اوکه بالکل رکعت ئې ادانکړو نومونځ به واپس راګرځوی.

فی ردالمحتار ص ۴۷۱ جلد ۱ نعم تکون المتابعة فرضا بمعنی ان یأتی بالفرض مع امامه او بعده کما لورکع امامه فرکع معه مقارناً او معاقبا وشارکه فیه اوبعد مافرغ منه فلو لم یرکع اصلا او رکع ورفع قبل ان یرکع مع امامه ولم یعد معه او بعده لبطلت صلاته الخ﴿۳﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۴۴۱ جلد ۱ مطلب فی احکام المسبوق والمدرک واللاحق باب الامامة)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ص ۹۱ جلد ۱ الفصل السابع فی المسبوق واللاحق)

﴿۳﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۳۴۸ جلد ۱ مطلب المراد فی المجتهد فیه)

## په مسبوق باندې دَ امام سره دویم رکعت کښې تشهد وئیل واجب دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې په څلور رکعته مونځ کښې دَامام سره په دویم رکعت شامل شو اوس چه کله امام په دویم رکعت باندې کیناستلو نومسبوق باندې هم داتشهدوئیل واجب دی یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم..... ١٩٨٠ء.

**الجواب:** په مسبوق باندې داتشهدوئیل واجب دی.

**فی ردالمحتار ص ١٥٥ جلد ١ کمن ادرک الامام فی القعدة الاولیٰ فقعد معه فقام الامام قبل شروع المسبوق فی التشهد فانه یتشهد تبعاً لتشهد امامه﴿١﴾. وهوالموفق**

## دَ امام سره په آخری قعده کښې مسبوق د پاره دَ درود شریف او دعا وئیلو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مسبوق (چانه چه یو یا دوه رکعتونه شوې وی) دَامام سره شامل شی نو دَامام سره به درودشریف او دعاګانې هم وائی یانه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: سعدالله جان هنګو....... ١٩٨٣ء/٩/٢٢.

**الجواب:** دامسبوق دَامام په آخری قعده کښې دَوسط صلاة په حکم کښې دې. دادرود شریف او دعابه نه وائی اوکه تشهدئې زرختم کړونوبیا بیا دې وائی.

**اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً عبده ورسوله وائ، وفی الهندیه ص ٩١ جلد ١ ومنها ان المسبوق ببعض الرکعات یتابع الامام فی التشهد الاخیر واذا اتم التشهد لا یشتغل بما بعده من الدعوات ثم ما ذا یفعل تکلموا فیه وعن ابن شجاح**

---

﴿١﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ١٥٥ جلد ١ باب سجود السهو)

**انه یکرر التشهد ای قوله اشهد ان لا اله الا الله وهو المختار ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## دَ مسبوق مقتدی د پاره دَ ثناء او تعوذ وئیلو حکم.

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې دَامام سره په دویم یا دریم رکعت کښې شامل شو. نودَهغه دپاره دَثناء اودَتعوذ څه حکم دې. وائی به که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: امیرالله چترال.

**الجواب:** که مسبوق امام په رکعت کښې اومومی کوم کښې چه قرأت کیږی نودامسبوق مقتدی به ثنا نه وائی بلکه قرأت به اوری. اوچه کله دَقضاشوی رکعت دپاره اودریږی نوثنابه وائی اودَامام ابویوسف په نزدباندې دَامام سره ملاویدلو وخت کښې تعوذ وئیل مستحب دی. اوروستویعنی دَامام دَفراعت نه پس به دَقرأت نه مخکښې تعوذ وائی.

**وفی الخلاصة المسبوق اذا ادرک الامام فی القراءة التی یجهر فیها لا یأتی بالثناء فاذا قام الی قضاء ما سبق یأتی بالثناء ویتعوذ للقراءة وعند ابی یوسف یتعوذ عند الدخول وعند القراءة وهذا استحباب وفی صلاة المخافة یأتی بالثناء اذا ادرکه قائماً، انتهیٰ﴿۲﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ (فتاوی عالمگیریه ص ۹۱ جلد ۱ الفصل السابع فی المسبوق واللاحق)

﴿۲﴾ (خلاصة الفتاویٰ ص ۱۶۵ جلد ۱ مسائل المسبوق)

# باب مکروهات الصلوة

## دَ مونځ ختمیدلو وخت کښې دَمقتدی دَ امام نه په سلام کښې مخکښې کیدل

**سوال**:علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه امدادالفتاوی کښې ئې لیکلې دی چه که مقتدی دَمونځ ختمیدلو وخت کښې دَامام نه مخکښې سلام ختم کړو ،نومکروه دی.(الف):دامکروه تحریمی دی یا تنزیهی؟

(ب): دویم سلام څه حکم دې؟ تحریمی دې یا تنزیهی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:اکرام الحق راولپنډی..........۱۹۲۹ء/۳/۱۷.

**الجواب**:دَمناسب تلاش نه پس هم تصریح ملاؤنه شوه.لیکن دَقواعدو نه معلومیږی چه داکراهت په دواړو سلامونوکښې تحریمی دې.ځکه چه دَصحیح حدیث نه مخالفت دې چه په هغې کښې په تقدم باندې وعید راغلې دې.( ۱ ) .او وعید په تحریماتوکښې راځی.

دغه شان علامه شامی وغیره لیکلې دی چه کله کراهت بغیردَڅه قیدنه ذکرشی هغه به په تحریمی باندې محمول وی.( ۲ ) .وهوالموفق.

---

**﴿۱﴾عن انس قال صلی بنا رسول الله ﷺ ذات یوم فلما قضی صلوته اقبل علینا بوجهه فقال ایها الناس انی امامکم فلا تسبقونی بالرکوع ولا بالسجود ولا بالقیام ولا بالانصراف فانی اراکم امامی ومن خلفی رواه مسلم وعن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ لا تبادروا الامام اذا کبر فکبروا واذا قال ولا الضآلین فقولوا آمین واذا رکع فارکعوا واذا قال سمع الله لمن حمده فقولوا اللهم ربنا لک الحمد متفق علیه الا ان البخاری لم یذکر واذا قال ولا الضالین.**

**وعن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ اما یخشی الذی یرفع رأسه قبل الامام ان یحول الله رأسه رأس حمار مفتق علیه.**

**(مشکواة المصابیح ص ۱۰۱ جلد ۱ باب ما علی المأموم من المتابعة وحکم المسبوق)**

**﴿۲﴾قال ابن عابدین وفی البحر من مکروهات الصلاة......****(بقیه حاشیه په راروان مخ...)**

## دَ سجدې او تشهد نه د اوچتيدلو وخت کښې په زمکه لاسونه لګول مکروه تنزيهی دی

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په مونځ کښې دَ سجدې یاتشهدنه د اوچتيدلو وخت کښې بغيردَعذرنه په زمکه باندې لاس لګول اوپاسيدل مکروه دی داکراهت تحريمی دې يا تنزيهی؟ بينوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق نشترآباد.......... ٢٧/٤/١٩٧٠ء.

**الجواب:** په زمکه باندې بغير د عذرنه لاس کيښودل اوپاسيدل مکروه تنزيهی دی. فی الدرالمختارولوفعل لاباس وفی ردالمحتار ص ٤٧٣ جلد١فيکره فعله تنزيهاً لمن ليس به عذر.(١).فقط.

## دَ فرضو او سنتو په مينځ کښې دَ وظيفې وغيره ورد کول

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَفرضو اوسنتوپه مينځ کښې دَ اللهم انت السلام دَاندازې نه زياته وقفه کول مثلاً دَ وظيفې ورد کول څه حکم لری؟ بينوا توجروا.

المستفتی: عبدالحليم شاه متعلم دارالعلوم حقانيه....يکم ربيع الثانی ١٤٠٢هـ

**الجواب:** بهترنه دی ليکن بعضې علماؤ دَجواز حکم ورکړې دې. کمافی الطحطاوی وغيرهم.(١).وهوالموفق.

---

(بقيه حاشيه) المکروه فی هذا الباب نوعان احدهما ما کره تحريما وهو المحمل عند اطلاقهم الکراهة وقال ابن عابدين فی الحظر والاباحة ای کراهة تحريم وهی المرادة عند الاطلاق کما فی الشرع. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص٩٧ جلد ١ مطلب فی تعريف المکروه ص٢٣٧ جلد٥ کتاب الحظر والاباحة)

﴿١﴾ (ردالمحتار علی هامش الدرالمختار ص ٣٧٤ جلد ١ مطلب فی اطالة الرکوع للجائی باب صفة الصلاة)

﴿٢﴾ قال الشرنبلالی: لا بأس بقراءة الاوراد بين الفريضة والسنة فالاولیٰ تأخير الاوراد عن السنة فهذا ينفی الکراهة، وقال الطحطاوی: وفی رواية عائشة رضی الله عنها قالت کان رسول اللهﷺ لا يقعد الا مقدار ...... انه ليس المراد انه کان......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه...)

## په مونځ کښې دَ جبې آو بلوزر لستونړو مسئله

**سوال:** مایقول العلماء الفهام فی هذه المسئله؟ ای ماحکم الفرو اذا لم یخرج الیدان الاکمام واذالم یدخلا؟ بینوا توجروا.

المستفتی:نامعلوم......

**الجواب:** چه کله په لستونړو کښې لاسونه داخل نه وی نو په پوستین کښې دَمونځ حکم کراهت دې.اوکه لاسونه په لستونړو کښې داخل وی نو کراهت نشته.الاذالم یزر ازراره (چه کله ئې بټنې(تنړئ) نه وی لګولې).

**یدل علیه ما فی الشرح الکبیر ص۳۰۵ وعن الفقیه ابی جعفر الهندوانی انه کان یقول اذا صلی مع القباء وهو غیر مشدود الوسط فهو مسیئ ، یعنی ولو ادخل کمیه فی یدیه و ینبغی ان یقتدی بما اذا لم یزر ازراره لانه یشبه السدل اما اذا زر الازرار فقد التحق من الثیاب فی اللبس فلا سدل فیه فلا یکره انتهیٰ. قلت لا فرق بین الفرو والقباء فی الحکم لاشتراکهما فی العلة ، وفیه ایضاً فی تلک الصفحة فی تعلیل کراهة ارسال الکمین ولان فیه تشبیها باهل التکبر اذ لا تکاد تسمح نفوس المتکبرین بترکه وادخال الید فی الکم لا فی الصلوٰة ولا خارجها علیٰ ما جرت من عادتهم ، انتهی. قلت فیه دلالة علی کراهة الصلوٰه عند اخراج الیدین لانه وضع المتکبرین، فافهم﴿۱﴾. وهو الموفق**

---

**(بقیه حاشیه) یقول ذلک بعینه بل کان یقعد زمانا یسع ذلک المقدار ونحوه من القول تقریباً فلا ینا فی ما فی الصحیحین عن المغیرة انه ﷺ کان یقول دبر کل صلاة مکتوبة لا اله الا الله ...... وهذا لا ینافی ما فی مسلم عن عبد الله ابن الزبیر کان رسول الله ﷺ اذا فرغ من صلاته قال بصوته الا علی لا اله الا الله ...... لان المقدار المذکور من حیث التقریب دون التحدید قد یسع کل واحد من هذه الاذکار لعدم التفاوت الکثیر بینها الخ.**

**(حاشیة الطحطاوی مع مراقی الفلاح ص ۳۱۱ فصل فی صفة الاذکار)**

**﴿۱﴾ غنیة المستملی ص ۳۳۶، ۳۳۷ فصل فی بیان ما الذی یکره فعله فی الصلوٰة)**

## دَ عربو په ډریس(رومال) کښې دَمونځ حکم.

**سوال:** عربیان چه کوم ډریس(Dress) اغوندی یعنی رومال په سرباندې کیږدی او په یو ګول شان رسئ باندې ئې تړی.هغه رومال دَسرنه په اوګوباندې راشی او سینې باندې زوړندوی.چه هغې ته سدل وائی.په دې زوړندشوی رومال (عرب ډریس) کښې دَمونځ کولوڅه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفی:محمدنثاربرطانیه......یکم فروری ۱۹۷۵ء.

**الجواب:** په دې کښې هیڅ کراهت نشته.(۱) .وهوالموفق.

## په تیلې ګل شوې ټوپئ کښې مونځ کول.

**سوال:** علمائې دین دې باره کښې څه فرمائی چه مروجه دَتیلې ټوپئ چه دګلدوزئ نه جوړه شوې وی په دې کښې مونځ کول او ددې استعمال څنګه دې؟ بینوا توجزوا.

المستفتی:ګل حکیم محب بانډه مردان.....۱۹۷۵ء/۲/۹.

**الجواب:** که دا تیله دَسرو سپینو زرو نه وی نو دې کښې حرج نشته.(۲) وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال الحصکفی و کره...... سدل تحریماً للنهی ثوبه ای ارساله بلا لبس معتاد ، قال ابن عابدین : قال فی شرح المنیة السدل هو الارسال من غیر لبس ضرورة ان ارسال ذیل القمیص ونحوه لا یسمی سدلاً ودخل فی قوله ونحوه عذبة العمامة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۴۷۲ جلد ۱ مطلب مکروهات الصلاة)

﴿۲﴾ قال ابن عابدین: (قوله و کذا تکره القلنسوة) ذکر ملا مسکین عند قول المصنف فی مسائل شتیٰ اخر الکتاب ولاباس بلبس القلانس لفظ الجمع یشمل قلنسوة الحریر والذهب والفضة والکرباس والسواد والحمرة...... وفی الفتاویٰ الهندیه یکره ان یلبس الذکور قلنسوة من الحریر او الذهب او الفضة اوالکرباس الذی خیط علیه ابریسم کثیراً او شئ من الذهب اوالفضة اکثر من قدر اربع اصابع.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۲۴۹ جلد۵ فصل فی اللبس کتاب الحظر والاباحة)

## دَ سحر سنتُ قرأت اوریدلو صورت کښې په دویم صف کښې کول او دَ"فاستمعواله وانصتوا"ایت حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱).دَ سحرپه مونځ کښې دَامام دَقرات اوریدلوباوجود په دویم صف کښې سنت اداکول څنګه دی.(۲) .ددې آیت قرأت"واذاقرئ القرآن فاستمعواله وانصتواالایة، حکم د فرضیت دې یا داستحباب؟ بینوا توجروا.

المستفتی:نامعلوم......۱۸/اګست۱۹۸۳ء.

**الجواب:** (۱) جائز دی بهتر نه دی.(۱)

(۲) مشهورفرضیت دې اوصاحبِ بحرداستحباب قول هم ذکرکړې دې.

وهوالموفق

## جماتونو کښې کینودلو شوو ټوپو سره مونځ کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په جماتونوکښې چه کومې ټوپئ کینبودل رواج دې آیا دې سره مونځ کول صحیح دی ؟ بینوا توجروا

المستفتی:محمدنبی چهوتا لاهورصوابی......۱۹۹۰ء/۱۲/۱۵.

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: والحاصل ان السنة فی سنة الفجر ان یأتی بها فی بیته والافان کان عند باب المسجد مکان صلاها فیه والا صلاها فی الشتوی او الصیفی ان کان للمسجد موضعان والافخلف الصفوف عند ساریة لکن فیما اذاکان للمسجد موضعان والامام فی احدهما ذکر فی المحیط انه قیل لایکره لعدم مخالفة القوم وقیل یکره لانهما کمکان واحد قال فاذا اختلف المشائخ فیه فالافضل ان لا یفعل قال فی النهر وفیه افادة انها تنزیهیة، لکن فی الحلیة قلت وعدم الکراهة اوجه للاثار التی ذکرناها.

(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص۵۳۰ جلد ۱ مطلب هل الاساءة دون الکراهة او افحش ... ادراک الفریضة)

**الجواب**: ددې ټوپو پسرول ضروری دی ځکه چه دابې باکه خلق به په سرتورسر مونځ کول شروع کړی. چه هغه ددې نه بدترین کار دې. ﴿ ۱ ﴾ .وهوالموفق.

## په کهړۍ کښې دانسان یا د حیوان د وړوکی تصویرپه وجه د مونځ حکم

**سوال**: علماء کرام د دین شرع متین څه فرمائی په دې مسئله باره کښې چه په یو کهړۍ کښې دانسان یا حیوان وړوکې فوټو اوتصویر وی، نودې سره د مونځ څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: متعلم دارالعلوم حقانیه..... ۱۱۵ جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب**: که دا فوټو وړوکې وی چه دسجدې په ځائې کښې نه خودلو په صورت کښې نه ښکاری نودې سره مونځ مکروه نه دی

**یدل علیه ما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ص۶۰ جلد ۱ او کانت صغیرة لا تتبین تفاصیل اعضائها للناظر قائماً وهی علی الارض ﴿۲﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ په سر تور سر مونځ کول مکروه دی.وصلاته حاسرا ای کاشفا راسه للتکاسل(درمختار) او کار والا جامو کښې مونځ کولو ته ئې هم مکروه تنزیهی لیکلې دی.بمایلبسه فی بیته ولایذهب الی الاکابر والظاهر ان الکراهة تنزیهیة،ردالمحتار.اوس سرتورسر مونځ کول یو مرض جوړ شوې دې او عوام سر پټول څه اهم کار نه ګڼړی او سر پټول بوج جوړ شوې دې.چه په مونځ کښې دَ سستئ دَ قبیلې نه دی.اوپه بعضې صورتونو کښې مثلاً د. سپک ګڼړلو په صورت مفضی الی الکفر دی.فی ردالمحتار: قوله للتکاسل ای لاجل الکسل بان استثقل تغطیته ولم یرها امراً مهمافی الصلاة فترکها لذلک وهذا معنی قولهم تهاونابالصلاة ولیس معناه الاستخفاف بها والاحتقار لانه کفر(ص۴۸۴جلد۱) لهذا دې صورتونو کښې سرتوره باندې مونځ کول چه وجه ئې ښکاره ده ناراستی ده.دابه مکروه وی اودَمونځ دعزت په وجه په جماتونو کښې پرتو ټوپوسره به مونځ کوی.اګرچه داهم مکروه دی لیکن دَسرتورسرپه نسبت سرد لړه اسانه معامله ده.دغه شان که دَیوکس سرد کار والا جامونه علاوه نورې جامې نه وی نودَهغه دپاره په دغه کار والا(ثیاب بذله) جاموکښې مونځ کول ضروری دی. دغه شان چه بله ټوپۍ نه وی نوپه بذله ټوپۍ کښې به مونځ کول وی.(ازمرتب)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۷۹ جلد ۱ باب ما یفسد الصلاة ومایکره فیها)

## په ملتړی کور کښې تصویروالا بیج سره مونځ کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په ملتړی کښې دَ مجاهد کور دَځوانانو په اوګو باندې یو بیج لګیدلې وی چه ستاسو په خدمت کښې حاضر دې. دې سره مونځ کول صحیح دی یا نه؟ که په ناپوهئ سره مو په دې بیج سره مونځونه کړی وی نو دَهغې اعاده لازم ده یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالقدیر راولپنډی......١٩٧٣ء/٤/١٠

**الجواب:** دا تصویر لرونې دې لهذا دې سره مونځ کول مکروه تحریمی دی او واجب الاعاده دی.

**فی فتح القدیر ولو لبس ثوبا فیه تصاویر ویکره لانه یشبه حامل الصنم والصلوٰة جائزه فی جمیع ذلک لا ستجماع شرائطها وتعاد علی وجه غیر مکروه وهو الحکم فی کل صلوٰة ادیت مع الکراهة انتهی﴿١﴾. وهکذا فی جمیع کتب الفتاوٰی. وهوالموفق**

## امام لره دَ ضرورت نه زیات جهر کول

**سوال:** چه میفرماید علماء دین درې مسئله که یک امام قرأت جهراً فوق الحاجت درامامت میخواهد ،هنگارمیشوید ونمازمکروه شود یانه؟ وبشرط کراهت اعاده واجب ست یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم.........٧٩ء/١١/٢٣.

**الجواب:** نمازاماميکه جهرفوق ازحاجت مې کند .واجب الاعاده نیست. زیرانچه مکروه تحریمی نیست.

**لمافی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ص ٤٤٢جلد١ قالوا الاساءة ادون من الکراهة وفی ردالمحتار ص ١٥٥ جلد١ الاساءة دون الکراهة واما فی شرح المنارفقال العلامة الشامی فی ردالمحتار ص ٤٤٢جلد١ والمراد بها ما فی شرح**

---

﴿١﴾ (فتح القدیر ص ٣٦٣، ٣٦٤ جلد١ باب مایفسد الصلاة وما یکره فیها فصل ویکره للمصلی)

المنار التنزيهية فهى دون المكروه تحريماً وفوق المكروه تنزيها انتهى ﴿١﴾، قلت والاعادة انما تجب فى المكروه تحريما ولا تخلوا الصلوة المعتاده عن المكروه تنزيهاً وقلت ايضا لعل المراد ابن انجيم الاساءة ما يلزم ترك السنة المؤكدة. وهوالموفق

## په نوټ باندې دَ جناح دَتصوير سره مونځ کول.

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائى چه په پاکستانى نوټونو باندې دَ جناح تصوير وى چه کله دانوټ وغيره په جيب کښې وى نودې سره مونځ کول جائز دى يانه؟ اوکه دَتصويرسره لاس خپې هم وى اوپه جيب کښې وى نو دَهغې څه حکم دې؟ مونځ کيږى يا نه؟ بينوا توجروا.

المستفتى: نامعلوم............١٢/٢/١٩٧٣ء.

**الجواب**: که تصويرپه لفافه وغيره کښې پټ وى نومونځ مکروه نه دې کنې نوبيامکروه دې.﴿١﴾.

فى الدرالمختار ومفاده كراهة المستبين لا المستتر بكيس او صرة او ثوب آخر (هامش ردالمحتار ص ٦٠٦،٦٠٧ جلد ١ ) ﴿٢﴾ . وهوالموفق

## دَ نسوارو او سګرټو دَ بدبوئ په حالت کښې مونځ کول تلاوت کول او جمات ته تلل

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائى که يوسړې نسوار واچوى ياسګريټ اوڅکى بيادَمونځ دپاره په جمات کښې شريک شى نودَې خلقو جمات ته راتلل څه حکم لرى؟ بينوا توجروا.

المستفتى: نوراحمدبلوچستان.....٢٣/ربيع الثانى ١٤٠٢هـ.

**الجواب**: دَتمباکو بدبوئى دَ پياز او اوږکې پشان تکليف ورکونکې ده.لهذا دَدې حديث په بناء"فان الملئكة تتاذى مما يتاذى منه الانس (رواه البخارى

﴿١﴾ (ردالمحتارمع هامش الدرالمختار ص ٣٥٠ جلد ١ مطلب سنن صلاة باب صفة الصلاة)
﴿٢﴾ الدرمختار على هامش ردالمحتار ص ٤٧٩ جلد ١ باب ما يفسد الصلاة ومايكره فيها)

ومسلم عن جابر رضی الله عنه(۱).داسې کس تـه پـه دې حالت کښې مونځ کول،جمات ته تلل او قران شریف لوستل جائز نـه دی.وصرح بـه فی شـرح التنویرو کذاکل موذٍ(هامش ردالمحتارص۶۱۹جلد۱)(۲).وهوالموفق.

## دَ جمات په ټوپو کښې مونځ کول

**سوال**:په جمات کښې چه کومې ټوپئ وی دغه پسرکول اومونځ کول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی:یوسف شاه رسالپورکینټ......۲۷/رمضان ۱۴۱۰هـ.

**الجواب**:دَهرمسلمان دپاره مناسب دی چه دَقمیص پرتوګ پشان ټوپئ هم پـه سرکوی.(۳) اوچه ټوپئ ورسره نـه وی نوسرتور سر دې مونځ نـه کـوی.(۴) بلکه هم داجمات والا ټوپئ دې په سر کیږدی اګرکه خیرنې پیرنې وی.(۵). وهوالموفق

---

﴿۱﴾(مشکواة المصابیح ص۶۸ جلد۱ باب المساجد الفصل الاول)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۸۹ جلد۲ باب ما یفسد الصلاه وما یکره فیها)

﴿۳﴾ وفی الهندیه والمستحب ان یصلی الرجل فی ثلاثة اثواب قمیص وازار وعمامة اما لو صلی فی ثوب واحد متوشحا به تجوز صلوته من غیر کراهة. (فتاویٰ عالمگیریه ص۵۹ جلد۱ الباب الثالث فی شروط الصلاة)

﴿۴﴾ قال العلامه حصکفی رحمه الله: وصلاته حاسراً ای کاشفا رأسه للتکاسل ولاباس به للتذلیل واما للاهانة بها فکفر قال ابن عابدین واصل الکسل ترک العمل لعدم الارادة فلو لعدم القدرة فهو لعجز (قوله ولاباس به للتذلیل) قال فی شرح المنیة فیه اشارة الی ان الاولیٰ ان لا یفعله وان یتذلل ویخشع بقلبه فانهما من افعال القلب.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۴۷۴ جلد۱ مطلب فی الخشوع باب مکروهات الصلاة)

﴿۵﴾ قال ابن عابدین: فی البحر وفسرها فی شرح الوقایه بما یلبسه فی بیته ولا یلهب به الی الاکابر والظاهر ان الکراهة تنزیهیة. ایضاً

ددې عبارت نه په ثیاب بذلـه کـښې دَمـونځ مکروه تنزیهی کیدل ثابت دی لـیکن سرتور سرمونځ کـول هـم مکـروه دی.اوکـه عـوام ددې ټوپونـه منـع کړیـشی اودَصـحیح ټوپـوحکم ورنه هم اونه کړیشی نوعوام به په سرتورسر مونځ کولو .. (باقی حاشیه په راروانه صفحه)

## قبرونو ته نژدې مونځ کول مکروه دي.

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه دَقبرستان په زمکه کښې مونځ ادا کول څنګه دي؟ او دَقبرونو نه څومره فاصله باندې مونځ ادا کول جائز دي؟ بينوا توجروا.

المستفتي ميراحمدموليان کوهاله راولپنډي....... ١٩٧٠ء/٤/٤

**الجواب**: چه کله مخامخ يا ښي اوګس طرف ته قبرونه وي نومونځ مکروه دي اوچه کله لرې وي نوهيڅ حرج نشته اودَلرې والي اندازفقهائي کرامو په ګزونو او مسافت سره نه دي متعين کړې، البته دَنظائرونه معلوميږي چه کم ازکم دومره لرې وي چه دَسجدې په ځائې باندې نظرکولو وخت کښې په نظرنه راځي. (١) .وهوالموفق.

## فوجي بوټانو سره مونځ کول.

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه آيا مجاهد فوجي دَ بوټانو سره مونځ ادا کولې شي يا نه؟ او جواز دَمجبورئ په حالت کښې دي يا په هرحالت کښې؟ بينوا توجروا.

المستفتي محمدازرم پوسټ بکس نمبر ٢٢٠ سعودي عرب......١٤٠/٧/٧ھ

---

(بقيه حاشيه) باندې تکړه شي.دغه شان چه بله ټوپئ نه وي نوبيابه په دې بذله ټوپوکښې مونځ جائز وي.ځکه چه کله چاسره جامې نه وي نو په ثياب بذله کښې به ادا کول ضروري وي. "قال الحصكفي: وصلاته في ثياب بذلة يلبسهافي بيته ومهنة اى خدمة ان له غيرها والا لا (ص٤٧٤ جلد ١). دَدې نه معلومه شوه چه کله دَ ثياب بذله نه علاوه نورې جامې نه وي نوهم ددې اغوستل لازمي دي.وهوالموفق.

(١) **قال الطحطاوي: (تحت قوله تكره الصلاة في المقبرة) قال حسن بن عمار بن على الشرنبلالي وتكره الصلاة في المقبرة الا ان يكون فيها موضع اعد للصلاة لا نجاسة فيه ولا قذر فيه، قال الحلبي لان الكراهة معللة بالتشبه وهو منتف حينئذ و في القهستاني عن جنائز المضمرات لا تكره الصلاة الى جهة القبر الا اذا كان بين يديه بحيث لو صلى صلاة الخاشعين وقع بصره عليه. (الطحطاوي حاشيه مراقي الفلاح ص ١٩٦ فصل في مكروهات الصلاة)**

**الجواب:** په دې کښې اختلاف دې د قواعدو په رڼا کښې جواز راجح دې (١).
وهوالموفق

## دَ سحر او مازیګر مونځونو نه پس تلاوتِ قرآن افضل نه دې خومکروه هم نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو صاحب وئیلې دی چه دَ سحر اومازیګر مونځونونه پس تلاوت قرانی منع دې. اوخاص طور سره سورت یسین وغیره لوستل آیا دا صحیح ده؟ اوچرته حدیث وغیره نه ثابت دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مثل زاده ترلاندی صوابی......١٩٢٩ء ١٢٥

﴿١﴾ وفي منهاج السنن: وملخص هذه الروايات ان النعال الغير الطاهرة تخلع او تمسح على الارض، واما النعال الطاهرة من البدء او بالدلك فالصلوٰة فيها من الرخص دون المستحبات عند ابن دقيق العيد. وتعقبه البدر العيني بحديث شداد بن اوس عن ابيه ثم قال ويكون مستحبا من جهة قصد المخالفة لا سنة لان الصلوٰة في النعال ليست مقصودة بالذات وذكر الحلبي في شرح المنية الكبير استحبابها مخالفة لليهود كالبدر العيني. قال مشائخنا اليوم لا يصلي بالنعال في المسجد لان دخول المساجد متنعلا من سوء الادب في العرف الحادث ولان تلويث المسجد بها واقع لا محالة ولان علة التنعل قد انتهت لان اليهود والنصارىٰ في زماننا يصلون في النعال لا يخلعونها (ف) اعلم ان النعال اذا لم تكن مانعة من توجيه رء وس الاصابع الى القبلة فجاز الصلوٰة فيها والا فلا كما يشير اليه كلام القاري في المرقاة، فالصلوٰة في المداس الرائج اليوم لا يجوز اذا كان مقدمه مرتفعاً واسعا بحيث لا يمتلأ باصابع القدم فافهم.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ٢٧٨ جلد ٢ باب ماجاء في الصلوٰة في النعال)
وقال العلامه ابن عابدين: (قوله وصلاته فيهما افضل) اي في النعل والخف الطاهرين افضل مخالفة لليهود تاتر خانيه وفي الحديث صلوا في نعالكم ولا تشبهوا باليهود رواه الطبراني...... واخذ منه جمع من الحنابلة انه سنة ولو كان يمشي بها في الشوارع لان النبي ﷺ وصحبه كانوا يمشون بها في طرق المدينة ثم يصلون بها قلت لكن اذا خشي تلويث فرش المسجد بها ينبغي عدمه وان كانت طاهرة .. .. .. ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

**الجواب**: بعضي فقهاؤ ليکلي دی چه دې وختونو کښې قران مجيد لوستل بهتر نه دی ليکن مکروه هم نه دی.﴿١﴾ .(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ص ٣٤٧ جلد ٥). وهو الموفق.

## دَ ګلونو او بوټو شوی رنګدار څادريا جاموکښې مونځ کول.

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَمسلم شريف دَحديث مطابق په ګلونو او بوټو کړې شوی څادر يا جاموکښې مونځ کول مکروه دی.ددې کراهت نه تنزيهی مراد دې او که تحريمی؟ بينوا توجروا.

المستفتی:اکرام الحق راولپنډی...... ٢/القعده١٣٨٩ هـ.

**الجواب**:فقهائې کرامو په دې باندې تصريح نه ده کړې ليکن دې ته نزدې او مناسب (يعنی دَمحراب وغيره منقش کولو) باندې ئې تصريح کړيده. اودَ هغې متعلق ئې دکراهت تنزيهی حکم ورکړې دې.(شامی ص ٦١٢ جلد ١)فقط

(بقيه حاشيه) واما المسجد النبوی فقد كان مفروشا بالحصافی زمنه ﷺ بخلافه فی زماننا ولعل ذلک محمل ما فی عمدة المفتی من ان دخول المسجد متنعلا من سوء الادب تأمل.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٤٨٦ جلد ١ مطلب فی احکام المسجد)

﴿١﴾ قال فی الدرالمختار: ذكر الله من طلوع الفجر الی طلوع الشمس اولیٰ من قراءة القرآن وتستحب القراءة عند الطلوع اوالمغرب . قال ابن عابدين الشامی (قوله وتستحب الخ) كذاذكر فی المجتبیٰ المسئلة الاولیٰ ثم ذكر هذه رامز البعض المشائخ فالظاهر انهما قولان فان الاولیٰ تفيد استحباب الذكر دون القراءة وهو الذی تقدم فی كتاب الصلاة واقتصر عليه فی القنية حيث قال الصلاة علی النبی ﷺ والدعاء والتسبيح افضل من قراءة القرآن فی الاوقات التی نهی عن الصلاة فيها.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ٣٠٠ جلد٥ فصل فی البيع كتاب الحظر و الاباحة)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله لانه يلهی المصلی) ای فيخل بخشوعه من [النـ]ظر الی موضع سجوده ونحوه وقد صرح فی البدائع فی......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## دَ سټیلو چین والا گهړئ سره مونځ کول

**سوال**: علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه زمونږ يو پيش امام دي دَهغه دگهړئ چين دَسټيلو جوړ کړي شوي دي. يو سړی اووئيل چه ما دَيو لوئي عالم نه اوريدلي دی چه دَسټيلو دَچين والا گهړئ سره مونځ مکروه دي تاسو صاحبان مهربانی اوکړئ وضاحت اوکړئ. چه داولي مکروه دی؟ ددي دَڅه سره مشابهت دي؟ او چه مکروه تنزيهی دی يا تحريمی؟ بينوا توجروا.

المستفتی: خليل الرحمن بنوی........۱۹۷۳ء/۲/۱۹.

**الجواب**: واضحه دي وی چه دَاوسپني گوتمه اچول مکروه دی. لحديث ورد بذلک(۱). ليکن دَاوسپنی زنځيرچه بذاتِ خود زيور اوکالی نه دی دَهغي اچول مکروه نه دی. دادَ بټن او ميخ سره مشابه دی.(۲). فقط.

## تصوير. دَ تيلي ټوپئ او دَ ټيټرون په جامو کښي دَ مونځ حکم.

**سوال**: علمائي دين دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه!(۱) دَفوټو(تصوير)

---

(بقيه حاشيه) مستحبات الصلاة انه ينبغي الخشوع فيها ويكون منتهى بصره الى موضع سجوده. وكذا صرح في الاشباه ان الخشوع فی الصلاة مستحب والظاهر من هذا ان الكراهة هنا تنزيهية فافهم.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۷ جلد ۱ مطلب فی احکام المسجد)

﴿۱﴾ وعن بريدة ان النبی ﷺ قال لرجل عليه خاتم من شبه مالی اجد منک ريح الاصنام فطرحه ثم جاء وعليه خاتم من حديد. مالی اریٰ عليک حلية اهل النار .

(مشکواة المصابيح ص۳۷۸ جلد ۱ الفصل الثانی باب الخاتم)

﴿۲﴾ قال الحصکفی: وفی التتارخانية عن السير الکبير لا بأس بازرار الديباج والذهب وفيهاعن مختصر الطحطاوی لا يکره علم الثوب من الفضة ويکره من الذهب ، قالوا وهذا مشکل فقدرخص الشرع فی الکفاف قد يکون من الذهب.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۲۵۰ جلد۵ فصل فی اللبس کتاب الحظر)

سره محبت کول ښنګه دی؟ اوکه تصویر مکمل یانیم په جیب کښې وی نو دمونځ څه حکم دي؟

(۲) خالص دتیلي په ټوپئ سره مونځ کیدیشی یانه؟

(۳) دربښمو دجامونه علاوه دتیټرون وغیره سره مونځ کیدیشی یانه؟ بینوا توجروا۔

المستفتی:فضل جلال اسلامیه کالج پشاور.......۱۹۷۴ء/۹/۱۰

**الجواب**:محترم المقام دامت برکاتکم.دالسلام علیکم نه پس دي داخبره واضحه وی چه :(۱) دتصویرسره محبت کول دخیفت عقل علامت دي اوتصویرچه کله په بټوه وغیره کښې پټ وی نومونځ نه مکروه کیږی (شامی).**(۱)**.

(۲) خالص دتیلي ټوپئ چه دسرو یا سپینو زرو نه جوړه وی اوپه پلنوالی د څلور ګوتونه (په یوځائې) زیات وی نو مطلقاً مکروه دی.په مونځ اوغیرمونځ کښې فرق نشته.(شامی ص۲۲۳جلد ۵).**(۲)**.

(۳) هیڅ کراهت نشته.وهوالموفق.

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله لا لمستتر بکیس او صرة) بان صلی ومعه صرة او کیس فیه دنانیر او دراهم فیها صور صغار فلا تکره لاستتارها بحر ومقتضآه انها لو کانت مکشوفة تکره الصلاة مع ان الصغیره لا تکره الصلاة معها کما یأتی لکن یکره کراهة تنزیه جعل الصورة فی البیت نهر .**

**(ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۴۷۹ جلد ۱ قبیل مطلب الکلام علی اتخاذ المسبحة باب ما یفسد الصلاة ومایکره فیها)**

**﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: وفی الفتاویٰ الهندیه یکره ان یلبس الذکور قلنسوة من الحریر او الذهب او الفضة او الکرباس الذی خیط علیه ابریسم کثیر او شئ من الذهب او الفضة اکثر من قدر اربع اصابع. (ردالمحتار هامش الدر المختار ص ۲۴۹ جلد۵ فصل فی اللبس)**

# باب ما یفسد الصلوة

## اولنئ قعده نه کول او دریدل او واپس بیارانللوسره مونځ نه فاسدیږی.

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه یومونځ کونکي اولنئ قعده اونه کړی اودریږی او بیاورته یادشی واپس کینی نوآیا مونځ فاسد شو؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالرحمن شهاب خیل لکی مروت.

**الجواب:** داسي کول مکروه دی خو دَمحققینو علماؤ په نزد مفسدِصلوة نه دی. **کمافی شرح التنویر فلو عاد الی القعود وقیل لا تفسد لکنه یکون مسیئا ویسجد لتاخیر الواجب وهو الاشبه کما حققته الکمال وهو الحق بحر (هامش ردالمحتار ص۶۹۷ جلد ا) ﴿ا﴾. وهوالموفق**

## دَ فاتح په غلطه فتحه ورکولو سره مونځ نه فاسدیږی.

**سوال:** علمائي دین دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه امام په قرأت کښي سهوشو لیکن فاتح په دغه سورت کښي بل ځائي کښي غلطه فتحه ورکړه او امام هم فتحه وانحستله آیا دَفاتح مونځ فاسد شو؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل منان.

**الجواب:** دَفاتح مونځ نه فاسدیږی. وهوالاصح قال فی الدرالمختار بخلاف فتحه فی امامه فانه لایفسدمطلقا لفاتح وآخذبکل حال. ﴿ ۲ ﴾ . وهوالموفق.

---

﴿ا﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۵۰ جلد ا باب سجود السهو)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۶۰ جلد ا باب ما یفسد الصلاة ومایکره فیها)

**دَ دریو آیتونو لوستلو نه پس فتحه ورکول یا اخستل مفسدِ صلوٰة نه دی.**

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه امام درې آیاتونه اولولی بیا سهوشی اورکوع ته لاړنشی بلکه مقتدی ورته فتحه ورکړه او امام فتحه واخستله نوپه دې سره مونځ کیږی یا نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم..........۹/جون۱۹۷۵ء.

**الجواب**: دې صورت کښې فتحه اخستل یا ورکول مفسدِ صلوٰة نه دی.

**کمافی الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۵۷۲ جلد ۱ بخلاف فتحه علی امامه فانه لا یفسد مطلقا ای سواء قرء الامام قدر ماتجوز به الصلوٰة ام لا انتقل الی اية اخری ام تکرر الفتح ام لا﴿۱﴾. وهوالموفق**

**په مونځ کښې بیا بیا ږیرې ته دَ لاس لګولو حکم.**

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو کس بې اختیاره په مونځ کښې خپل لاس ږیرې سره لګوی آیا په دې سره مونځ فاسدیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فیض محمد بلوچستانی.

**الجواب**: که یوسړې په یو رکن کښې پرله پسې درې ځلې داکار اوکړی نومونځ به ئې فاسد شی.

**قال فی الفیض الحک بید واحدة فی رکن ثلاث مرات یفسد الصلاة ان رفع یده فی کل مرة (ردالمحتار ص ۵۹۹ جلد ۱)﴿۲﴾ وبمعناه فی الهدایه ص ۱۰۹ جلد ۱﴿۳﴾ قلت ولم یفرقوا بین العمد وغیره. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۴۶۰ جلد ۱ باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)**

**﴿۲﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۴۷۳ جلد ۱ مطلب فی الکراهة التحریمی والتنزیهی باب مایفسد صلاة ومایکره فیها)**

**﴿۳﴾قال المرغینانی: اما فساد الصلاة فبالعمل الکثیر، قال ...... (بقیه حاشیه په بله صفحه)**

## بعضې آیاتونو پریخودلو او نورو آیتونو شروع کولو سره مونځ نه فاسدیږی

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی. چه امام صاحب مونځ کولو او "مثل الذين حملوا التوراة ثم لم يحملوها كمثل الحمار يحمل اسفارا (سورة جمعه) ئې لوستلو. بیا د "بئس مثل القوم الذين " نه پس ئې د "قل يايها الذين هادو ان زعمتم" آیت په ځائې يايها الذين آمنوا اذا نودى للصلوة من يوم الجمعه الخ او لوستلو. آیا مونځ فاسد شو؟ که فاسد شوې وی نو په څه وجې سره؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ سیاح هوش سلیم خان صوابی........ ۱۳/اپریل ۱۹۷۵ء

**الجواب**: په دې صورت کښې دَبعضې آیتونو پریخودل دی. او انتقال دې دویم آیت ته. نور څه زیات تغیر پکښې نه دې راغلې. لهذا دَقانون مطابق به مونځ فاسد نه وی. (ماخوذ از کبیری، هندیه). (۱) .وهو الموفق.

---

**(بقیه حاشیه) ابن الهمام: او نتف ثلاث شعرات بمرات اوحک ثلاثا فی رکن یرفع یده کل مرة...... تفسد. (هدایه مع فتح القدیر ص ۳۵۲ جلد ۱ باب ما یفسد الصلاة ومایکره فیها)**

**(۱) قال العلامة الحلبی: وکذا لو انتقل الیٰ آیة اخری من تلک السورة وترک بینهما شیئا لان فیه اعراضاعما شرع فیه وایهام تفضیل غیره علیه واما اذا کان عذر کان حصر عما بعد تلک الایة قبل ان یتم سنة القرأة فلا یکره الانتقال الی آیة اخری من تلک او من غیرها هذا اذا انتقل قصدا فان انتقل من غیر قصد ثم تذکر ینبغی ان یعود ذکره فی القنیة وان لم یتذکر فلا کراهة ایضا لعدم القصد.**

**(غنیة المستملی المعروف بالشرح الکبیری ص ۳۵۰ فصل فی بیان مایکره فی الصلاة)**

**وفی الهندیه: لوذکر اية مکان آية ان وقف وقفاتاما ثم ابتدأ باية اخریٰ او ببعض آية لا تفسد...... اما اذا لم یقف ووصل ان لم یغیر المعنی...... لا تفسد اما اذا غیر المعنیٰ...... تفسد عند عامة علمائنا وهو الصحیح.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ص ۸۱ جلد ۱ الفصل الخامس فی زلة القاری)**

## دَ شرعي ضرورت نه بغير مونځ ماتول حرام دي

**سوال**: علمائي دين دي مسئلي باره کښې څه فرمائي چه که سړې په کورکښې مونځ کوی دي دوران کښې دبهرنه څوک آواز اوکړی او دې وخت کښې په کور کښې څوک نشته یا زنانه شته لیکن دَغیرمحرم کیدوپه وجه ئې جواب ورنکړو. دې صورت کښې فرض مونځ کونکې خپل مونځ مات کړی جواب ورکړی یا مونځ پوره کړی روستو جواب ورکړی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالحمید ایس وی درازنده ډی آئی خان........ ۱۹۷۳ء/۲/۱۴.

**الجواب**: مونځ دَ شرعی ضرورت نه بغیر فاسدول حرام دی. ﴿ ۱ ﴾ .قال الله تعالى لاتبطلوا اعمالكم الاية. ﴿ ۲ ﴾ .وهوالموفق.

## دَ مونځ په دوران کښې زلزلې راتللو باندې به څه کوی؟

**سوال**: خلق په کمره(کوټه) کښې ولاړ وی مونځ کوی،دې دوران کښې زلزله راغله،نودَمونځ په دوران کښې به دکوټې نه بهراوځی یا مونځ به پوره کوی؟

بینوا توجروا.

المستفتی: ګل فراز مصری بانډه نوشهره......۸/فروری ۱۹۷۵ ء.

**الجواب**: که زلزله سخته وه چه دآبادئ دَ غورزیدلو غالب ګمان وی نودَمونځ ختمول(یعنی کټ کول) ضروری دی.اوکه نه ذاسې نه وی نو صرف جائز دی.

**ونظيره قطع الصلوٰة خشية سقوط الاعمىٰ (فليراجع الى مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى ص ٣٢٢) ﴿٣﴾. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾ قال العلامه شرنبلالى: والاصل ان نقض العبادة قصداً بلا عذر حرام لقوله تعالىٰ ولا تبطلوا اعمالكم. (امداد الفتاح ص ۴۹۵ باب ادراك الفريضة مع الامام وغيره)**

**﴿۲﴾ (سورة محمد پاره: ۲۶ آیت: ۳۳ ركوع: ۸)**

**﴿۳﴾ قال العلامه حسن بن عمار بن على الشرنبلالى: (و) يجوز قطعها لخشية (خوف) من (ذئب) ونحوه (على غنم) ونحوها (او خوف تردى) اى......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)**

## دَ مونځ په حالت کښې په زوره باندې "حق الله" یا "هوالله" وئیل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که یوکس دَ مونځ په دوران کښې په اوچت آواز سره "حق الله" یا "هوالله" اووائی. روستو داکس بیا وائی چه ما دا کار دَوَجَد په حالت کښې مجبوراً کړې. دې سره مونځ فاسد یږی یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالله مانسهره.....۱۴۰۳هـ

**الجواب:** که دې سړی دا الفاظ دَهوش په حالت کښې وئیلې وی نو مونځ ئې صحیح دې، ﴿۱﴾ او که دَبې هوشئ په حالت کښې ئې وئیلې وی نو دَبې هوشئ په وجه دده اودس او مونځ دواړه فاسد دی. ﴿۲﴾ وهوالموفق.

---

**(بقیه حاشیه) سقوط (اعمیٰ) او غیره مما لا علم عنده (فی بئر ونحوه) کحفیرة وسطح واذا غلب علی الظن سقوطه وجب قطع الصلاة ولو فرضاً.**

**(مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ص ۲۰۴ قبیل باب الوتر واحکامه)**

**﴿۱﴾ قال العلامه ابن عابدین: (قوله فبسمل) یشکل علیه ما فی البحر لو لدغته عقرب او اصابه وجع فقال بسم الله قیل تفسد لانه کالانین وقیل لالانه لیس من کلام الناس وفی النصاب وعلیه الفتویٰ وجزم به فی الظهیریة وکذا لو قال یارب کما فی الذخیرة.**

**(ردالمحتار ص ۴۵۹ جلد ۱ باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)**

**﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدین: وینقضه اغماء ومنه الغشی وجنون وسکر (قوله وینقضه اغماء) هو کما فی التحریر آفة فی القلب او الدماغ تعطل القوی المدرکة والمحرکة عن افعالها مع بقاء العقل مغلو بانهر، (قوله ومنه الغشی) بالضم والسکون تعطل القوی المحرکة والحساسة لضعف القلب من الجوع او غیره قهستانی زاد فی شرح الوهبانیة بفتح فسکون وبکسرتین مع تشدید الیاء وکونه نوعا من الاغماء موافق لما فی القاموس وحدود المتکلمین قال فی النهر الا ان الفقهاء یفرقون بینهما کالاطباء ای بانه ان کان ذلک التعطل لضعف القلب واجتماع الروح الیه بسبب .........**

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

لاكن رجح فى الفتح تقديم الركعتين قال فى الامداد وفى فتاوىٰ العتابى انه المختار وفى مبسوط شيخ الاسلام انه الاصح لحديث عائشة رضى الله عنها انه عليه السلام كان اذا فاتته الاربع قبل الظهر يصليهن بعد الركعتين وهو قول ابى حنيفة وكذا فى جامع قاضى خان، والحديث قال الترمذى حسن غريب انتهىٰ ﴿۱﴾ قلت فاذا ورد فيه انه قول الامام وكذا ورد فى الحديث لفظ كان فالاول هو العمل عليه. وهوالموفق

## په ناسته نفل کول،سنن رواتب پرېخودل او دَ ضرورت په وخت کښې مونځ ماتول

**سوال:** علمائې دين لاندينو مسئلو باره کښې څه فرمائی!

(۱) نفل په ناسته کول صحيح دی يا په ولاړه باندې؟

(۲) عام طورچه دَمونځ نه مخکښې يا روستو کوم سنت وی موکده يا غير موکده يانفل که دا اونه کړې شی نو آيا مونځ ته څه نقصان رسيږی؟

(۳) سنت او فرض په کوم حالت کښې ماتول جائز دی.که والدين آواز اوکړی نو سنت يا فرض ماتول به جائز وی؟ بينوا توجروا.

المستفتی: ميران شان ختهک..................۱۹۷۹ء/۵/۴.

**الجواب:** (۱) په ناسته نفل کول جائز دی البته دَولاړې په نسبت نيم ثواب لری كمافى حديث صحيح رواه ابوداؤد وغيره.﴿ ۲﴾ .

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۳۱ جلد ۱ قبيل باب قضاء الفوائت)

﴿۲﴾ عن عمران ابن حصين انه سأل النبى ﷺ عن صلوٰه الرجل قاعداً فقال صلوته قائما افضل من صلوته قاعداً وصلوته قاعداً على النصف من صلوته قائما وصلوته نائما على النصف من صلوته قاعداً.

(سنن ابى داؤد ص ۱۴۳ جلد ۱ باب فى صلوٰة القاعد)

(۲) سنت کول دَثواب باعث دی په نه کولو کښې ئې عتاب دې بلکه عقاب دې (شامی) ﴿۱﴾ (۳) که والدین یا اجداد (نیکونه) صرف آواز اوکړي نو نفل ماتول جائز دی او فرض ماتول جائز نه دی البته که مدد طلب کول غواړي نو ماتول (دَفرضو) جائز دی (شامی جلد ۱) وهوالموفق.

## دَ ډیوټئ په دوران کښې نفل ادا کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ملازمین دَ ډیوټئ په دوران کښې دَفرض مونځ نه علاوه نفل مونځ یا تلاوت قرآن مجید کولې شی یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: جی ایم خلیل الرحمن پریمیئرټوبیکوانډسټریزجهانګیره ۱۵/۱۱/۱۹۸۷ء

---

﴿۱﴾ قال العلائی : (قوله وحکمها ما یوجر علی فعله ویلام علی ترکه) ای یعاتب بالتاء لا یعاقب کما افاده فی البحر والنهر لکن فی التلویح ترک السنة المؤکدة قریب من الحرام یستحق حرمان الشفاعة لقوله علیه السلام من ترک سنتی لم ینل شفاعتی، وفی التحریر ان تارکها یستوجب التضلیل واللوم والمراد الترک بلا عذر علی سبیل الاصرار کما فی شرح التحریر لابن امیر حاج...... وفی البحر من باب صفة الصلاة الذی یظهر من کلام اهل المذهب ان الاسم منوط بترک الواجب اوالسنة الموکدة علی الصحیح لتصریحهم بان من ترک سنن الصلوٰت الخمس قیل لا یاثم والصحیح انه یاثم ذکره فی فتح القدیر وتصریحهم بالاثم لمن ترک الجماعة مع انها سنة موکدة علی الصحیح وکذا فی نظائره الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۷۷ جلد ۱ قبیل مطلب ان الاصل فی الاشیاء الاباحة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولو دعاه احد ابویه فی الفرض لا یجیبه الا ان یستغیث به وفی النفل ان علم انه فی الصلاة فدعاه لا یجیبه والا اجابه، قال ابن عابدین رحمه الله: (قوله الا ان یستغیث به) ای یطلب منه الغوث والاعانة وظاهره ولو فی امر غیره مهلک واستغاثه غیر الابوین کذلک والحاصل ان المصلی متی سمع احدا یستغیث وان لم یقصده بالنداء او کان اجنبیا وان لم ماحل به او علم وکان له قدرة علی اعانته وتخلیصه وجب علیه اعانته وقطع الصلاة فرضا کانت او غیره. (الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ص۵۲۶ جلد ۱ مطلب قطع الصلاة یکون حراما ومباحا ومستحبا وواجبا باب ادراک الفریضة)

**الجواب**: دَ ډیوټئ په دوران کښې نفل کول او تلاوت کول ممنوع دی.

قال فی الشامیه ص ۵۹ جلد ۵ تحت قوله( ولیس للخاص ان یعمل لغیره)بل ولا ان یصلی النافلة قال فی التتارخانیه وفی فتاویٰ الفضلی واذا استاجر رجلا یوما یعمل کذا فعلیه ان یعمل ذلک العمل الی تمام المدة ولا یشتغل بشئ آخر سوی المکتوبة وفی فتاویٰ سمرقندیه وقد قال بعض مشائخنا له ان یؤدی السنة ایضا واتفقوا انه لا یؤدی نفلاً﴿۱﴾. وهوالموفق

## په ورځ شپه دواړو کښې نفل ثابت دی بدعت نه دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې بارد کښې څه فرمائی چه په اسلام کښې نوافل په ورځ کښې هم دی یا صرف دَشپې په وخت کښې دی؟ اوځوک چه نوافل نهار ته بدعت وائی او کونکوته ئې ریاکار وائی آیا دَهغوی داقول صحیح دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم.........

**الجواب**: دَفقهاؤ په کتابونوکښې په "ابواب الوتروالنوافل" کښې او دَاحادیثو په کتابونو کښې په "باب السنن" کښې دَ نوافل النهار تفصیل موجود دې(۲) دیته بدعت وئیلو والا جاهل دې.او ریا خو په فرض مونځ کښې هم حرامه ده.وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸ جلد۵ مطلب لیس للاجیر الخاص ان یصلی النافلة مبحث الاجیر الخاص)

﴿۲﴾ قال العلامه شرنبلالی: وندب رکعتان بعد الوضوء قبل جفافه لقوله علیه السلام: مامن مسلم یتوضأ فیحسن وضوءة ثم یقوم فیصلی رکعتین یقبل علیها بقلبه الاوجبت له الجنة رواه مسلم کذا البرهان وندب صلاة الضحیٰ علی الراجح وهی اربع رکعات لما رويناه قریبا عن عائشة رضی الله عنها وانه علیه السلام کان یصلی الضحیٰ اربعا ولا یفصل بینهما بسلام ، ولما فی صحیح مسلم عن عائشه رضی الله عنها انه...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ ماښام دَ سنتو سره دوه رکعته نفل کول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ ځائې کښې دَبعضې خلقو دا معمول دې چه دَماښام دوه رکعته سنتو نیت اوتړی اوڅلور رکعته اوکړی.اونیت دَدوه رکعتونو وی.اوپه دې څلور رکعتونوکښې آخرنی دوه رکعته په ناسته باندې کوی.آیا داسې کول صحیح دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:شادمحمدخان سرډهیری چارسده.........۱۹۸۲ء/۷/۵

**الجواب**: دَقواعدو په رنړا کښې دا جائز دی لیکن افضل نه دی.افضل دا دی چه نفل په ولاړه اوکړی.(شامی ص۴۸۹جلد ۱).وهوالموفق.

---

(بقیه حاشیه) علیه السلام کان یصلی الضحیٰ اربع رکعات ویزید مایشاء فلذا قلنا: ندب اربع فصاعداً الی اثنتی عشره رکعة لما روی الطبرانی فی الکبیر عن ابی الدرداء قال قال رسول اللهﷺ من صلی الضحیٰ رکعتین لم یکتب من الغافلین ومن صلی ستا کفی ذلک الیوم ومن صلی ثمانیة کتبه الله من القانتین ومن صلی اثنتی عشرة رکعة بنی الله له بیتا فی الجنة...... وندب صلاة اللیل خصوصاً آخره الخ.

(امداد الفتاح شرح نور الایضاح ص۴۳۸ فصل فی صلاة الضحیٰ واحیاء اللیالی)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویتنفل مع قدرته علی القیام قاعدا لا مضطجعا الا بعذر ابتداء وکذا بناء بعد الشروع بلا کراهة فی الاصح کعکسه .

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۱۵ جلد ۱ باب الوتر والنوافل)



# فصل فی التهجد وصلاة التسبیح

## په تهجد کښې طول قیام افضل دې یا دَ رکعتونو شمیر؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَتهجدو په مونځ کښې طولِ قیام افضل دې یا دَرکعتونو شمیر؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حاجی محمد.......... ۱۹۷۴ء/۴/۲.

**الجواب:** طول قیام افضل دې.(۱) لیکن په دوه رکعته تهجدباندې اکتفاء کول فعلِ رسول ﷺ هم دې.(۲) .وهوالموفق.

(۱) قال العلامه ابن عابدین: اختلف النقل عن محمد فی هذه المسئلةفنقل الطحاوی عنه فی شرح الآثار ا ن طول القیام احب ونقل فی المجتبی عنه العکس ونقل عن ابی یوسف انه فصل فقال اذا کان له ورد من اللیل بقراء ة من القرآن فالا فضل ان یکثر عدد الرکعات والافطول القیام افضل لان القیام فی الاول لایختلف ویضم الیه زیادة الرکوع والسجود..........قال اصحابنا طول القیام افضل وقاضی الشافعی کثرةالصلاة افضل والصحیح قولنا ثم قال وروی عن ابی یوسف انه قال الیٰ اخرما مروظاهر کلامه ان هذا قول ائمتنا الثلاثة حیث لم یتعرض الا لخلاف الشافعی ویؤید ه مامر عن الطحاوی.(ردا لمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۰۱ جلد ۱ قبیل مطلب قولهم کل شفع من النفل صلاه الخ)

(۲) قال العلامة ابن عابدین : (قوله وأقلها علی مافی الجوهرة ثمان)قید بقوله علی مافی الجوهرة لانه فی الحاوی القدسی قال یصلی ماسهل علیه ولو رکعتین والسنة فیها ثمان رکعات باربع تسلیمات. والتقیید باربع تسلیمات مبنی علی قول الصاحبین واماعلی قول الامام فلا کما ذکره فی الحلیة وقال فیها أیضا وهذا بناء علی ان أقل تهجده صلی الله علیه وسلم کان رکعتین وأن منتهاه ثمانی رکعات أخذممافی مبسوط السرخسی ثم ساق تبعا لشیخه المحقق ابن الهمام الاحادیث الدالةعلی ما عینه فی (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ نفل او تهجد لغوی معنی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَنفلو او تهجدو لغوی معنی څه ده؟ واضحه ئې کړئ! بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ حجاج ولی دوسلی کیمپ بنوں............۱۹۸۸ء ۲ ۱۱

**الجواب:** نفل زیادت ته وائی (۱) اوتهجد دَخوب پریخودلو ته وائی (۲) وهوالموفق.

## په نفلو کښې دَ تهجدو ډیر فضیلت دی

**سوال:** دَتهجدو فضیلت بیان کړئ چه په نفلو کښې ددې څه درجه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: ابن شیرمحمد ترلاندی صوابی مردان........۲۴ صفر ۱۳۸۹ھ

---

(بقیه حاشیه) المبسوط من منتهاه وحدیث ابی داود الدال علی ان اقل تهجده ﷺ اربع سوی ثلاث الوتر وتمام ذلک فیها فراجعها لکن ذکر آخر اعنه ﷺ من استیقظ من اللیل وایقظ اهله فصلیا رکعتین کتبا من الذاکرین الله کثیرا و الذاکرات رواه النسائی وابن ماجه وابن حبان فی صحیحه والحاکم وقال المنذری صحیح علی شرط الشیخین.
(ردالمحتار هامش الدرالختار ص ۵۰۲ جلد ۱ :مطلب فی صلاة اللیل :باب الوتر والنوافل)

﴿۱﴾ قال العلامه شرنبلالی :النفل فی اللغة عبارة عن الزیادة و منه سمیت الغنیمة نفلا لانهازائدة علی ما وضع له الجها دو هو اعلاء کلمة الله تعالیٰ ومنه قول لبید من الرمل : ان تقویٰ ربنا خیر نفل .وسمی ولدالزنا نافلة لهذا.(امدادالفتاح ص ۴۲۴ فصل فی النوافل)

﴿۲﴾ قال العلامه ابن عابدین :ان صلاة اللیل المحثوث علیهاهی التهجد وقد ذکر القاضی حسین من الشافعیة انه فی الاصطلاح التطوع بعد النوم واید بمافی معجم الطبر انی من حدیث الحجاج بن عمرورضی الله عنه یحسب احد کم اذا قام من اللیل یصلی حتی یصبح انه قد تهجد انماالتهجد المرء یصلی الصلاة بعد رقده......ولان التهجد ازالة النوم بتکلف مثل تأثم ای تحفظ عن الاثم الخ.(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۰۲ جلد ۱ :مطلب فی صلاة اللیل)

**الجواب**: په نفلو کښې دا ډیر بهترین مونځ دې (۱) فقط.

## دَ نعمت او راحت اوخوشحالئ په حاصلیدلو باندې دَ شکر مونځ اداکول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَقرآنِ پاک دَآیت "لئن شکرتم لازیدنکم" نه یو صاحب استنباط کولو بیان ئې کولو چه دَ یو نعمت راحت او خوشحالئ په راتللو باندې دوه رکعته دَ شکر مونځ ادا کول هم مستحب دی چه اصحابه کرامو رضی الله عنهم او اولیائې کرامو معمول پاتې شوې دې آیا دا قول صحیح دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: اکرام الحق ډی _ ۵۵۲ راولپنډی............ ۱۹۷۹ء/۵/۱۴.

**الجواب**: دَامام ابو حنیفه رحمه الله دَمسلک په بناباندې دا استنباط صحیح دې ځکه چه ترمذی کښې راغلې دی.

**کان رسول الله صلی الله علیه وسلم اذاجاءه امر سروراً اویسر به خر ساجداًشاکراً لله تعالیٰ﴿۲﴾وفی اللمعات وهم(ابو حنیفه و مالک)یقولون ان المراد با لسجدة الواقعة فی تلک الاحادیث والاثار الصلاة عبر عنها بالسجدة وهو کثیر اطلاقاً للجزء علی الکل ﴿۳﴾.وهو الموفق**

---

**﴿۱﴾قال ابن عابدین : (قو له وصلاة اللیل)أقول هی أفضل من صلاة النهار کما فی الجوهرة ونور الا یضاح وقد صرحت الأیات والاحادیث بفضلها والحث علیها قال فی البحر فمنها مافی صحیح مسلم مرفوعا أفضل الصلاة بعد الفریضة صلاة اللیل وروی الطبرانی مرفوعا لا بدمن صلاة بلیل ولو حلب شاة وما کان بعد صلاة العشاء فهو من اللیل وهذا یفید ان هذه السنة تحصل بالتنفل بعد صلاة العشاء قبل النوم......ولانه المفهوم من اطلاق الأیات والاحادیث ولان التهجد ازالة النوم بتکلف مثل تأثم أی تحفظ عن الالم نعم صلاة اللیل وقیام اللیل أعم من التهجد وبه یجاب عما أورد علی قول الامام أحمد هذا ما ظهر لی والله أعلم .(ردالمحتار هامش الدرالختار ص٥٠٦جلد ١ مطلب فی صلاة اللیل)**

**﴿۲﴾(مشکواة المصابیح ص ١٣١ جلد ١ :باب فی سجود الشکر )**

**﴿۳﴾ فی الهندیه و سجدة الشکر لاعبرة لها عند ابی ......** (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ صلوة تسبیح افضل وخت

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَصلوة تسبیح بهترین وخت کوم یو دې؟ صرف دَ وخت متعلق اولیکئ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:محمدزاهدمیډیم رجمنټ ایل اې ډی.........۱۷/محرم ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** دَ ماسپښین دَمانځه نه مخکښې کول پکاردی.(شامی).﴿۱﴾

وهوالموفق.

---

(بقیه حاشیه)حنیفة رحمه الله تعالیٰ وهی مکروهة عنده لا یثاب علیها وترکها اولی. (فتاوی عالمگیریه ص۱۳۵ جلد۱ مسائل سجده الشکر)

وقال العلی القاری: سجدة الشکر...... سنة عند الشافعی ولیست بسنة عند ابی حنیفة خلافاً لصاحبیه...... فقالوا المراد بالسجود الصلاة وحجتهم فی هذا التأویل ما ورد فی الحدیث ان النبیﷺ لما اتی برأس ابی جهل خر ساجداً وقد روی عبد الله بن ابی او فی رأیتهﷺ صلی بالضحی رکعتین حین بشر بالفتح او برأس ابی جهل الخ. (مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ص۲۰۲ جلد۳ باب فی سجود الشکر)

﴿۱﴾قال ابن عابدین رحمه الله :وقال المعلی یصلیها قبل الظهر.

(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص۵۰۸ جلد۱ :مطلب فی صلاة التسبیح)

• • •

# باب التراويح

## پیغمبر علیہ السلام به په رمضان کښې هره شپه تراویح کولې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه پیغمبر علیہ السلام دَتراویحو څو رکعتونه کړې دی. او څو شپې ئې کړې دی؟ بینوا توجروا.
المستفتی: عبدالله لنډی کوتل............ ۲۵/۱۱/۱۹۷۵ء.

**الجواب:** پیغمبر علیہ السلام به په رمضان کښې هره شپه تروایح کولې. البته په لوئې جماعت سره ئې درې شپې ادا کړې دی. ﴿۱﴾. او جماعت کبری علی طریقه الدوام" دَ خلیفه ثانی دَزمانې نه شروع شوې. ﴿۲﴾. او په دغه زمانه او حضرت عثمان غنی رضی اللہ عنہ او حضرت علی رضی اللہ عنہ په زمانه کښې به شل(۲۰) رکعتونه تراویح کیدلې. ﴿۳﴾. او دَ یوخیزشمیرپه رائې او قیاس سره نه معلومیږی لهذا دَقواعدو په رڼا کښې به دا دَ شلو شمیرمرفوع وی.

---

﴿۱﴾ عن عائشة ام المؤمنين ان رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم صلیٰ ذات ليلة فى المسجد فصلى بصلاته ناس ثم صلى من القابلة فكثر الناس ثم اجتمعوا من الليلة الثالثة اوالرابعة فلم يخرج اليهم رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم فلما اصبح قال قد رأيت الذى صنعتم ولم يمنعنى من الخروج اليكم الاانى خشيت ان يفرض عليكم وذلك فى رمضان. (صحيح البخارى ص ۱۵۲ جلد ۱ باب تحريض النبى صلی اللہ علیہ وسلم على قيام الليل والنوافل من غير ايجاب)

﴿۲﴾ عن سائب بن يزيد قال: كانوا يقومون على عهد عمر بن الخطاب فى شهر رمضان بعشرين ركعة الحديث وقال الشعرانى فى كشف الغمه، وكانوا يصلونها فى اول زمان عمر بثلاث عشرة ركعة...... وكان امامهم ابى بن كعب وتميما الدارى ثم ان عمر...... امر بفضلها ثلاثا وعشرين ركعة ثلث منها وتراً واستقرالامر على ذلك فى الامصار.
(التعليق الحسن على اثار السنن ص ۲۰۴ باب فى التراويح بعشرين ركعة)

﴿۳﴾ عن عبد الرحمن بن عبد القارى قال خرجت ...... (بقيه حايشه په راروانه صفحه)

دغه شان دَ "علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین.(۱) .حدیث په بناء باندې به سنتِ نبوی وی. داخو ناممکن ده چه دَ شرالقرون اهلِ حدیث دَخیرالقرون دَ خلفاؤ نه زیات متبع سنت وی.

واما حدیث لایزید فی رمضان ولافی غیره علی احد عشر رکعة فمحمول علی التهجد بدلیل ولا فی غیر رمضان وکذا محمول علی الغالب ﴿۲﴾ فافهم وللتفصیل مقام آخر. وهوالموفق

## په تراویح کښې جماعت دَ رسول اللهﷺ اوخلفاؤ دَ زمانې نه معمول دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې وائی چه تراویح په جماعت سره دَرسول اللهﷺ اوخلیفه اول په زمانې کښې نه دې شوې اودَدویم خلیفه په حکم سره باجماعت کړې شوې وی. لیکن داحکم ځلورم خلیفه منسوخ کړې دې .آیا ددې سړی داخبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی:نذیراحمد چیف ګډزکلرک ریلوې ګودام مردان.... ۱۹۷۰ء/۱۰/۱۳.

---

(بقیه حاشیه) مع عمر بن الخطاب لیلة الی المسجد فاذا الناس اوزاع متفرقون یصلی الرجل لنفسه ویصلی الرجل فیصلی بصلاته الرهط فقال عمر انی لو جمعت هؤلاء علی قارئ واحد لکان امثل ثم عزم فجمعهم علی ابی بن کعب قال ثم خرجت معه لیلة اخریٰ والناس یصلون بصلاة قارئهم قال عمر نعمت البدعة هذه والتی تنامون عنها افضل من التی تقومون یرید آخر اللیل وکان الناس یقومون اوله، رواه البخاری. (مشکواة المصابیح ص۱۱۵ جلد۱ باب قیام شهر رمضان الفصل الثالث)

﴿۱﴾ (مشکواة المصابیح ص ۳۰ جلد۱ باب الاعتصام بالکتاب والسنة)

﴿۲﴾ قال الشیخ محمد ذکریا الکاندهلوی: قال شیخ مشائخنا مولانا الجنجوهی کان السائل ظن ان رسول اللهﷺ لعله کان یزید فی رمضان علی ماتهجد فی غیره فردته بقولها ماکان یزید فی رمضان ولا فی غیره ای فی غالب الاحوال والاوقات فالغرض الانکار علی زیادة رکعات التهجد لخصوصیته رمضان فلاینا فیه ماکان یصلیه فی بعض الاحیان فوق احدی عشرة رکعة وکذا لا تعلق له بصلاه التراویح نفیا ولا اثباتا. (فتح الملهم شرح الصحیح المسلم ص ۲۹۱ جلد۲ باب صلاة اللیل وقدر رکعات النبیﷺ)

**الجواب**: پیغمبر علیه السلام تروایح په جماعت سره درې شپې کړې دی (رواه البخاری) او باقی شپو کښې ئې د (فرضیت دویرې) دعذر په وجه جمات کبری پریخودلې دې (۱) اوکوم کارچه دعذر د وجې نه متروک شی هغه حکماً معمول شمار کیږی. پس ګویا چه پیغمبر علیه السلام په جماعتِ کبری باندې حکمی دوام کړې دی (۲) اوصدیق اکبر رضی الله عنه ددې کار متعلق څه تغیر او تبدیلی اونه کړله. البته حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د پیغمبر علیه السلام تمنا پوره کړه اوپه جماعت کبری باندې ئې دحقیقی تمنا معمول جوړ کړو (۳)

---

﴿۱﴾ عن عائشة ام المؤمنين ان رسول الله صلى الله عليه وسلم صلىٰ ذات ليلة فى المسجد فصلى بصلاته ناس ثم صلى من القابلة فكثر الناس ثم اجتمعوا من الليلة الثالثة اوالرابعة فلم يخرج اليهم رسول الله صلى الله عليه وسلم فلما اصبح قال قد رأيت الذى صنعتم ولم يمنعنى من الخروج اليكم الاانى خشيت ان يفرض عليكم وذلک فى رمضان. (الصحيح البخارى ص ۱۵۲ جلد ۱ باب تحريض النبى صلى الله عليه وسلم على قيام الليل والنوافل من غير ايجاب)

﴿۲﴾ وفى المنهاج : وفى رواية البخارى نعم البدعة هذه ليس المشار اليه قيام رمضان لانه سنة الرسول، ولا قيامه بالجماعة الصغرىٰ لان النبى صلى الله عليه وسلم لم ينكر على ابى بن كعب حين صلى بنسوة وكذا حين صلى بالناس فى ناحية المسجدولاالجماعة الكبرىٰ لان النبى صلى الله عليه وسلم فعلها ثلاث ليال، ولا الجماعة الكبرىٰ على وجه الدوام لان النبى صلى الله عليه وسلم تركها خشية الافتراض ولو لاهذه الخشية لما تركها فهذه مواظبة حكماً وارادة.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ص ۸۲ جلد ۴ قبيل ابواب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم)

﴿۳﴾ عن عبد الرحمن بن عبد القارى: انه قال خرجت مع عمر بن الخطاب ليلة فى رمضان الى المسجد فاذا الناس اوزاع متفرقون يصلى الرجل لنفسه ويصلى الرجل فيصلى بصلاته الرهط فقال عمر انى ارى لو جمعت هؤلاء على قارئ واحد لكان امثل ثم عزم فجمعهم على ابى بن كعب ثم خرجت معه ليلة اخرىٰ والناس يصلون بصلاة قارئهم قال عمر نعم البدعة هذه والتى ينامون عنها افضل من التى يقومون يريد آخر الليل وكان الناس يقومون اوله.
(صحيح البخارى رقم حديث: ۲۰۱۰ كتاب صلاة التراويح)

اوخلیفه ثالث او رابع او نورو امامانو په دې کښې هیڅ تغیر او تبدیل نه دې کړې دآثارو نه ښکاره معلومیږی چه حضرت علی ﷛ شل رکعته تراویح کړی دی.(۱) .وهوالموفق.

## چه په دیرشمه شپه دَ شوال احتمال وی نو تراویح به باقاعده ادا کولې شی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې په دیرشم رمضان باندې شوال کیږی آیا په دې اندازې سره چه نه څه شهادت وی او نه مضبوط علامات وی دَ دیرشم رمضان په شپه باندې تراویح کول پکار دی یا نه ؟که کول غواړی نو په مقرر وخت باندې او که نه دَشپې په آخرنئ حصه کښې ؟آیا وتر به باجماعت کوی او که نه اوکه شهادت نه وی خوقوی علامت موجود وی نو بیا څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی:سیف الله بنوی.........۱۹٦۹ء/۱۰/۷.

**الجواب:** ددې شپې دَشوال کیدلو احتمال همیشه او هروخت وی.لهذا ترڅو پورې چه دَشوال حکم نه وی شوې نوتراویح اووتربه باقاعده په جماعت سره ادا کولې شی او دَ وترو اعاده نه لازم ده او نه مستحب.اوعلامات لکه دَښار

---

**﴿۱﴾ قال البیهقی: و روینا عن شتیر بن شکل وکان من اصحاب علی رضی الله عنه انه کان یؤمهم فی شهر رمضان بعشرین رکعة ویوتر بثلاث وفی ذلک قوة لما اخبرنا ابوالحسن بن الفضل القطان ببغداد(بسند متصل) عن ابی عبد الرحمن السلمی عن علی رضی الله عنه قال دعا القراء فی رمضان فامرمنهم رجلا یصلی بالناس عشرین رکعة قال وکان علی رضی الله عنه یوتربهم ورروی ذلک من وجه آخرعن علی.**

**(السنن الکبریٰ للبیهقی ص ۶۹۹ جلد۲ باب فی عدد رکعات القیام فی رمضان)**

**﴿۲﴾ قال ابن نجیم : (قوله ویثبت رمضان برؤیة هلاله او بعد شعبان ثلاثین یوماً) لحدیث الصحیحین صوموا لرؤیته وافطروا لرؤیته فان غم علیکم فاکملوا عدة شعبان ثلاثین.**

**(البحر الرائق ص ۲٦۳ جلد۲ کتاب الصوم)**

نه د عادت مطابق ډزو په آوازونوباندې اعتماد کول صحیح دی.(۲) وهو الموفق.

## دَ جماعت په ځائې په عام چوک کښې دَ تروایح جماعت کول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو پیش امام اودهغه سره یوڅو سړی په یو چوک کښې پنځه وخته مونځ او تروایح کوی.هلته صفائی هم نه وی دَچیلم سګریټو وغیره ګندګی فی الحال موجود ده.او داچوک دَجمات نه څلویښت ګزه لرې دې.اوجمات ته راتللو نه څه شرعی مانع هم نه دې موجود دې.صرف دَسستئ په وجه جمات ته نه حاضریږی.او وائی چه زمونږ جماعت په سنت طریقې سره اداکیږی.آیا دَ دوی دا خبرې صحیح دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:ګل ولی پائی ضلع ټانګ دارالعلوم ارشادیه.

**الجواب**:داکسان دَجمات دَفضیلت نه محروم دی. لیکن دَجماعت فضیلت ورته حاصل دې.لتحقق الجماعة.(۳) نعم تکره الصلوة ان کان فی الطریق او

---

(۱) قال ابراهم الحلبی: ولایصلی الوتر بجماعة الا فی شهر رمضان ومعناه الکراهة دون عدم الجواز...... واما فی رمضان فلا خلاف فی نفی کراهة الجماعة فیه ولکن اختلفوا فی الافضل ففی فتاویٰ قاضی خان الصحیح ان الجماعة افضل لانه لما جازت الجماعة کانت افضل اعتباراً بالمکتوبة. (غنیة المستملی شرح منیة المصلی ص ۴۰۱ بحث التراویح والوتر)

(۲) قال ابن عابدین: قلت والظاهر انه یلزم اهل القریٰ الصوم بسماع المدافع اورؤیة القنادیل من المصر لانه علامة ظاهرة تفید غلبة الظن وغلبة الظن حجةموجبة للعمل کما صرحوا به واحتمال کون ذلک لغیر رمضان بعید اذ لا یفعل مثل ذلک عادة فی لیلة الشک الا لثبوت رمضان. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۹۹ جلد ۱ مطلب الاعتماد علی قول الحساب مردود)

(۳) قال العلامة حلبی رحمه الله: وان اقیمت التراویح فی المسجد بالجماعة وتخلف عنها رجل من افراد الناس وصلی فی بیته فقد ترک الفضیلة لا السنة...... وان صلی واحد فی بیته بالجماعة حصل لهم ثوابها وادرکوا فضلها ولکن لم ینالوا افضل الجماعة التی تکون فی المسجد لزیادة فضیلة المسجد وتکثیر جماعته واظهار شعائر الاسلام.
(غنیة المستلی المعروف بالکبیری ص ۳۸۴ فصل فی النوافل)

تحقق مایشغل باله صرح العلامة الشامی فی ردالمحتارص۲۹۳ جلد۱(۱)وهوالموفق

**ثل رکعته تراویح بغیرتعدیل نه او اته(۸) په تعدیل سره دواړه په غلطئ دی**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو امام شل رکعته سره دَ وترو او فرضو په شل منټه کښې کوی چه نه پکښې تسبیحات لوستلې کیږی نه پکښې تعدیل الارکان وی. په بل جمات کښې اته رکعته تراویح سره دَ وترو او فرضو په شل منټه کښې دَتعدیل الارکان سره کیږی. په دې صورت کښې دکوم امام اقتداء کول پکار دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمد خالق عنایت کلے باجوړ............ ۱۷/۷/۱۹۸۴ء.

**الجواب:** دا دواړه دَفضیلت دَلارې نه خالی دی. او دواړه بدنصیبه دی.(۲) وهوالموفق.

**یوځائې کښې ئې تراویح اوکړې نودویم امام پسې په تراویح کښې اقتدا کول**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو امام خپل قوم ته دَ مختصرو تراویح نه پس دویم جمات ته راځی حافظ صاحب پسې دَقرآن اودریدلو دپاره اقتداء کوی. امام صاحب دَ جواز دپاره دَ حضرت شیخ عبدالقادر جیلانی رحمہ اللہ دملفوظاتو حواله ورکوی. او دویم کس وائی چه دا ناجائز دی. ځکه چه دا دَ تداعی الی النوافل بالجماعة" صورت دې. چه هغه فقهاؤ منع کړې دې. اوس به څه صورت وی جائز یا ناجائز؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ ارشادالدین زیارت کاکاصاحب نوشهره۱۹۷۲ء/ ۱۴/۱۰.

---

﴿۱﴾ قال الحصکفی: وکذا کل ما یشغل باله عن افعالها ویخل بخشوعها..... وکذا تکره فی اما کن کفوق کعبة وفی طریق، قال ابن عابدین: وفی طریق لان فیه منع الناس من المرور وشغله بما لیس له لانها حق العامة للمرور. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص۲۷۹ جلد۱ قبیل مطلب تکره الصلاة فی الکنیسه)

﴿۲﴾ قال الحصکفی: ویجتنب المنکرات هذرمة القرأة وترک تعوذ وتسمیة وطمانینة وتسبیح واستراحة. (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص۵۲۳ جلد۱ قبیل باب ادراک الفریضة)

**الجواب**: دَ زید دا کار مکروه نه دي.

**کما فی شرح الکبیر ص ۳۵۲ ولو ام رجل فی التراویح ثم اقتدأ بآخر فی تراویح تلک اللیلة ایضا لا یکره له ذلک کما لو صلی المکتوبة اماماً ثم اقتدیٰ فیها متنفلا بامام آخر ﴿۱﴾. وهو الموفق**

## دَ ټولې محلې والا په تراویح کښې جماعت پرېښودل او په کورونو کښې دَ ادا کولو حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیو کلی امام چه دَ کلی جمات پرېږدی او دَځو غټانو خلقو دَخوشحالولو په طریقې سره دَهغوی په بیټک کښې دَ تراویح جماعت کوی. اوبل طرف ته ددې کلی جمات بالکل شاړ دی. هلته یو څو غریبانان کسان ځان ځانله مونځ کوی او دَجمات امام بل ځائې تراویح ورکوی. ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم............ ۱۴/۱۰/۱۹۷۲ء.

**الجواب**: دَدې محلې خلق "تارک السنت" دی.

**لان الجماعة فیها سنة علی سبیل الکفایة حتی لو ترک اهل المحلة کلهم الجماعة وصلوا فی بیوتهم فقد ترکوا السنة، شرح الکبیر ص۳۴۷ ﴿۲﴾**

دَامام او غیرامام حکم یو شان دې. وهو الموفق.

## دَ فاتح مقرر کولو نه بغیر هم تراویح ورکول صحیح دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو حافظ قرآن په رمضان شریف کښې دَ تراویح ختم کوی. اوخپل ځان پسې فاتح نه مقررکوی حال داچه بعضې ځائې حافظ غلط کیدلې هم شی چه دَهغې تدارک بغیر د فاتح نه ناممکن دې دَشریعت په رڼا کښې دا مونځ صحیح دې یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالمستعان کاټلنګ مردان............ ۱۲/۱۰/۱۹۷۲ء.

---

﴿۱﴾ (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص ۳۸۹ فصل فی النوافل)

﴿۲﴾ (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص ۳۸۴ فصل فی النوافل)

**الجواب**: چه کله فرض مونځ بغیرفاتح نه کول صحیح دي اومکروه نه دي نو دَ تراویح کول به بغیر فاتح نه په طریقه اولی سره صحیح وی.وهوالموفق.

## په عربو ملکونو کښې دَ احنافو دپاره په تراویح کښې دَ حنفی امام اهتمام کول

**سوال**:علمائې دین دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ په عرب امارات کښې مقیم یو.هغه اهلِ حدیث خلق تراویح دولس رکعته او وتر یو رکعت یواځې کوی. مونږ دلته شپیته (۲۰) اویا(۷۰).پاکستانیان یو که مونږ په رمضان کښې حنفی امام اوساتو اوپه خپله دیره کښې دَتراویح اهتمام اوکړو نوددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.........۱۹۸۷ء/۲/۱۸.

**الجواب**: که قانونی خطره نه وی نو دا طریقه بهتره ده.

**لان الافضل الاقتداء بمن یوافق فی الفروع کما فی ردالمحتار ص۲۹۶ جلد۱ فلیراجع ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## که تراویح او وترو په مینځ کښې قوم ته تکلیف وی نو ډیر کیناستل نه دی پکار

**الجواب**:علمائې دین دي مسئلې باره کښې چه مونږ کښې دوه درې کسان دَ تراویح نه پس او دَ وترو نه مخکښې نفل کوی.اوعوامو ته په دې انتظار باندې تکلیف وی ځکه چه ضعیف کسان هم په مونځ کښې وی نومولوی صاحب اوفرمائیل چه دَتراویح نه متصل پس وتر کوئ.اوکه دَوترو نه پس دَچا زړه خومره غواړی هومره نفل دې کوی کولې شی.دامسئله زید او بکر

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: ان الاقتداء بالمخالف المراعی فی الفرائض افضل من الانفراد اذ لم یجد غیره و الا فالاقتداء بالموافق افضل.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۱۷ جلد۱ مطلب اذا صلی الشافعی قبل الحنفی هل الافضل الصلاة مع الشافعی ام لا باب الامامة)

اونه منله او دَامام خلاف شول او دَصف نه اووتل ځانله نفل کوی په دې کښې مولوی صاحب کوم حدپورې صحیح دې؟ اوزید او بکر ترکوم حد پورې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالقدوس خان پښتون ګهړی پشاور.

**الجواب**: که قوم ته کلیف وی نو ددې کسانو انتظار نه دی کول پکار.

**( فی الهندیه ص ۱۲۲ جلد ۱ ) ویستحب الجلوس بین الترویحتین قدر ترویحة وکذا بین الخامسة والوتر کذا فی الکافی وهکذا فی الهدایه ولو علم ان الجلوس بین الخامسة والوتر یثقل علی القوم لا یجلس هکذا فی السراجیه﴿۱﴾. وهوالموفق**

## دَ تراویحو او وترو په مینځ کښې ځانله نفل کول جائز دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې خلق دَ تراویحو نه پس او وترو نه مخکښې دوه رکعته نفل کوی آیا د اجائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق اکوړه خټک............ ۱۹۸۷ء/۱۱/۲۹.

**الجواب**: دَ تراویحو او وترو په مینځ کښې انفرادی طورسره نفل کول جائزدی.

**کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ص ۴۹۵،۴۹۶ جلد ۱ وکذا بین الخامسة والوتر ویخیرون بین تسبیح وقراه وسکوت وصلوٰة فرادیٰ ﴿۲﴾. وهوالموفق**

## په غلطئ سره دَ دوه رکعتونو په ځائې څلور رکعته تراویح دَ قعده اولی نه بغیر د کولو حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په تراویح کښې چرته دَ دوه رکعتونو په ځائې څلور رکعته بغیر دَ قعده اولی نه اوکړی نودا تراویح

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ص ۱۱۵ جلد ۱ فصل فی التراویح)
﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۲۲ جلد ۱ باب الوتر والنوافل)

صحیح شوي یا نه ؟ که صحیح وی نو دوه رکعته به شمار کیږی یا څلور ؟ او د ختم القران تلاوت به دوباره کیږی یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی:عبدالرحمن حقانی وزیرستان.........۱۵ ۹ ۱۹۷۹ء

**الجواب**: په دې صورت کښې به دویمه شفعه دَ قرات سره واپس راګرځولې شی.

**کما فی الهندیه ص۱۱۸ جلد ۱ وعن ابی بکر الاسکاف انه سئل عن رجل قام الی الثالثة فی التراویح ولم یقعد فی الثانیة قال ان تذکر فی القیام ینبغی ان یعود ویقعد ویسلم وان تذکر بعد ما سجدللثالثة فان اضاف الیها رکعة اخریٰ کانت هذه الاربع عن تسلیمة واحدة وفیها ایضا واذا فسد الشفع وقد قرأ فیه لا یعتد بما قرأ فیه ویعید القرأة لیحصل له الختم فی الصلوٰة الجائزه وقال بعضهم یعتد بها کذا فی الجوهرة النیرة ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## دَ تراویحونه علاوه په نوافلو کښې دَ قران پاک اورولو د پاره دَجماعت اهتمام کول

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَتراویح نه پس یا بل وخت کښې په نفلو کښې دَجماعت په صورت سره دَ قران پاک منزل اورولې شم یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمدرمضان جلال پورجټان ګجرات........۲۵/۹/۱۹۷۷ء.

**الجواب**: دَشلو(۲۰) رکعتونه زیات قیام اللیل" قیامِ رمضان نه دې.لهذا دَتراویح نه پس به نفل بلاجماعت ادا کولې شی.باجماعت کول به مکروه وی چه کله مقتدیان دَ دریو(۳) نه زیات وی.

**کما فی البدائع ان الجماعة فی التطوع لیست بسنة الا فی قیام رمضان(بحواله ردالمحتار ص۴۷۶ جلد ۱) وفی شرح التنویر ولا یصلی الوتر ولا التطوع بجماعة**

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ص۱۱۸ جلد ۱ فصل فی التراویح)

خارج رمضان ای یکره ذلک لو علی سبیل التداعی بان یقتدی اربعة بواحد کما فی الدرر ﴿۱﴾ انتهیٰ، والمراد من التطوع قیام رمضان بدلیل عبارة البدائع وبدلیل ما فی الهندیه ص ۱۲۳ جلد ۱ ولو صلی التراویح ثم اراد ان یصلوا ثانیا یصلون فرادیٰ کذا فی التتارخانیه﴿۲﴾. وهوالموفق

## په تراویح کښې حافظ صاحب سره بل قوم ته دوباره ختم کول اختلافی دی لیکن دَ ترکِ سنت نه اولی دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه یو حافظ که په یوځائې کښې په عشره اولی کښې ختم القرآن په تراویح کښې کړې وی آیا په دویم ځائې کښې بیا وئیلې شی؟ حال داچه په تراویح کښې یوځل ختم قرآن سنت دې او دَ حافظ سنت ادا شوې دی. اوس په دویم ځل به ئې داعمل مستحب وی او دَ مستحبو اداکونکی پسې دَسنت مونځ ادائیګی څنګه صحیح کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: سلطان خان ترناب فارم پیښور..........۱۹۷۷/۹/۱۹ء.

**الجواب:** کوم حافظ چه په تراویح کښې یوځل قرآن ختم کړی نوپه دوباره ختم کولو سره دَ دویم قوم سنت نه ادا کیږی. دامختار قول دې البته دَ "الم ترکیف" والا تراویح نه بهتردی. لان الاداء الاختلافی اولی من ترک السنة اصلا، دغه شان داکه حافظ دویم ختم په ځان نذر کړی نو دَ قوم سنت به ادا شی. (ماخوذ از مجموعة الفتاوی للکهنوی). ﴿۲﴾ . وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۲۲ جلد ۱ مبحث صلاة التراویح)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ص ۱۱۶ جلد ۱ فصل فی التراویح)

﴿۳﴾ علامه عبدالحی لکهنوی رحمة الله علیه فرمائی! په سغنافی کښې دی په یو امام یو قران شریف په تراویح کښې دَیو قوم سره ختم کړو. اودویم دَ دویم قوم سره. نوددې دویم قوم د ذمې نه به سنت نه ساقطیږی. ځکه چه ددې امام په دویم ځل ختم القرآن دول سنت نه دی. نودَهغه دپاره به داعمل نفل وی نومقتدیان به دَنفلو ثواب او[illegible] دتراویحو به نه مومی. اودَحضرت مولانا صدرالدین حسام په رساله "مسائل تراویح" کښې دی ده څوک دَ... (باقی حاشیه په بل مخ)

**دَ حافظ صاحب یوځل ختم کولونه پس په دویم ځل نوي قوم دپاره ختم کول**

**سوال**:علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو حافظ په یوجمات کښې ختمِ تراویح اوکړی اوبیاپه دویم جمات کښې دویم ختم شروع کړی نو آیاددې حافظ صاحب اودَعوامومسنون ختم اداکیدلې شی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی:قاری حضرت گل ضلع بنوں..........۱۹۷۸ء/۹/۱.

**الجواب**:کوم حافظ چه یوځل په تراویح کښې ختم اوروليې وی هغه بل قوم ته په تراویح کښې ختمِ قران اورولې شی په دې کښې دَچانقصان نشته.

(وتمام البحث فی مجموعة الفتاویٰ ص۲۶۷ ، ۲۶۸ جلد ۱) ﴿۱﴾ **قلت قولهم ان الختم مرة سنة ومرتين فضيلة وثلاثاافضل ﴿۲﴾ يدل على ان هذا الامام اقویٰ حالاً من القوم لانه الادنی ونظيره ما اذا ام ذلک الحافظ فی التراويح ويقرأ الم تركيف على قول من قال لا يكره له ترک التراويح، فافهم، وقلت: ان قدروی بعض اهل العلم**

﴿بقیه حاشیه﴾ یوامام باره کښې سوال اوکړی چه هغه یو قرآن شریف په تراویح کښې ختم کړو او دویم ئې شروع کړو نو دده اقتداء هغې خلقو دپاره جائز ده چاچه ختم نه دې اوریدلې اوکه هغه خلق ئې اقتداء اوکړی نو داختم به حسابیږی یا نه؟ څه وایم چه دامسئله دَدهلی دَاستاذانو په مجلس کښې یوزمانې پورې په بحث کښې پاتې شوې.چاوې چه اقتداء صحیح نه ده ځکه په دې کښې دَقوی بناپه ضعیف باندې لازم راځی.ځکه چه دَمقتدی تراویح سنتِ موکده دی.اودَامام سنتِ موکده نه دی بلکه نفل دی.اودَنفلو نه سنتِ زائد قوی دی.اوهغوی ددې صورت په هغه صورت باندې قیاس کړې دې.چه په هغې کښې فرض کونکې دَنفلو کونکی پسې اقتداء اوکړی.اوبعضې وائی چه جائز دی.نوچه دده په سقوطِ ختم او عدمِ سقوط کښې اختلاف واقع شو نوامام لره پکار دی چه دویم ختم سره دَتراویح نه په ځان باندې نذرکړی اوداسې اووائی "لله علی ان اختم القران فی صلوة التراويح" چه دَامام ختم واجب او دَمقتدیانو اقتداء صحیح شی.

**وتفصيله فی خزانة الرواية. (مجموعة الفتاویٰ ص۲۰۵،۲۰۴ جلد ۱ کتاب الصلوٰة)**

**﴿۱﴾(مجموعة الفتاویٰ للكهنوی ص ۲۲۴ جلد ۱ کتاب الصلاة)**

**﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۲۲ جلد ۱ مبحث صلاة التراويح)**

عن كنز الفتاوىٰ ام قوماً فى التراويح وختم فيها ثم ام قوماً آخرين له ثواب الفضيلة ولهم ثواب الختم انتهىٰ ﴿١﴾ فهو الراجح لانه لافرق بين الصلاتين فى الاركان والواجبات فكيف يكون اقتداء القوى بالضعيف والاعتبار للصلاة دون شئ آخر. فافهم

## حافظانو ته په ختم تراويح کښې پيسې ورکول هديه وی اُجرت نه

**سوال**: علمائي دين دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په تراويح کښې تلاوت دقران مجيد باندې اجرت اخستلو په باره کښې ستاسو صاحبانو رائې څه ده. دَ بهارِ شريعت په څلورمه حصه کښې دی چه وئيلو اوريدلو والا ډيرکسان دا اووائی چه نه اخلو اونه ورکوو. اوبيا روستو واخلی. نودې هيڅ خبره نشته آيا دا صحيح ده؟ بينوا توجروا.

المستفتی: گل محمد خطيب مرکزی جامع مسجد ټهی
تله گنگ کيمل پور۔ ١٩٦٩ء/١/٥.

**الجواب**: دَچندې ورکونکو طرفته مراجعت کولو نه معلوميږی چه داپيسې کومې چه حافظ ته ورکولې کيږی دادَتحفې په طورباندې دی. اودَتحفې په اخستلو او ورکولو کښې که هغه معروف وی يا مشروط وی هيڅ حرج نشته. والحرج انما هوفى الاجرة سواء كانت مشروطة اومعروفة وكلتا هما منتفيان لعدم عقد الاجارة بالقول ولا بالتعاطى فتدبر. دغه شان که دا اومنلې شی چه دا معروف اجرت دې بياهم په دې کښې څه حرج نشته. ځکه چه حافظانو ته دا رقم صرف دَختمِ القران په معاوضه کښې نه ورکولې کيږی. اونه صرف دَامامت په معاوضه کښې ورکولې شی. بلکه حافظانو ته داپيسې هغه وخت ورکولې شی چه کله امام جوړشی په تراويح کښې ټول قرآن رکنِ قرات جوړکړی يعنی دادَ

﴿١﴾ (مجموعة الفتاوىٰ للكهنوى ص ٢٢٤ جلد ١ كتاب الصلاة)

امامت خاصه معاوضه ده او په امامت باندې اجرت اخستل په مفتی به قول سره جائز دی.﴿۱﴾.

**کما لا یخفیٰ علی من راجع الی کتاب الاجارات، ومارو ی انه علیه الصلاة والسلام قال اقرء وا القرآن ولا تأکلوا به، فانما هو امر من الاقرأ لا من القرأة لان الفقهاء انما استدلوا به لعدم جواز اخذ الاجرة علی التعلیم فالتقریب انما یتم علی التقدیر الاول فافهم وراجع الی العرف ومسئلة رزق القاضی. وهوالموفق**

## حافظ ته په ختم تراویح کښې دَ څه ورکولو په باره کښې دَ ورکونکی نیت معتبر دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که په رمضان شریف کښې یو حافظ دَختم قرآن دپاره مقررکړې شی هغه څه غواړی نه لیکن خلق ورته خامخا څه ورکوی.نواوس ددې باره کښې داطریقه ښه ده چه دَچا زړه غواړی حافظ ته دې ورکړی اوکه نه داطریقه چه فلانکې فلانکې دومره دومره روپئ ورکړئ.شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولوی سمیع الحق اچینی پایان پشاور......۲۳/۹/۱۹۷۷ء.

**الجواب:** دَورکونکی نیت معتبر دې لهذا دا دواړه طریقې برابر دی.یعنی که چرته ورکونکی دَشکرانې او اکرام نیت کړې وی نوبغیراختلاف نه جائز دی.اوکه دَفیس یعنی(اجرت) نیت ئې کړې وی نوهغې کښې اختلاف دې.

**مال اکثر الاکابر الی عدم الجواز لانها اجرة التلاوة ومال البعض الی الجواز لانها اجرة الامامة المقیدة بقراءة مخصوصة وهو الاقویٰ والاول احوط﴿۲﴾. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویفتی الیوم بصحتها لتعلیم القرآن والفقه والامامة (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۳۸ جلد۵ باب الاجارة الفاسدة)

﴿۲﴾ وقال فی المنهاج: واماما یعطی الحفاظ فی رمضان عند ختم القرآن فالحق انه جائز لانها هدیة معروفة لیست باجرة ویشهد له حدیث الترمذی عن انس رضی الله عنه ان رجلا من کلاب سال النبی ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال یا رسول الله انا نطرق الفحل فنکرم فرخص له فی الکرامة والاعتبار لنیة الدافع دون الآخذ فافهم ولو سلم انه اجرة فلا حرج فیه ایضا لانها لیست عوض التلاوة البحتة ولا الامامة البحتة بل هی عوض الامامة المسنونة المخصوصة ولا ضیر فی اخذ الاجرة علی الامامة المقیدة... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## حافظ ته څه ورکول دَصلې مکافات او اکرام په طور معروف دی دَ اجرت په طور نه

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ "المعروف کالمشروط" په طور سره چه په رمضان شریف کښې حافظ ته کوم رقم ورکولې شی دا اجرت ورکول جائز دی یا نه؟ مادې خلقو ته خوځلې اووئیل چه تاسو خامخادَحافظ صاحب خدمت کول غواړئ نومخکښې ولې نه ورکوئ خاص دَختم قران په شپه باندې ورکول صحیح نه دی ځکه اجرت مقررول اودَقرآن لوستل حرام دی. وغیره وغیره. لهذا تاسو صاحبان دامسئله اولیکئ؟ او راولیګئ چه خلق ددې قبیح کارنه بند شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عزیزالله خطیب جامع مسجد ډیره لال حید آباد سندهـ

**الجواب**: حافظ ته چه کوم رقم ورکولې شی هغه غالباً صله، مکافات او اکرام وی، اجرت مشروط یا معروف نه وی ځکه چه نه عقدِاجاره موجود ده اونه څه اشتراط متحقق دې او نه په یوخاص اجرت باندې عرف جاری دې. اونه حافظ دَحاکم او قاضی سره مطالبه کولې شی. په خلاف دَمزدور او اجیرچه دهغه اجرت په شرط یا عرف سره معلومیږی. اوهغه مرافعه الی القاضی هم کولې شی. نوحافظ ته دا پیسې ورکول جائز دی: یدل علیه ما روی الترمذی عن انس رضی الله عنه ان رجلاً من کلاب سال النبی علیه السلام عن عسب الفحل فنهاه فقال انانطرق الفحل فنکرمه فرخص له فی الکرامة.﴿۱﴾ .ددینه علاوه خبره داده چه دا رقم حافظ ته صرف دَ ختمِ القران په وجه نشی ورکولې. لکه چه څنګه ئې صرف دَامامت په وجه نشی ورکولې. بلکه دارقم په امامت مخصوصه (چه دَهغې دَقرأت رکن ټول قران دې) باندې ورکولې شی نودې رقم ته مونږ ناجائز نه شو وئیلې. وآراء الاکابر فیه مختلفة.

**نوټ**: داجواب زمونږدَعلاقې په عرف باندې مبنی دې. وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه) بمکان اوزمان او قرأة سورة وسورٍ هذا. (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ص ۹۰ جلد۲ باب کراهیة ان یاخذ الموذن علی الاذان الاجر)

﴿۱﴾ (سنن الترمذی ص ۱۵۳ جلد ۱ باب ماجاء فی کراهیة عسب الفحل)

## په تراویح کښې قرات تیزول او قومه او جلسه پریخودل منکرات او مکروهات دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَتراویح په مونځ کښې دومره تیزی کول چه په قرأت .رکوع.سجده.قومه اوجلسه وغیره کښې دومره لنډوالې اوکړی چه دَمونځ هغه اصلیت بالکل ختم شی آیا دغه شان ډیر زر زر تراویح کول جائز دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:محمدفریدعرف فریدی شهرمردان........۲۴/رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب**:دَجماتونو دَامامانو په تراویح کښې دا تیز قرأت.دَقومې اوجلسې پریخودل وغیره ټول په ټوله منکرات اومکروهات دی.

**کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ص ۴۷۵ جلد ۱ ویجتنب المنکرات هذرمة القراة وترک تعوذ وتسمیة وطمانینة وتسبیح واستراحة ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په لاؤډسپیکر باندې تراویح کول او په اوریدونکو باندې دَسجده تلاوت دَلازم کیدلو مسئله

**سوال**:علمائې دین مسئلې باره کښې څه فرمائی.(۱).په رمضان المبارک کښې قرآن پاک ختم په لاؤډ سپیکرسره په اوچت آواز وئیل جائز دی یا نه؟

(۲).سجده تلاوت چه کوم عام خلق آوری هغه اکثربې اودسه وی دَهغوی په ذمه سجده تلاوت واجیبږی یا نه ؟ (۳).دغه دوران کښې خلق په بازارونو حجرو او کورونو کښې ګپ شپ لګوی آیا داخلق په ګناه کښې واقع کیږی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی:مولاناشمس العارفین عرف قریشی صاحب حق صیاحب کانګړه چارسده ۱۴/۱۰/۱۹۷۲ء

**الجواب**:(۱).په لاوډسپیکر باندې تراویح کول(اوختم کول) بذات خود ممنوع نه دی.البته دَتکلیف رسولو اودآوازونو دَاشتباه وغیره عوارضو په وجه به ممنوع وی.﴿۲﴾ .(۲).اهل فن ته دَمراجعت کولو نه پس معلومیږی چه په دې آلې سره

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۲۳ جلد ۱ قبیل باب ادراک الفریضة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: وفی حاشیه الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفاً وخلفا علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد......(بقیه حاشیه په راروانه ص

اصلی آواز اوچت شی او اوریدلې کیږی نو دَدې تحقیق پـه بنـاء بانـدې بـه پـه ټولو اوریدونکو باندې سجده تلاوت لازم وی چـه یوعبادت دې ګناه نـه ده. والاسرار ادب لمن یقراخارج الـصلاة فـافهم.﴿۱﴾ .(۳).دا خلق پخپله دَجرم ارتکاب کوی حافظ صاحب خوڅه جرم نه دې کړې.﴿۲﴾ .

**نوټ**: پـه مقـامی بـااثره مـسلمانانوباندې ضـروری دی چـه پـه اوچت آواز سره ریډیو وغیره غږولـو دَتکلیـف نـه دینـدار خلق اومـونځ ګـذاره اوبیمـاران بـچ کړی.وهوالموفق.

## پـه لاؤډ سپیکردَ شبینې دَختم حکم

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه پـه لاؤډسپیکر باندې دَشبینې ختم جائز دې یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم.......۱۸/جمادی الاول ۱۴۰۲هـ.

**الجواب**:پـه لاؤډسپیکر باندې تلاوت او ذکرکول بـذاتِ خـود جائز دې البتـه دَ ایذاء پـه صورت کښې ناجائز دی.

**کـمـا یشیـر الیـه مـا رواه الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفاً وخلفاً علی استحباب ذکر الجماعة فی المساجد وغیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم او**

---

(بقیه حاشیه) وغیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم او مصل او قارئ.

(ردالـمـحـتـارعـلـی هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ا مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب مایفسد الصلاه وما یکره فیها)

﴿۱﴾ قـال ابـن عـابـدین: (قوله واستحسن اخفاء ها الخ) لانه لو جهر بها لصار موجبا علیهم شیئًا بما یتکاسلون عن ادائه فیقعون فی المعصیة فان کانوا متهیئین جهربها بحر عن البدائع قـال فـی الـمـحـیـط بشـرط ان یقـع فی قلبه ان لا یشق علیهم اداء السجدة فان وقع اخفاها.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۵۲۶ جلد ا قبیل باب صلاة المسافر)

﴿۲﴾ وفی الهندیه: رفع الصوت عند سماع القرآن والوعظ مکروه.

(فتاویٰ عالمگیریه ص ۳۱۹ جلد۵ الباب الرابع فی الصلاة والتسبیح وقراة القرآن الخ)

مصل الخ (ردالمحتار)﴿۱﴾ لیکن چه کوم سرې په لاؤډسپیکرسره ریکارډنګ باندې انکار نه کوی دَهغه په شبینه باندې انکارکول دَالتفات قابل نه دې. وهوالموفق

### دَ رمضان نه علاوه په درې شپو کښې دَ رسوماتو نه پاک دَ شبینې ختم جائز دې

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَرمضان نه علاوه دَ قران پاک داسې شبینه چه دَ مروجه رسوماتونه پاک وی جائز ده یا نه؟ (۱). چه په هغې کښې په جماعت کښې دَشرکت کولو دعوت نه وې ورکړې شوې مقتدیان صرف دوه وی. (۲) دَلاوډسپیکرآوازدَجماعت نه بهرنه ځی. (۳). سامعین په جماعت کښې په ادب سره سماعت کوی. (۴). قاری صاحب په نوافلوکښې قران پاک په اوچت آواز سره وائی. (۵). آنحضرت ﷺ او دَامت ټولو اکابرینو نه ایصالِ ثواب مقصود وی. (۶). شبینه په درې شپوکښې وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نصرالله رحیمی مسجدزکریا فیصل آباد........۱۴۰۹ھ.

**الجواب**: ظاهری طور سره داشبینه جائز ده دَفقهې دَقواعدو سره متصادم نه ده، وهوالموفق.

### اته رکعته تراویح کونکی په غلط فهمئ کښې مبتلا دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوسړې وائی اته(۸) رکعته تراویح دی اوشل رکعته ثابت نه دی آیادَهغه داخبره صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمدیوسف سرکی اټک...... ۳۰/ذی الحجه ۱۴۰۲ھ.

**الجواب**: کوم خلق چه اته رکعته تراویح منی هغه په غلط فهمئ کښې مبتلا دی هغوی نه په تراویح اوتهجدوکښې فرق کوی اونه دَحدیث په الفاظو "فی رمضان وغیره" کښې غور کوی، په غیررمضان کښې تهجدکولې شی تراویح نه. ددینه علاوه دَ نورو تصریحاتو نه هم سترګې پټوی. من کان فی هٰذه

---

﴿۱﴾ (ردالمحتارهامش الدرالمختارص۴۸۸ جلد۱ مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها

اعمیٰ فهو فی الآخرة اعمیٰ، وهو ما رواه البیهقی عن ابن عباس انه علیه السلام صلی فی رمضان عشرین رکعة سوی الوتر ﴿١﴾ وقال البیهقی استقر الامر علی عشرین وقال ایضاً کانوا یصلون عشرین رکعة فی عهد عمر وعثمان وعلی وفی کنز العمال ان ابیا رضی الله عنه کان یصلی لهم عشرین رکعة، وروی مالک عن یزید بن رومان مثله﴿٢﴾ . وهوالموفق

**تراویح شل رکعته دی په خیرالقرون کښې اته رکعته دَ چامذهب هم نه دي**

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ اهل حدیثو دَطرفه یو اشتهار شائع شوې دې په هغې کښې دی چه شل رکعته ثابت نه دی البته اته رکعته تراویح دَ احادیثو نه ثابت دی.اوشل کول مستحب دی.خوسنت نه دی. نوآیا تراویح واقعی شل رکعته ثابت نه دی؟ او آیا واقعی اته رکعته ثابت دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: شیراحمد خطیب جامع مسجد جوړی.

**الجواب**:واضحه دې وی چه تراویح اوتهجد جدا جدا مونځونه دی تهجدټول کال زمونږ په نزد مسنون اومستحب دی اوتراویح صرف په رمضان کښې کول سنت موکده دی.درمضان نه علاوه په نورومیاشتوکښې تراویح کول دَچاپه نزد هم مسنون نه دی.لهذا داحدیث (چه اهلِ حدیث وغیره ئې په استدلال کښې پیش کوی). لایزیدفی رمضان ولا فی غیره الحدیث"په تهجدوباندې محمول دې په تراویح نه بدلیل ولافی غیره،اوپه غالبواوقاتوحمل دې په دوام نه بثبوت الزیادة فی روایات اخری، نودې حدیث سره دَتراویح په شمار استدلال کول دَمنلو قابل نه دې.

﴿١﴾ (السنن الکبریٰ للبیهقی ص٦٩٨ جلد٢ باب ما روی فی عدد رکعات القیام فی شهر رمضان)

﴿٢﴾ عن یرید بن رومان :قال کان الناس یقومون فی زمان عمر بن الخطاب رضی الله عنه فی رمضان بثلاث وعشرین رکعة. (السنن الکبریٰ للبیهقی ص٦٩٩ جلد٢ باب ماروی فی عدد رکعات القیام فی شهر رمضان)

نعم روی ابن خزیمة عن جابر رضی الله عنه عن النبیﷺ ثمان رکعات ثم اوتر لاکنه فعل لیلة واحدة لیدل علی نفی الزیادة فی تلک اللیلة ولا فی غیرها ومع ذلک اتفق جمهور الصحابة والتابعین علی عشرین فی آخر الامر دون ثمان، قال البیهقی ثم استقر الامر علی عشرین وقال ایضا بالعناد صحیح انهم کانوا یقومون علی عهد عمر بعشرین رکعة﴿۱﴾ وعلی عهد عثمان وعلی وفی کنزل العمال ان ابیا رضی الله عنه صلی بهم عشرین رکعة وروی الامام مالک عن یزید بن رومان کان الناس یقومون فی زمن عمر بن الخطاب بثلث وعشرین رکعة﴿۲﴾ وماروی عن مالک ان عمر امرابی بن کعب وتمیما الداری ان یقوما للناس باحدی عشر رکعة﴿۳﴾ فقال ابن عبد البر هذا وهم من مالک وقال البیهقی وابن حبیب المالکی انه فی اول الامر ثم استقرالامر علی عشرین قلت فالراجح هو العشرون دون الثمانیة لانه معمول الخلفاء الراشدین وقال رسول اللهﷺ علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدین ﴿۴﴾ و لان العدد لا یعرف بالعقل فهذا و ان کان موقوفا ظاهرا لاکنه مرفوع حکماً والقیاس یوید نا لا ن السنن مکملات الفرائض وهی عشرون مع الوتر فافهم. ولا تکن من اهل البخاری و کن من اهل الحدیث،

هم داوجه ده چه مونږاو امام شافعي اواهلِ مکه شلو ته ترجیح ورکوو. اوتعجب دادې چه دَخیرالقرون په امامانو کښې اته رکعته دَهیچامذهب نه دې. وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ (السنن الکبریٰ للبیهقی ص۹ ۹ ۶ جلد۲ باب ما روی فی عدد رکعات القیام فی شهر رمضان)

﴿۲﴾ (السنن الکبریٰ للبیهقی ص۹ ۹ ۲ جلد۲ باب ما روی فی عدد رکعات القیام فی شهر رمضان)

﴿۳﴾ (السنن الکبریٰ للبیهقی ص۸ ۹ ۲ جلد۲ باب ما روی فی عدد رکعات القیام فی شهر رمضان)

﴿۴﴾ (مشکوٰة المصابیح ص ۳۰ جلد۱ الفصل الثانی باب الاعتصام بالکتاب والسنة)

# المنهج الصحیح فی رکعات التراویح

اهل ظاهر عام طور سره داکوشش کوی چه عوام دَخیرالقرون دَامامانو نه بدګمانه کړی او یو څو احادیث دَعوامو مخې ته کیږدی چه امت په فروعی مسائلو کښې مبتلا کړی اوتفرقه بازی کوی.دَهغې نه یوه دَ تراویح دَرکعتونو د شمارمسئله ده.چه ډیره په زور اوشور سره پیش کولې شی.حضرت مفتی مدظله، دَ احادیثو او دلیلونو په رنړا کښې دَهغوی په ردکښې دامقاله لیکلې وه چه په بعضو ماهنامو کښې شائع شوې وه،دې باب سره د تعلق لرلو په وجه فتاوٰی کښې شامل کولې شی چه استفاده کښې زیادت راشی.(ازمرتب).

واضحه دې وی چه په رمضان المبارک کښې دَتراویح مونځ کول سنتِ مؤکده دی.

**کما صرح به فی الهندیه وشرح التنویر ومراقی الفلاح والجوهرة من کتب الحنفیة وفی الروضة والتوشیح من کتب الشافعیة والشرح الکبیر من کتب المالکیه والروض ونیل المآرب من کتب الحنابلة.**

البته دَتراویح په شمارکښې اختلاف دې دَامام ابوحنیفه او امام شافعی رحمه الله په نزد ددې مونځ دَرکعتونو شمیرشل دې.

**کما صرح به فی البدائع وغیره من کتب الحنفیة، وفی المجموع من کتب الشافعیة وهی روایة عن مالک کما فی شرح المهذب، واختار ابو عمر ابن عبد البر المالکی کما فی شرح التقریب وذکره ابن رشد فی البدایة عن احمد ورواه ابن قدامة فی المغنی عن احمد.**

او ابن قاسم په مدونه کښې دَامام مالک نه روایت کړې چه تراویح ۳۶ رکعته دی.اووتردرې(۳) رکعته دی.اوامام ترمذی دَامام احمدنه روایت کړې دې چه هغه دَڅه خاص شمیرقائل نه دې.دَهغه په نزددې کښې توسیع ده اته رکعته

شل رکعته او ۳۲ رکعته ټول جائز دی.او دَ احنافو په مشائخو کښې علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائی چه اته رکعته دَسنتِ رسول کیدلو په وجه مؤکده دی. او شل رکعته دَسنتِ خلفائې راشدینو په وجه سنتِ زائده دی.بهرحال ائمه اربعه او دَهغوی په متبعینو کښې چاهم دَاته رکعتونو نه زیات(مثلاً شل رکعته) ته بدعت یامکروه نه دې وَئیلې.البته بعضې غیرمقلدینو اته رکعته مسنون ګرځولې دی او ددېنه په زیات تعداد باندې انکار کړې دې.اودا مسئله ئې دَ درې طلاقه یو طلاق ګرځولو مسئلې پشان دَبې علمه اوکم عامه خلقو دَښکار دام جوړ کړې دې.اعاذناالله من شرور الفرق الشاذة المخالفة عن السواد الاعظم.

غیرمقلدین دَحضرت سیده عائشه رضی الله عنها په دې حدیث سره تمسک کوی.وهو ما رواه البخاری ماکان رسول الله صلی الله علیه وسلم یزید فی رمضان ولافی غیره علی احدی عشر رکعتة،یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم به نه په رمضان کښې یوولسو(۱۱) رکعتونو باندې زیاتې کولو او نه په غیررمضان کښې.(بخاری ص۱۵٤ جلد۱ کتاب التهجد)، دغه شان داخلق دَحضرت جابر رضی الله عنه په دې حدیث سره دلیل نیسی.(وهوماروا‌ه ابن خزیمة وابن حبان انه علیه السلام قام بهم فی رمضان فصلی ثمانی رکعات ووتر.یعنی حضور اقدس صلی الله علیه وسلم (دَصحابه کرامو رضی الله عنهم سره) په رمضان کښې قیام اوکړو او اته رکعته مونځ ئې اوکړو.او وتر ئې هم اوکړل.

**قال النیموی مداره علی عیسیٰ بن جاریة قال الذهبی قال ابن معین عنده منا کیر، وقال النسائی منکر الحدیث وعنه ایضا متروک وقال ابو زرعة لا بأس به وقال فی الخلاصه وثقه ابن حبان، وقال ابوداؤد منکر الحدیث انتهیٰ.**

دغه شان داخلق دَسائب بن یزید په حدیث سره تمسک کوی.وهوماروا‌ه مالک فی الموطا،انه قال امر عمربن الخطاب ابی بکر بن کعب وتمیم الداری ان یقوم للناس باحدی عشررکعة.جمهوردحضرت ابن عباس رضی الله عنه ددې حدیث نه استدلال کوی.

وهومارواه ابن ابی شیبة والطبرانی والبیهقی انه علیه الصلوة والسلام یصلی فی رمضان عشرین رکعة سوی الوتر،یعنی حضور ﷺ به په رمضان المبارك کښې د وترو نه علاوه شل رکعته مونځ کولو.قال الزیلعی هومعلول بابی شیبة وهومتفق علی ضعفه،ددې حدیث دَمعلول کیدلو باوجود په دې سره استدلال صحیح دې.ځکه چه دا حدیث امت قبول کړې دې.اوامام ابن قیم او امام سیوطی وغیرهما رحمهما الله تصریح کړې چه کوم حدیث امت قبول کړی نوهغه به صحیح ګرځولې شی.اګرکه هغه حدیث دَسند په لحاظ سره صحیح نه وی دغه شان دې حدیث ته دَخلفائې راشدینو په تعامل سره ډیرلوئې تائید اوقوت حاصل شوې دې.

دغه شان جمهور دَامام بیهقی دَسنن کبری په حدیث سره استدلال کوی.

**وهو ما رواه یزید بن خصیفة عن السائب بن یزید قال کانوا یقومون علی عهد عمر بن الخطاب فی رمضان عشرین رکعة وفی عهد عثمان وعلی.**

دَدې حدیث نه په واضح انداز ثابتیږی چه دَخلفائې راشدینو په زمانه کښې په شلو رکعتونو عمل راغلې.اودې باندې تعامل او توارث پاتې شوې دې.اودَ **علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین (رواه ابن ماجه وغیره)** حدیث په بناء چه څنګه دَسنت رسول اتباع ضروری ده دغه شان دَسنت خلفائې راشدینو اتباع هم ضروری ده.اوددینه اعراض یا په دې باندې اعتراض دَحدیث رسول اوقول رسول نه اعراض او په هغې اعتراض دې.اعاذنا الله تعالی منه

دغه شان دَخلفائې راشیدینو داسنت داسې سنت دې چه دَهغې ادراک په عقل او اجتهاد سره نه کیږی ځکه چه دَیوڅیز شمیر اومقدار په فکر او رائې سره نشی متعین کیدلې.نو داسې سنت په حقیقت کښې دَرسول سنت وی.

واضحه دې وې چه اهل ظاهر داحدیث سنداً اومتناً معلول ګرځولې دې ځکه چه امام آجری دَامام ابوداؤد نه روایت کړې چه امام احمدیزیدبن

الخصیفه ته منکر الحدیث وئیلي دي.دغه شان اهل ظاهر وائی چه داحدیث متناً مضطرب دې ددې په بعضې روایتونو کښې یوولس رکعته کول هم مروی دی. کماروا ه المالک فی الموطا،دغه شان دا حدیث دَحضرت عائشه رضی الله عنها دَحدیث سره معارض دې چه هغه ددې حدیث نه قوی دې.

جمهورو ددې اعتراضاتو اهلِ ظاهر ته سخت سخت جوابات ورکړې دی.اول داچه ائمهٔ ددې حدیث تلقی کړې ده او دائې اخستې دې اوخطیب په خپل کتاب الفقه والتفقه کښې اوابن قیم په اعلام الموقعین.کښې او علامه سیوطی په تدریب الراوی کښې اوابن عبدالبر په استذکار کښې او نورو فنونو والو په خپلو تالیفاتوکښې داقاعده لیکلې ده چه دکوم حدیث دَ اهل علم تلقی اوکړی نودا تلقی ددې حدیث دَصحت شهادت عادله دې. دویم داچه یزیدبن خصیفه مشهور تابعی دې.دده نه امام مالک،امام بخاری، اوامام مسلم وغیرهم روایت نقل کړی.ابن حبان هم دې ثقه ګرځولې دې.کمافی تهذیب التهذیب،وتهذیب الکمال للمزی،والهدی الساری،اوحافظ ابن حجر رحمه الله په الهدی الساری کښې دَآجری د روایت داجواب ورکړې دې چه امام احمدبن حنبل دَ اثرم په روایت کښې ده ته ثقه وئیلي دی.اودائې وئیلي دی چه امام احمدهغه راوی ته منکرالحدیث.وائی چه هغه په خپلو اقرانو کښې دَیوحدیث په روایت کولوکښې متفرد وی،اودامسلمه قاعده.ده چه دَثقه راوی تفرد مقبول وی. ترخوچه په دلیل سره دَهغې غلط کیدل ثابت شوې نه وی،نوپس په دې بناء باندې به دَیزیدبن خصیفه حدیث مقبول وی.

داضطراب دَدعوې جواب دا دې چه ابن عبدالبر او ابوبکربن العربی دَ احدی عشر، والا روایت دَامام مالک وهم ګرځولې لیکن چونکه عبدالعزیز بن محمد اویحیی بن سعید القطان دَامام مالک متابع دی. کما لایخفی علی من راجع الی سنن سعیدبن منصور ومصنف ابن ابی شیبة.لهذا دَامام مالک په وهم کښې پریوتل نا قابل تسلیم دی. حافظ ابن حجر رحمه الله دا

اختلاف د اوقاتو په اختلاف باندې حمل کړې یعنی چه کله به ئې اوږد قرأت کولو نو اته یادولس رکعته به ئې کول.اوچه مختصرقرأت به ئې کولو نوشل رکعته به ئې کول.

**کما قال الشعرانی فی کشف الغمة کانوا یصلونها فی اول زمان عمر بثلث عشرر کعة ثم عمر امر بفعلها ثلاثا وعشرین رکعة ثلاث لها وتر، واستقر الامر علی ذلک...... قال النیموی کما استقر الامر فی خلافته علی ضرب الثمانین فی الخمر وکما استقرالامر علی النهی عن بیع امهات الاولاد وکما استقر الامر علی اربع تکبیرات الجنائز وکما استقر الامر علی القرأة فی خلافة عثمان رضی الله عنه کما فی الاوجز،**

اودا مسلمه قاعده ده چه په ترجیح اوتطبیق سره اعتراض ساقطیږی.

د اهلِ ظاهر دا اعتراض چه دَیزید حدیث دَحضرت عائشه دَحدیث سره معارض دې چه هغه اقوی دې جواب دا دې چه دَیزید اوحضرت عائشه په حدیثونو کښې هیڅ تعارض نشته.ځکه چه دَعائشه په حدیث کښې ددغې رکعتونو نه مراد دَتهجدومونځ دې قیام تراویح اوقیام رمضان نه،ځکه چه په غیررمضان کښې تراویح نشی کولې.اوعندالتحقیق تراویح اوتهجدځان ځانله حقائق دی.اوکه دااومنلې شی چه تهجد اوتراویح ځان ځانله مونځونه نه دی نواهلِ ظاهر ته وئیلې کیږی چه دَحضرت عائشه په حدیث کښې هم اختلاف دې ځکه چه امام بخاری په صحیح البخاری په باب مایقرا فی رکعتی الفجـــر، کښې دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه ده دیارلس رکعتونو حدیث روایت کړې دې.ولفظه کان رسول اللهﷺ یصلی باللیل ثلاث عشرة رکعة ثم یصلی اذا سمع النداء بالصبح رکعـــتین،دَدې اختلاف اوتعارض اهلِ ظاهرڅه جواب ورکوی؟ که اهلِ ظاهر داجواب ورکوی چه احدی عشر،والا روایت په غالـب حـالاتو بانـدې حمـل دې او زیـادت پـه بعـضې اوقاتوبانـدې حمـل دې.نوددې اهلِ ظاهر په اته رکعتونو باندې جمود اوکلک کیدل باطل شو او پخپله توره باندې قتل شول اوکه اهلِ ظاهر ددې تطبیق نه اعراض کوی

نو داختلاف په وجه باندې دَحضرت عائشه رضي الله عنها دواړه روایتونه ساقط شول او دَیزید بن خصیفه حدیث بلاتعارض پاتې شو او واجب العمل شو. واضحه دې وی چه دَجمهورو مسلک دَنظر او شواهدو په رنړا سره هم قوی دې. ځکه چه په ورځ شپه کښې شل رکعته اعتقادی اوعملی فرائض دی، نومناسب داده چه تراویح هم چه دَفرضو مکملات دی شل رکعته دی. لکه چه سننِ قبلیه او بعدیه هم شل رکعته دی. دَاهلِ ظاهر دَ دلائلو جوابونه دا دی چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها حدیث په تهجدوباندې محمول دې نه دا چه په تراویح باندې. اوپه غالب باندې محمول دې نه داچه په دائم باندې. ګنې نودَحضرت عائشه رضي الله عنها روایتونه به متعارض شی. بلکه امام احمد په زیاداتِ مسند کښې دَحضرت علی رضي الله عنه نه په اسنادِحسن سره روایت کړې دې چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم به په شپه کښې شپاړس رکعته نفل کول. دغه شان دَحضرت عائشه رضي الله عنها داحدیث په ابتداء باندې محمول دې هغه وخت چه په شلو رکعتونو باندې استقرار نه وو شوې.

دَحضرت جابر رضي الله عنه دَروایت نه حافظ ابن حجر داجواب کړې. لاکنه فعل جزءی فی لیلة واحدة لا یدل علی نفی الزیادة تلک اللیلة، او دویم جواب دا دې چه دا په ابتداء الامرباندې محمول دې. وقدمرسابقاجواب حدیث السائب.

اوداخبره دې واضحه وی چه دَابن الهمام سره نورو مشائخواتفاق نه دې کړې ځکه چه دَابن عباس رضي الله عنه په روایت کښې شل رکعته کول دَفعل رسول، نه ثابت دی. دغه شان په حدیث ،علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین کښې دَ علیکم لفظ سنتِ رسول او سنتِ خلفاءدواړو ته یو شان متوجې دې نو په دواړو کښې فرق کول دَپوهې نه اوچتې خبرې دی. داسنتِ دخلفاء اګرچه ظاهراً موقوف دې لیکن په حقیقت کښې مرفوع دې.

**لعدم کونه مدرکاً بالرای والقیاس وهو الموفق والهادی،**
**وصلی الله تعالیٰ علی سید نا خیر خلقه محمد و آله واصحابه واتباعه اجمعین.**

## شبینه بدعت نه دي جائز ده

علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په محله کښې تقریباً دَپنځلس شل کالو راسې دَرمضان په آخری درې شپو کښې شبینه کولې شی سامعین ئې ډیرپه شوق سره اوری.دَهغې دلیل دا دې چه هفته یوه نیمه هفته مخکښې دَپروګرام متعلق تپوس کوی په چاباندې هیڅ قسم دباؤ(زور) نه وی اونه پکښې څوک مجبوراً شاملیږی.قاریان اوحافظان هم په شوق سره لولی.څه دنیا وی لالچ اودَفائدې طمع ئې نه وی.بعضې خلق په خپله خوشحالئ په اقتداء کښې نیت تړی او اوری اوبعضې دغه شان په جمات کښې ناست وی اوری.دَتیرو پنځلس شلو نه چاهیڅ شکایت نه دې کړې لیکن تیرکال یو سړی اووئیل چه دا بدعت دې،په دې سره خلقو ته تکلیف رسیږی.دَشبینې اهتمام دَشریعت په رڼا کښې څنګه دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ بشیراحمد حافظ آباد ګوجرانواله.....۳/نومبر۱۹۷۴ء.

**الجواب**: دَسلف صالحینو نه ورځ شپه کښې یو ختم کول بلکه ددینه زیات ختمونه کول مروی لهذا دیته به بدعت نه وئیلې کیږی.البته افضل به نه وی.

**قال الامام السیوطی فی الاتقان ص ۱۰۴ جلد ۱ وقد کان للسلف فی قدر القرأة عادات فاکثر ماورد فی کثرة القرأة من کان یختم فی الیوم واللیلةثمان ختمات اربعا فی اللیل واربعا فی النهار ویلیه من کان یختم فی الیوم واللیلة اربعا الخ﴿۱﴾. ولقد الف مولانا اللکهنوی فیه الرسالة المسماة بالاکثار فی العبادة لیست ببدعة فلیراجع ﴿۲﴾ وهوالموفق**

**﴿۱﴾ (الاتقان فی علوم القرآن ص ۱۰۴ جلد ۱ النوع الخامس والثلاثون فی آداب تلاوته)**

**(۲)** البته په شبینه کښې دضرورت نه د زیات جهراجازت نشته چه بیماروغیره ته ضرر وتکلیف نه وی اویوخل چه ختم شوې وی نوبیا په شبینه کښې د عام مقتدیانو لحاظ ساتل پکاردی صرف د مخصوصو مقتدیانو نه.(سیف الله حقانی)

## دَ دوو ترویحو په مینځ کښې ذکر بالجهر کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم خلق په تراویح کښې دَ دوو ترویحوپه مینځ کښې په ناسته باندې ذکربالجهر په زرو سره دَ لا اله الا الله، وائی یو سړې وائی چه دا حرام اوبدعت دې او دلائل پیش کوی ادعوا ربکم تضرعا وخفیة دون الجهر،واذا سالک عبادی الخ،اودَاحادیثو نه هم حوالې ورکوی چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ذاکرین بالجهر مبتدعین ګرځولې وو او دَجمات نه ئې بهرویستلې وو ،اوپه زورسره ذکر کول ریاکاری ،ځان ښودل حرام اومکروه دی دده په مقابله کښې دویم کس وائی چه دَمفتی به مسلک نه ته بې خبره ئې په مذکوره آیتونو کښې عندالمفسرین دعا دَمونځ نه بهر یا قرأت دَمونځ مراد دې.لکه چه علامه بغوی هوالصحیح وئیلوسره فیصله کړې .اوعبدالله بن مسعود خلق دَذکربالجهر په وجه نه وو ویستلې بلکه په دې وجه چه دغه خلقو دامستقل عبادت ګڼړلو او کولو ئې.باقی که دَفتاوی بزازیه پوره عبارت اولوستلې شی نو ذکر بالجهرته به کله هم بدعت اونه وائی.بلکه صاحب دَجاء الحق په ص۳۵۷کښې دَحضرت عبدالله بن مسعود دَخلقو لره دَویستلو وجه دَبعضې مونځ ګذاوو اوپه جماعت اول کښې خلل انداز کیدل ظاهر کړی دی.اوټول مفسرین اوفقهاء فرمائی چه که په جهر سره نزدې والا کس ته ضرر یاتشویش وی نو ممنوع دی.مثلاً په خواکښې مونځ ګزار وی یا اوده وی ګنې ذکربالجهر په مساجدو کښې خارج از مساجدکول افضل اومستحب دې.اودَتراویح په باره کښې صاحب دَمجالس الابرار په باب التراویح،۱کښې فرمائی ان شاء واسبحوا وهللوا اوسکتوا وهم مخيرون، علامه ابن حجر په فتح الباری کښې ذکر روستودَمونځ نه په عنوان سره دَحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه ددې روایت لاندې ان رفع الصوت بالذکر حین ینصرف الناس من المکتوبه کان علی عهد

النبی ﷺ وقال ابن عباس کنت اعلم اذا انصرفوا بذلک سمعته، نقل فرمائیلې
دې فیه دلیل علی جواز الجهر بالذکر عقب الصلاة، په ردالمحتار کښې
دی، اجمع العلماء سلفاً وخلفاً علی استحباب ذکرالجماعة فی المساجد وغیرها،
تفسیرروح البیان، سباحة الفکر بحواله مرقاة شرح مشکواة او خزینة الاسرار،
کښې مذکور دی که ریاکاری نه وی نو په اوچت آواز سره ذکرکول جائز
دی، اومستحب دی چه خوب او غفلت لرې شی اوپه طبیعت کښې
خوشحالی وی. ددین عظمت وی، محلې، دکانونه، کورونه، اونې او ترځناورو
پورې ګواه جوړشی. شیخ محمد تهانوی رحمه الله فرمائی چه حضور ﷺ به
دمونځ نه پس دَخپلو صحابه کرامو رضی الله عنهم سره په اوچت آواز سره تسبیح وتهلیل
او ذکر کولو. (دلائل اذکارص ۷۲).

علامه ګنګوهی په فتاوی رشیدیه کښې فرمائی ذکرجهر برابره خبره
ده چه هرذکروی دَامام ابوحنیفه په نزد سیوا دَهغې موقعونه چه جهری ثبوت
وی هلته مکروه دی. اوصاحبین او نور فقهاؤ او محدیثینو په نزد جائز دی.
او زمونږ دَ مشائخو مشرب دَصاحبینو دَمذهب اختیارول دی، دَدې مسئلې
متعلق فیصله اوکړئ او بیان ئې کړئ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمود شاه اوګی مانسهره هزاره...... ۱۴/۱۱/۱۹۷۴ء.

**الجواب**: الذکرالجهری جائز خلاف الاولی الاعندالایذاء فانه مکروه،(۱). الا اذا
کان مطلوباشرعافانه مشروع، وهوالمصوب.

## دَ فرضو کولو نه بغیر تراویح کول

**الجواب**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم سړی دَعشاء دَ

**﴿۱﴾** قال العلامة ابن عابدین: عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفاً وخلفا علی استحباب ذکرالجماعة فی المساجد وغیرها الا ان یشوش جهرهم علی نائم اومصل او قارئ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸ جلد ۱ مطلب فی رفع الصوت بالذکر باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)

مونځ فرض نه وی کړې او تراویح شروع کړی .نوآیا دَفرض کولو نه بغیر داسړې تراویح کولې شی یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: ریاض الدین.......۱۹۸۸ء/۹/۲۲.

**الجواب**:کوم امام چه فرض مونځ نه وی کړې نوهغې امام پسې اقتداء صحیح نه ده او نه دَهغه ذمه دَتراویح نه فارغیږی. کمافی الهندیه ص۱۲۲ جلد۱ لان وقتها بعداداء العشاء فیجب الاعادة اذا ادی قبل العشاء،(۱)وبمعناه فی الشرح الکبیر ص۳۸۵،(۲).هوالموفق.

## دَ تراویح د مونځ نه پس دَ امام اجتماعی دعا غوښتل

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ امام صاحب دَتراویح د مونځ نه پس اجتماعی طور سره دعا غواړی آیا دا صحیح دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالرحمن اچهره لاهوربنار...........۱۹۸۱ء/۹/۸.

**الجواب**:که دا دعا غوښتل دَالتزام په طور سره نه وی نو مکروه نه ده.(۳). وهوالموفق..

---

**(۱)** (فتاویٰ عالمگیریه ص۱۱۵ جلد۱ فصل فی التراویح)

**(۲)** قال العلامة الحلبی: وقال القاضی الامام ابو علی النسفی الصیح ان وقتها بعد العشاء لا تجوز قبلها سواء کانت بعد الوتر او قبله وهو المختار لانها نافلة سنة بعد العشاء بفعل وکذا المنقول من فعله علیه الصلوٰة والسلام فکانت تبعا لها کسنتهاوتقدیم الصحابة لها علی الوتر. (غنیة المستملی ص۳۸۵ فصل فی النوافل)

**(۳)** قال المفتی الاعظم المفتی کفایت الله رحمه الله تعالیٰ: (دَ دعا بعد السنن والنوافل) حکم دا دې چه که په هغې کښې څه قسمِ التزام نه وی او بهتر او افضل ئې نه گڼړی او په پریخودونکی باندې ملامتیانه کوی او دَاجتماع اهتمام نهِ کوی او امام ورته پابندولې نه شی نوکه دَسنتونه روستو کوم خلق اتفاقی طور سره موجود وی او دعا اوغواړی نو جائزدی.(کفایة المفتی ص۳۴۰ جلد۳ سنن ونوافل نه پس داجتماعی دعا ثبوت شته یا نه، فصل اول) ............ (باقی حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ مخصوص شبينې حکم

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په دې زمانه کښې دَ شبينې ختم په لاؤډسپيکرباندې دَنمود او نمائش دپاره دومره زر زر کوی چه په هغې کښې دَ زبر زير فرق نه وی آيا داسې شبينه په صحابه کرامو رضی الله عنهم او خيرالقرون کښې معمول وه آيا په دې طريقې سره شبينه کول جائز دی؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالرشيد......۳۰/۲/۱۹۸۴ء.

**الجواب**: بشرط صدق مستفتی دا شبينه ناجائز او خلاف سنت ده،داسې شبينه په خيرالقرون کښې معمول نه وه.(۱) .وهوالموفق.

## دَ تراويح او وترو په مينځ کښې نفل کول

**سوال**:علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَتراويح او وترو په مينځ کښې نفل کول جائز دی يا ناجائز ؟ بينوا توجروا.

المستفتی:عبدالرزاق مردان..........۲/۱۰/۱۹۷۲ء.

---

(بقيه حاشيه) مفتی عزيزالرحمن صاحب فرمائی: دَسنتو او نفلو نه پس اجتماعی طور مقتديان دَدعا پابند کول نه دی پکار.دَفرضو نه پس که مثلاً يو سړې کورته ځی اوسنت کوی نوهغه ولې پابند کولې شی.اوکه څوک داسې اوکړی هغه دَملامته کولو لائق نه دې.او دا رواج چه دَسنتو اونفلو نه پخپله هريوسړې کله فارغ شو دعا کوی اوځی يا فرضو نه پس کورته ځی سنت کوی دې کښې څه تنگی نه دی کول پکار.

**(فتاویٰ دارالعلوم ديوبند ص ۲۱۲ جلد۴ باب مسائل سنن مؤکده)**

**﴿۱﴾ قال الحصکفی: ويجتنب المنکرات هذرمة القراة وترک تعوذوتسمية وطمانينة وتسبيح واستراحة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۲۳ جلد۱ مبحث التراويح)**

**وفی الهنديه: ويکره الاسراع فی القراءة وفی اداء الارکان کذا فی السراجية.**

**(فتاویٰ عالمگيريه ص۱۱۷ جلد۱ فصل فی التراويح)**

**الجواب**: دَوترو او تراویح په مینځ کښې نوافل کول جائز دی.

**کما فی شرح التنویر ویجلس ندبا بین کل اربعة قدرها و کذا بین الخامسة والوتر ویخیرون بین تسبیح وقرأة وسکوت وصلاة فرادی﴿۱﴾. وهوالموفق**

## دَ نذرّ نفل کونکی پسې تراویح کول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ نذر نفل کونکی پسې سنت تراویح کول صحیح دی یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ تعویذگل نریاب هنگو.........۳/جنوری ۱۹۸۳ء.

**الجواب**: دا اقتداء صحیح ده.هذابناء الادنی علی الاقوی(مجموعة الفتاوی).﴿۲﴾.

وهوالموفق.

## دَ پیغمبرﷺ نه اته(۸) رکعته تراویح ثابت نه دی.

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ یو ملګرې وائی چه په رمضان المبارک کښې اته رکعته تراویح کول پکار دی ځکه چه رسول اللهﷺ نه ددینه زیات نقل نه دی.

---

**﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۲۲ جلد ۱ مبحث صلاه التراویح)**

**﴿۲﴾ علامه عبدالحی لکهنوی فرمائی**: په اولنی اختلاف باندې یو ژور نظر اچولونه پس دا معلومیږی چه تراویح او نور سنتونه اونفلونه په مطلق نیت او دَنفلو سره پوره کیږی لکه چه ابن همام ددې تحقیق کړې دې.اوپه دویم اختلاف باندې ژور نظر کولو سره دا معلومیږی چه که تراویح کونکې نفل کونکی پسې اقتداء اوکړی نو تراویح به ئې ادا شی.لیکن دکراهت نه خالی نه دی ځکه چه دې کښې دَسلفو مخالفت دې.نوپه داسې صورت کښې بهتر ده چه امام ځومره تراویح دَبل جماعت سره کول غواړی دَهغې نذر دې اومنی اوپه دې طریقې سره دې هغه په ځان واجب کړی نودَبناء القوی علی الضعیف' والا شبهې نه به محفوظ شی.

(مجموعة الفتاوی ص۲۳۵ جلد۱ کتاب الصلوة).

اوکه ددینه زیات یعنی شل رکعته اوکړی نو په هغې کښې ثواب نیشته آیا داسې څه دلیل شته چه دَهغې نه داثابته وی چه تراویح اته رکعته دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد نثار سدوخیل پړانګ چارسده........۱۸/صفر ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** دَپیغمبر علیه السلام نه اته رکعته تراویح ثابت نه دی اونه دا دَائمه اربعهٔ دَمذهب دې ﴿۱﴾ .دادَاهلِ حدیث مذهب دې چه من حیث التحقیق په غلطئ باندې دی.وهوالموفق.

---

﴿۱﴾قال العلامه ابن عابدین: (قوله وهی عشرون رکعة)هو قول الجمهور وعلیه عمل الناس شرقا وغربا وعن مالک ست وثلاثون وذکر فی الفتح مقتضی الدلیل کون المسنون منها ثمانیه والباقی مستحبا وتمامه فی البحر وذکرت جوابه فیما علقته علیه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۲۱ جلد ۱ مبحث صلاة التراویح)

وقال العلامه حسن الشرنبلالی: التراویح سنة کما فی الخلاصة وهی موکدة کما فی الاختیار وروی اسد بن عمر وعن ابی یوسف قال سالت ابا حنیفة عن التراویح وما فعله عمر رضی الله عنه فقال التراویح سنة موکدة ولم یتخرصه عمرمن تلقاء نفسه ولم یکن فیه مبتدعا ولم یامر به الا عن اصل لدیه وعهد من رسول الله ﷺ ......ثبت سنیهتا بفعل النبی ﷺ وقوله قال علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین من بعدی وقد واظب علیها عمر وعثمان وعلی رضی الله عنهم...... وقول بعضهم سنة عمر لان الصحیح انها سنة النبی ﷺ، قال العلامه طحطاوی وفی الفتاویٰ الهندیه عن الجواهر هی سنة رسول الله ﷺ وقیل هی سنة عمر رضی الله عنه والاول اصح وفی حاشیة السید علی العلامه مسکین وما قیل یکفر من یقول انها سنة عمر رضی الله عنه کما تقوله الروافض فممنوع فقد صرح فی کثیر من المتداولات بانها سنة عمر یعنی یعنی بالنظر لکونها عشرین رکعة وللمواظبة علیها وذلک لا یمنع کونها سنة رسول الله ﷺ ایضا لما ذکرنا.

(حاشیة الطحطاوی علی المراقی الفلاح ص ۲۲۴ فصل فی صلاة التراویح)

**په ختم القرآن اجرت اودَ پنځه څلویښت روپو نه کم اجرت نه اخستلومسئله**

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَختم القرآن کولو نه پس په دې پیسې ورکول اخستل څه حکم لری؟ دغه شان داهم واضح کړئ چه واقعی په ختم القرآن باندې دَ۴۵روپو نه کم اجرت اخستل جائز نه دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ حجاج ولی بنوں......۸۸ء ۴/۲/

**الجواب**: په ختم القرآن باندې اجرت اخستل جائز دی چه کله دَدنیوی مقصد دپاره وی اوکه دَ ایصالِ ثواب دپاره وی نو بیا اختلوکښې اختلاف دې او چه کله تراویح کښې وی نو دَتحقیق په بناء باندې جائز دی. ﴿۱﴾. اودَ۴۵ روپونه کم نه اخستلو والا مسئله فقهائې کراموضعیفه او کمزورې ګرځولې. **فلیراجع الی ردالمحتار ص۴۸ جلد۵ وما نقل عن بعض الهوامش وعزی لحاوی الزاهدی من انه لا یجوز الاستیجار علی الختم باقل من خمسة واربعین درهما فخارج عما اتفق علیه اهل المذهب ﴿۲﴾. وهوالموفق.**

**﴿۱﴾ وفی المنهاج: واما اخذالاجرة واعطاء ها علی ایصال ثواب التلاوة فانکر علیه اکثر الفقهاء لکن کلام البحر فی باب الوقف یدل علی الجواز وعبارة السراج الوهاج صریح فی ان جواز الاخذ هو القول الاصح ای عند تعین المکان فالاحوط هو الاجتناب ، واماما یعطی الحفاظ فی رمضان عند ختم القرآن فالحق انه جائز لانها هدیة معروفة لیست باجرة ویشهد له حدیث الترمذی عن انس ان رجلا من کلاب سأل النبی ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال یا رسول الله انا نطرق الفحل فنکرم فرخص له فی الکرامة والاعتبار لنیة الدافع دون الآخذ فافهم، ولو سلم انه اجرة فلا حرج فیه ایضا لانها لیست عوض التلاوة البحتة ولا الامامة البحتة بل هی عوض الامامة المسنونة المخصوصة ولا ضیر فی اخذ الاجرة علی الامامة المقیدة بمکان او زمان او قراءة سورة او سؤر هذا.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۹۰ جلد۲ باب کراهیة الاجر علی الاذان)**

**﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۳۹ جلد۵ مطلب تحریر مهم فی عدم جواز الاستجار علی التلاوة والتهلیل باب الاجارة الفاسدة)**

# باب قضاء الفوائت

## دَ نامعلومه پاتې شووو مونځونو دَ قضا کولو طریقه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَځو کالو پاتې شووو څلور رکعتونو والا مونځ قضا به څنګه کیږی.دَعام فرضو پشان یا دَنفلو پشان دغه شان وتر او دَمابنام مونځ به څنګه ادا کولې شی؟ اونیت به څنګه کول پکار وی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: خواجه عبد السلام ازارندرروند وضلع چترال... ۱۹۸۲ء/۵/۲۰

**الجواب:** دَنامعلومه قضاء کولو په صورت کښې به فرائض دَنفلو پشان کولې کیږی ټولو رکعتونو کښې به سورت یوځائې کولې شی او درې رکعتونو والا به هم څلور رکعتیز کولې کیږی.اودَ وترو په دریم رکعت کښې به قنوت وئیلې کیږی.په څلورم کښې نه ځکه چه دا نفل دی.﴿۱﴾ .اودَنیت متعلق دې داخبره واضحه وی چه دَاول نه یا دَآخرنه شروع کړئ یعنی اولنې صبا یا آخرنې صبا وغیره داسې نیت به کوی.﴿۲﴾ . وهوالموفق.

---

**﴿۱﴾ قال العلامه سید احمد الطحطاوی ومن قضی صلاة عمره مع انه لم یفته شیٔ منها احتیاطا...... والافضل ان یقرأ فی الاخیرتین السورة مع الفاتحة لانها نوافل من وجه فلان یقرء الفاتحة والسورة فی اربع الفرض...... ویقنت فی الوتر ویقعد قدرالتشهد فی ثالثته لم یصلی رکعة رابعة فان کان وترا فقد اداه ...... وکذا یصلی المغرب اربعا بثلاث قعدات.**

**(طحطاوی علی المراقی الفلاح ص ۲۴۳ قبیل باب ادراک الفریضة)**

**﴿۲﴾ قال العلامه حسن بن عمار الشرنبلالی فاذا اراد تسهل الامر علیه نوی اول ظهر (وقوله علیه) ادرک وقته ولم یصله فاذا نواه کذلک فیما یصلیه یصیر اولا فیصح بمثل ذلک وهکذا او ان شاء نویٰ اخره فیقول اصلی اخر ظهر ادرکته ولم اصله فاذا فعل کذلک فیما یلیه یصیر آخر بالنظر لما قبله فیحصل التعین.**

**(مراقی الفلاح علی هامش حاشیة الطحطاوی ص ۲۴۲ باب قضاء الفوائت)**

# دَ قضا مونځونو طریقه او چه قوم ته بې اودسه مونځ اوکړئ نوڅه به کوی

**سوال:** علمائې دین شرع متین دَلاندنیو مسئلوباره کښې څه فرمائی!
(۱) دَبلوغ نه پس که یو سړې تر ۴۰، ۳۵کالوپورې مونځ اونکړی نودَهغې دَقضا کولو طریقه څه ده؟ (۲).یو امام څوکسانوته دَرمضان یومونځ بې اودسه کړې دې نوخلقوته وئیل ضروری دی یا نه؟ (۳).څوکسانوته که دَجنابت په حالت کښې مونځ اوکړې شی نوڅه کول پکار دی؟ بینوا توجروا.
المستفتی:دین محمد جنوبی وزیرستان....۱۹۷۵ء/۸/ ۳۰.

**الجواب:**(۱).داسړې به روزانه یو څومونځونه ادا کوی او دَاول وخت(یعنی اولنې فجر یا اولنې ظهر،اولنې عصر،اولنې مغرب اولنې ماسخوتن) یا دَآخری وخت نیت به کوی.کمافی الدرالمختارقبیل سجود السهو،کثرت الفوائت نوی اول الظهر علیه او آخره.﴿۱﴾ .البته چه کوم مونځ یقینی طورسره قضا شوې نه وی نو احتیاطاً دې دَنفلوپشان ادا کړې شی.(۲، ۳).که داقوم معلوم اومعین وی نو ضروری ده چه دَخط وغیره په ذریعوسره هغوی خبر کړې شی.
**فی الدرالمختار کما یلزم الاخبار القوم اذا امهم وهو محدث او جنب بالقدر الممکن بلسانه او بکتاب او رسول علی الاصح (هامش ردالمحتار ص۳۹۸ جلد ۱) ﴿۲﴾ قلت عند الفتنة جاز الاخفاء بالمذهب بالمرجوح ﴿۳﴾. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۵۴۵جلد ۱ قبیل سجود السهو)**
**﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۳۸ جلد ۱ مطلب المواضع التی تفسد صلاة الامام دون المؤتم)**
**﴿۳﴾قال الحصکفی وصحح فی مجمع الفتاویٰ عدم (ای اخبارالقوم) مطلقا لکونه عن خطأ معفو عنه لکن الشروح مرجحة علی الفتاویٰ ، قال ابن عابدین قوله (لکونه عن خطاء معفوعنه) ای لانه لم یتعمد ذلک فصلاته غیر صحیحة ویلزمه فعلها ثانیا لعلمه بالمفسد واما صلاتهم فانها وان لم تصح ایضالکن لا یلزمهم ......... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**

## دَ پیغمبر علیه السلام نه دَقضا مونځونو ثبوت او دَنامعلومه قضا شوو مونځونو طریقه

**سوال:** علمائي دين دي مسئلي باره کښې څه فرمائی که دَیو انسان نه بې شمیره مونځونه پاتې شوې وی نو دَهغې دَ ادا کولو طریقه به څه وی. او په احادیثو کښې دَپیغمبر علیه السلام نه دَمونځونو قضاء کیدل او بیا ادا کول ثابت دی یا نه؟

بینوا توجروا.

المستفتی: حاجی مشیرخان زروبی صوابی...... ۱۴۰۱/۲/۴هـ.

**الجواب:** حدیث لیلة التعریس(رواه مسلم وغیره)﴿۱﴾ او حدیث غزوه خندق(رواه البخاری وغیره)﴿۲﴾ کښې دَپیغمبر علیه السلام نه دَمونځونو قضاء کیدل او دَهغې راګرځول ثابت دی. او دَکوم کس نه چه بې شمیره مونځونه پاتې شوې وی

---

(بقیه حاشیه) اعادتها لعدم علمهم ولا یلزمه اخبارهم لعدم تعمده فافهم. وقال الشیخ عبد القادر الرافعی قوله (لانه لم یتعمد) قال السندی ما ملخصه ان عمر لما رأی الاحتلام فی ثوبه اغتسل وغسل الاحتلام ولم یذکر انه اخبر الناس وعزا الاثر للموطا.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص۴۳۸ جلد ۱ وتقریرات الرافعی ص۷۷)

﴿۱﴾ عن ابی هریرة ان رسول الله صلی الله علیه وسلم حین قفل من غزوة خیبر سار لیلة حتی اذا ادرکه الکری عرس وقال لبلال اکلا لنا اللیل فصلیٰ بلال ما قدر له ونام رسول الله صلی الله علیه وسلم واصحابه فلما تقارب الفجر استسند بلال الی راحلته مواجه الفجر فغلبت بلال عیناه وهو مستند الی راحلته فلم یستیقظ رسول الله صلی الله علیه وسلم ولا بلال ولا احد من اصحابه حتی ضربتهم الشمس فکان رسول الله صلی الله علیه وسلم استیقاظا ففزع رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال ای بلال فقال بلال اخذ بنفسی الذی اخذ بابی انت وامی یا رسول الله بنفسک قال اقتادوا فاقتادوا رواحلهم شیئا ثم توضاء رسول الله صلی الله علیه وسلم وامر بلال فاقام الصلوٰة فصلی بهم الصبح فلما قضی الصلوٰة قال من نسی الصلوٰة فلیصلها اذا ذکرها فان الله تعالیٰ قال اقم الصلوٰة لذکر ی قال یونس وکان ابن شهاب یقرأها للذکریٰ.

(الصحیح المسلم ص۲۳۸ جلد ۱ باب قضاء الصلوٰة الفائتة واستحباب تعجیل قضائها)

﴿۲﴾ عن جابر بن عبد الله ان عمر بن الخطاب جاء یوم الخندق بعد ما غربت الشمس جعل یسب کفار قریش وقال یا رسول الله ما کدت ان......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

اودَ تمیز اوتعین نه ئې بې بسه وی نو هغه به دَ اولنی قضاء مونځ نه یا آخرنی قضاء مونځ نه شروع کړی .مثلاً هرورځ به دَاولنی فجر.اولنی ظهر.او.اولنی عصر نیت کوی.اوپه هررکعت کښې به سورت یوځائې کوی.اًووتر او مابنام به هم څلور رکعته کوی.(په دویم دریم او څلورم رکعت باندې به قعده کوی).

په کوم وختونو کښې چه نفل ممنوع دی هغه وختونو کښې به دا قضا نه کوی.(ماخوذ از ردالمحتارص٥١٧ تا٤٨٩ جلد١).﴿١﴾.وهوالموفق.

## دَچا په ذمه باندې چه فرض مونځونه وی نو قضا مونځونه راګرځول دَنفلو نه افضل دی.

**سوال**:علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیوسړی په ذمه باندې فرض مونځونه باقی وی.اودَ قضا په ځائې باندې نوافل کوی نوآیا ده دپاره نوافل کول افضل دی یا قضا مونځونه کول؟ بینوا توجروا.

المستفتی: خیرمحمد متهوره بنوں.

**الجواب**: دَچا په ذمه چه فرض مونځونه باقی وی نوهغه دپاره قضامونځونه

---

**(بقیه حاشیه) اصلی حتی کادت الشمس ان تغرب قال النبیﷺ وانا والله ما صلیتها فنزلنا مع النبیﷺ بطحان فتوضأ للصلوٰة وتوضأنا لها فصلی العصر بعد ما غربت الشمس ثم صلی بعدها المغرب .**

**(صحیح البخاری ص٥٩٠ جلد٢ باب غزوة الخندق وهی الاحزاب کتاب المغازی)**

**﴿١﴾قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: انه کان یصلی المغرب والوتر اربع رکعات بثلاث قعدات کما نقله فی البحر عن مآل الفتاویٰ ای ویکون حینئذ اعادة الصلاة المجرد توهم الفساد غیر مکروه ویکون النهی محمولا علی غیر هذا الوجه لکن لما کانت الصلاة علی هذا محتملة لو قوعها نفلا...... نقول انه کان یضم الی المغرب والوتر فعلی احتمال صحة ماکان صلاة او لا تقع هذه الصلاة نفلا وزیادة القعدة علی رأس الثالثة لا تبطلها وعلی احتمال فساده تقع هذه فرضاً مقضیا وزیادة رکعة علیها لا تبطلها .**

**(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص٥١٢ جلد١ قبیل مطلب فی الصلاة علی الدابة)**

اداکول دَنفل ادا کولو نه افضل دی.

کمافی الهندیه ص ۱۳۲ جلد ۱ وفی الحجة والاشتغال بالفوائتة اولیٰ واهم من النوافل الا السنن المعروفة وصلوٰة الضحیٰ الخ ﴿۱﴾. وهوالموفق

## په قضاء مونځونو کولو او نوافلو اداکولو کښې څه منافات نشته

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه کوم مونځونه دَغفلت په وجه زمونږ نه قضا شوې دی، اوس هغه ادا کول دی لیکن ما اوریدلې دی چه دچاپه ذمه باندې فرض مونځونه وی نو دَهغه نوافل غیرمقبول دی، دَنوافلو په ځائې قضاء مونځونه کول پکاردی. سوال دادې چه آیا څه به نوافل تهجدوغیره نه اداکوم. اوصرف قضاء ادا کړم؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالرؤف ډاتهوال ضلع چکوال...... ۱۹۸۲ء/۱۱/۲۲.

**الجواب**: نه قضا هم کوه اوتهجد، اوابین وغیره نوافل هم کوه. کماف الهندیه ص ۱۳۲ جلد ۱ باب قضاء الفوائت، (۲). دغه شان دَ وترو قضا هم ضروری ده. (شامی، بحر، هندیه وغیره، (۳). وهوالموفق.

---

﴿۱﴾(فتاویٰ عالمگیریه ص ۱۲۵ جلد ۱ الباب الحادی عشر فی قضاء الفوائت)

﴿۲﴾ قال فی الهندیه: وفی الحجة والاشتغال بالفوائت اولی واهم من النوافل الا السنن المعروفة وصلاة الضحیٰ وصلاه التسبیح والصلوٰت التی رویت فی الاخبار فیها سور معدودة واذکار معهودة فتلک بنیة النفل وغیرها بنیة القضاء کذا فی المضمرات. (فتاویٰ عالمگیریه ص ۱۲۵ جلد ۱ الباب الحادی عشر فی قضاء الفوائت)

﴿۳﴾ قال الحصکفی: الترتیب بین الفروض الخمسة والوتر اداء وقضاء لازم، قال ابن عابدین: الواو بمعنی اومانعة الخلو فیشمل ثلاث صور ما اذا کان الکل قضاء او البعض قضاء والبعض اداء اوالکل اداء کالعشاء مع الوتر.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۵۳۶ جلد ۱ باب قضاء الفوائت)

## دَ څلور رکعتو تراویح نیت ئې اوکړو په دریم رکعت کښې مونځ فاسدشو نودَقضاڅه حکم دې؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که چادَڅلور رکعته تراویح نیت اوتړلو بیاپه دریم یا څلورم رکعت کښې ئې سلام اوګرځولو یا په دویمه شفعه کښې مونځ فاسد شو اوس به هغه صرف دوه رکعتو قضاکوی (دَنفلو پشان) یا دَڅلورو رکعتونو؟ بینوا توجروا.

المستفتی: اکرام الحق راولپنډی......۱۸/اګست ۱۹۷۳ء

**الجواب:** واضحه دې وی چه تراویح اګرچه فی نفسها سنتَ موکده دی لیکن څلورڅلور رکعته کول سنت موکده نه دی لهذا پهٔ مسؤله صورت کښې دوه رکعته قضا کول کافی دی.

**کمافی الدرالمختار وقضی رکعتین لونویٰ اربعا غیر المؤکدة علی اختیار الحلبی وغیره ونقض فی خلال الشفع الاول اوالثانی (هامش الرد ص۶۴۷ جلد ۱ ) ﴿۱﴾**

اودَاولنی شفعې اعاده هم ضروری ده،

**کمافی ردالمحتار ص۶۴۸ جلد ۱ لکن ینبغی وجوب اعادة الاول لترک واجب والسلام مع عدم انجباره بسجود سهو الخ﴿۲﴾.**

پس ټول څلور واړه رکعتونه کول به ضروری وی اول دوه دَاعادې په طور او آخرنی دوه دَقضا په طور.وهماشیئان متقاربان،وهو الموفق.

## دَ صاحب ترتیب نه کیدلو په صورت کښې دَترتیب خیال ساتل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې صاحب ترتیب نه وی لیکن هغه په قضامونځونو کښې دَترتیب خیال ساتی اویا کلهَ په ترتیب سره اوکله په غیرترتیب سره قضامونځونه کوی.آیاداصحیح ده، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: جلال احمد جلال طورومردان......۱۹۷۵ء/۲/۲۹.

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۵۱۱ جلد ۱ مبحث المسائل الستة عشرية)

﴿۲﴾ ( ردالمحتارهامش الدرالمختار ص ۵۱۱ جلد ۱ مبحث المسائل الستة عشرية)

**الجواب**: کوم کس چه صاحبِ ترتیب نه وی په هغه ترتیب واجب نه دی.(۱) اودَترتیب په خیال نه ساتلو باندې ګنهګار نه دې وهوالموفق.

## دَ نامعلومه وتر دَ قضا په صورت کښې به په څلورم رکعت کښې قنوت نه وئیلې کیږی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه قضا مونځ چه کوم معلوم نه وی دَ ادا کولو په وخت کښې د ماښام او وترو مونځ په دریو قعدو سره ادا کوی نو آیا دَوترو چه کله په دویم رکعت کښې دعائې قنوت اولولی نو په څلورم رکعت کښې به هم قنوت لولی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالرؤف لوندخوړمردان........۲۸/رمضان ۱۴۰۵ھ.

**الجواب**: دا زیادت دَنفل کیدلو دَاحتمال په وجه باندې احتیاطی دی لهذا په څلورم رکعت کښې دَقنوت لوستلو څه جواز نشته دې.

**بخلاف اذا شک فی ثالثة الوتر انها ثانیة او ثالثة فانها یضم الیها الرابعة ویقنت فی کلتیهما احتیاطاً ولم یصرحوا به وهو من الواضحات ﴿۲﴾ فافهم.وهوالموفق**

## دَ مونځ فدیه به بعدالموت ورکولې شی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی.چه کله دَیو سړی په ذمه

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله او فاتت ست) یعنی لا یلزم الترتیب بین الفائتة والوقتیة ولا بین الفوائت اذا کانت الفوائت ستا کذا فی النهر. (ردالمحتارهامش الدرالمختار ص۵۳۸ جلد۱ قبیل مطلب فی اسقاط الصلاة عن المیت باب قضاء الفوائت)**

**﴿۲﴾ قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالی رحمه الله: ومن قضی صلاة عمره مع انه لم یفته شئ منها احتیاطاً قیل یکره...... ویقنت فی الوتر ویقعد قدرالتشهد فی ثالثة ثم یصلی رکعة رابعة فان کان وتراً فقد اداه وان لم یکن فقد صلی التطوع اربعا ولا یضره القعود و کذا یصلی المغرب اربعا بثلاث قعدات. (حاشیة الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص۲۴۷ باب قضاء الفوائت)**

باندې مونځونه باقي وی نوآیا دا سړې دَمرګ نه مخکښې فدیه ورکولې شي؟ او آیا پخپله اسقاط ـ قبل الموت جائز ده؟ که نه وی جائز نو بیابه دا دَ جنازې نه مخکښې ورکولې شی یا روستو یا دَ دفن کولو نه پس؟ بینوا توجروا

المستفتی: کرامت الله چروړی چمله سوات...... ۴/۴/ ۱۹۷۰ء.

**الجواب:** حیله اسقاط قبل الموت صحیح نه ده. اودَمرګ نه پس هروخت صحیح ده.

**فی الهندیه ص ۱۳۲ جلد ۱ سئل الحسن بن علی عن الفدیة عن الصلوٰت فی مرض الموت هل یجوز فقال لا ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## دَ یو کتاب نه فتوی ورکول دَ هرچا کار نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ ځائې کښې دوه طبقې جوړې شوې دی. یوه طبقه دَمړی حیله اسقاط جائز وائی او دویمه طبقه ئې ناجائز وائی، او دواړه دیوبندیان دی او دَیوقسم کتابونو نه حوالې پیش کوی. سوال دا دې چه آیا فتاوی رشیدیه او فتاوی دارالعلوم دیوبند قابلِ عمل مستند اودَ حنفی مذهب مطابق دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمد کرم شاه بنوں........ یکم اپریل ۱۹۷۵ء.

**الجواب:** حیله اسقاط بذاتِ خوَد جائز ده په قرآن (۱) او حدیث (۲) کښې

---

**﴿۱﴾ (فتاوٰی عالمگیریه ص ۱۲۵ جلد ۱ الباب الحادی عشر فی قضاء الفوائت)**

**﴿۲﴾ قال الله تعالیٰ: وخذ بیدک ضغثا فاضرب به ولا تحنث.**

**(سورة ص پاره: ۲۳ رکوع: ۱۳ آیت: ۴۴)**

**﴿۳﴾ عن ابی امامة انه اخبره بعض اصحاب رسول الله ﷺ من الانصار انه اشتکی رجل...... وقالوا ما راینا باحد من الناس من الضر مثل الذی هو به لو حملنا الیک لتفسخت عظامه ما هو الا جلد علی عظم فامر رسول الله ﷺ ان یاخذوا له مائة شمراخ فیضربوه ضربة واحدةً.**

**(سنن ابی داؤد ص ۲۶۶ جلد ۲ باب فی اقامة الحد علی المریض)**

ددې دپاره اصل موجود دې البته مرؤجه حیله دَمعتبروشرطونو دَنه خیال کولو په وجه باندې حیله دَاستحصال جوړه شوې ده.لهذا دَمړی دَ ذمه فارغ کولو (۱) دپاره دامروجه حیله اسقاط بې کاره ده.فتاوی رشیدیه (گنگوهی) او فتاوی دارالعلوم دیوبند زمونږ دَ اکابرو فتاوې دی.لیکن دَ یو کتاب نه فتوی ورکول دَ هرچا کار نه دې.وهوالموفق.

## دَ حیله اسقاط په دائره کښې قران مجید کیښودل

**سوال:** علمائي دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دحیله اسقاط په دائره کښې قران مجید دَ نورو مالونو سره قبض کول راقبض کول او یو بل ته حواله کول لکه څنگه چه په حیله اسقاط کښې معمول دې آیا دا جائز دی؟ حال دا چه په فتاوی سمرقندیه کښې دَقرآن مجید تاوهلو ته هم جائز وئیلې شوې دی.آیا ددې نه منع کول جائزدی؟ بینوا توجروا.

. المستفتی:مولانااسماعیل گاؤن الوچ سوات.

**الجواب:** فقیه ابو اللیث سمرقندی رحمه الله معتبرشخصیت دې.(۲) .هغه چه کومه مسئله لیکلې ده هغه صحیح ده.هیڅ یو فقیه ددې تردید نه دې کړې.چونکه قرآن هم مالِ متقوم دې دا په فدیو کښې ورکول نه ممنوع دی او نه مطلوب دی.البته دَموقوف (وقف شوی) یا مملوکة الغیر مصحف تملیک او تملک

---

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: ویجب ان یدفعها حقیقة لا تحیلا ملاحظا ان الفقیر اذا ابی عن الهبة الی الوصی کان له ذلک ولا یجبر علی الهبة. (منة الجلیل ص۲۲۵)

﴿۲﴾قال الامام الفقیه محمد عبد الحی اللکهنوی: نصر بن محمد بن احمد بن ابراهیم ابولیث الفقیه السمرقندی المشهور بامام الهدیٰ اخذ عن ابی جعفر الهندوانی عن ابی القاسم الصفار عن نصیر بن یحیٰ عن محمد بن سماعة عن ابی یوسف وله تفسیر القرآن، والنوازل، والعیون، والفتاویٰ، وخزانة الفقه، وبستان العارفین، وشرح الجامع الصغیر ، وتنبیه الغافلین وغیر ذلک..... وقد طالعت من تصانیفه البستان وتنبیه الغافلین وخزانة الفقه وکلها مفیده.

(الفوائد البهیة فی تراجم الحنفیة ص ۲۹۱ حرف النون رقم:۴۸۵)

ممنوع دی.دغه شان دَبازاری قیمت نه زیاتی قیمت مقرر کول عبث اوبې قاعدې حیله درحیله ده.《۱》.وهوالموفق.

## امحاء الخباط عن مسئلة حیلة الاسقاط

حیله اسقاط فقهاؤ په خپلو کتابونو کښې باقاعده طور سره ذکر کړې ده.اودَ هغې دپاره ئې شرطونه او طریقه کار هم جوړ کړې دې.لیکن عوامو په دې کښې ډیر مفاسد اوشرعی محظورات داخل کړل.په دې بناء باندې بعضې خلقو دَدې په انکار کښې دومره سختئ نه کار واخستلو چه دَنفسِ حیله اسقاط نه منکر شول. تردې چه په کولو وَالا باندې ئې دکفر او بدعت فتوې اولګولې.اودَاصحاب السبت په حیلو باندې ئې قیاس کړه او فقهائې کرام هم دَدوی دَفتوؤ په ضد کښې راغلل.حضرت مفتی صاحب دامتِ برکاتهم دَ حیله اسقاط په حقیقت او مشروعیت باندې دامقاله شائع کړې وه.ددې باب سره دَ انتهائی مناسبت په وجه په فتاوی کښې شامل کولې شی.《ازمرتب》.

《۱》مفتی کفایت الله فرمائی (تنبیه) دا رسم په بعضې ځایونوکښې ادا کولې شی چه صرف یو قرانِ پاک یو فقیر ته ورکوی داسې ورته وائی چه قران مجید چونکه دَالله تعالی کلام دې نو ددې هډو څه قیمت نیشته(یعنی ډیر قیمتی دې) او ددې په وجه دَټولو مونځونو، روژو، او نورو واجباتو چه څومره اندازې کفاره دَمړی په ذمه وی.دَهغې ټولو په بدله کښې مونږ دَا قران درکؤو.اوفقیرئې قبلوی.داطریقه هم ناجائز ده.ځکه چه دا حضرات چه په فدیه کښې قرانِ مجید بې قیمته وائی خوچه کله دَفدیې دپاره اخستلو دپاره ځی نودَروپئ په ځائې ئې په دولس آنې او دولس آنو په ځائې په لس آنې په جهګړو جهګړو واخلې.دَاخستلو په وخت ئې بې قیمته کیدل هیروی.اوداخوتقریباً محال دی چه که دوکاندار دَدې قیمت یوه روپئ اووائی نو دې دَقران مجیددَ قدر کولو په نظر سره دَخپل طرفنه دوه روپئ ورکړی.بهرحال دا قران مجیدچه په کاغذلیکلې شوې یا چهاپ شوې دې داشرعاً مالِ متقوم دې اوپه کفاراتو اومعاوضاتوکښې به ددې دَ اصل قیمت اعتبار وی.په دې وجه به دا دَ دومره مونځونو فدیه جوړیږی.دَ څومره مونځونو دَفدیې پورې چه دَدې قیمت رسیږی.
(کفایة المفتی ص۱۵۷ ج۴ مجموعه دلیل الخیرات فی ترك المنکرات)

دَیو عاقل بالغ مسلمان نه چه قصداً یا بلا قصد څه مونځونه او روژې قضا شی نو په هغه باندې د قضا ادا کول فرض دی. او دَقضانه کولو په صورت کښې هغه ګنهګار دې. او کله چه دَ ژوندنه نااُمیده شی نو په هغه باندې دا وصیت کول ضروری دی چه دَده دَمنقوله او غیر منقوله مالونو دَ میراث دَ ۱/۳ حصې نه به دَهر مونځ او روژې په بدله کښې تقریباً دوه یا دوه نیم کلو غنم یا ددې قیمت مسکینانو ته ورکولې شی. او که دا وصیت ئې اونکړو نو ګنهګار مړشو. او که ددې سرۍ مال نه وو یا ۱/۳ حصه دَذمه فارغ کولو دپاره کافی نه وو، یا ئې دَفسق او جهل په وجه وصیت اونه کړو. نو وارثان وغیره دَده دَطرفنه باقاعده طور سره حیله اسقاط کولې شی. (ماخوذ از ردالمحتار ص ۴۹۲ جلد ۱)، (۱).

حیله هر مباح کار اوخبرې ته وئیلې شی. چه دَهغې په ذریعې سره په خفیه انداز کښې یو مقصد ته رسیدل اوشی. صاحب دَمفردات فرمائی. الحیلة مایتوصل به الی حالة مافی خفیة (ص۱۳۸). او ابن حجر رحمہ اللہ فرمائی: هی مایتوصل به الی مقصود بطریق خفی(فتح الباری ص ۲۷۴ جلد ۲)، اوصاحب دالاشباه والنظائر فرمائی اهی تقلیب المنکرحتی یهتدی الی المقصود(ص۴۱۷).

پوهه شه چه دَحیلې ډیرقسمونه دی. په دې مقاله کښې صرف دوه قسمونه ذکر کیږی. اول حیله هغه ده چه دَحرام دَحلال والی او دَشریعت دَ حکم دَباطل کولو او ختمولو دپاره وی لکه څنګه چه اصحاب السبت، دَ ښکار دَ حلالولودپاره کړې وه. (القرآن).

---

﴿۱﴾قال الحصکفی: ولو مات وعلیه صلوٰت فائتة واوصیٰ بالکفارة یعطی لکل صلاة نصف صاع من بر کالفطرة......... ولو لم یترک ما لا یستقرض وارثه نصف صاع مثلاً ویدفعه لفقیر ثم یدفعه الفقیر ـم ولم حتی یتم. قال ابن عابدین: (قوله وعلیه صلوٰت) ای بان کان یقدر علی ادائها ولو بالایماء فیلزمه الایصاء بها والا فلا یلزمه...... یعطی عنه ولیه ای من له ولایة التصرف فی ماله بوصایة او وراثة فیلزمه ذلک من الثلث ان اوصی...... واما اذا لم یوص فتطوع بها الوارث فقد قال محمد فی الزیادات انه یجزیه ان شاء الله...... نصف صاع من بر ای او من دقیقة او سویقة او صاع تمر الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵۴۱،۵۴۲ جلد ۱ مطلب فی اسقاط الصلاة عن المیت)

اوبعضې یهودیانوداحیله دَ وازګې دَحلالولو دپاره کړې وه.(بخاری).اوداقسم حیله بغیردَشک نه حرامه ده. دویمه هغه حیله ده چه دَحرامو نه دبچکیدلو، دَ ذمې دَفارغ کیدلو او دَ واجباتو دَ اسقاط دپاره وی.لکه چه حضرت ایوب علیه السلام کړې وه.قال الله تبارک وتعالی:وخذبیدک ضغثافاضرب بـه ولا تحنـث(سـورة ص۱)《۱》 اوپیغمبر علیه السلام دَیو ناواده کړی سړی مریض دپاره دَ زنـا دَ حدجاری کولودپاره کړې وه.قالوامارئیناباحدمن الناس من الضرمثل الذی هوبه لـو حملنـا الیک لتفسخت عظامه، ماهوالاجلدعلی عظم،فامرسول الله صلی الله علیه وسلم ان یاخذواله مائة شمراخ فیضربوه بها ضربة واحدة،(رواه ابوداؤد)،《۲》.

داحیله جائز ده،نه مخصوص ده نه منسوخ ده.اوهم دا دَحضرت عطاء او شعبی نه مروی ده،اوهم دا احنافو،شوافعو اوحنابلومختاره کړې ده،البتـه دَموالکو او سلفیانو پـه نزدمـشروع نـه ده. (فلیراجـــع الی تفـــسیرالقرطبی ص ۲۱۳ جلد۱۵وشرح الاشباه للحموی ص۴۱۸وفتح الباری ص۲۷۵جلد۱۲).

داحیله اسقاط چه لکه څنګه پـه اصل کښې ثابت ده دغـه شان فقهائې کرامو هم ددې پـه مشروعیت باندې تـصریح کړې ده.فلیراجـع الی ردالمحتـار ص۶۸۷ جلد۱،(۳).والطحطاوی ص۲۶۳والشرح الکـبیرص۴۹۷وخلاصـة الفتاوی ص۱۵۳ جلد۱والبحر ص۹۱جلد۲والاشباه والنظائر ص۴۱۸ وغـیر ذلک،البته ددې حیلې دَ مشروعیت دپاره څه شرائط دی چه دَهغې خیال ساتل ډیر زیات ضروری دی.

---

《۱》(سورة :ص پاره:۲۳ آیت:۴۴)

《۲》(سنن ابی داؤد ص۲۶۶ جلد۲ باب فی اقامة الحد علی المریض)

《۳》قال ابن عابدین: (قوله ولو لم یترک ما لا یستقرض الخ)فیستقرض قیمتها ویدفعها للفقیر ثم یستوهبها منه ویتسلمها منه لتتم الهبة ثم یدفعها لذلک الفقیر او لفقیر آخر وهکذا فیسقط فی کل مرة کفارة سنة وان استقرض اکثر من ذلک یسقط بقدره وبعد ذلک یعید الدور لکفارة الصیام ثم للاضحیة الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۵۴۲ جلد ۱ قبیل باب سجود السهو)

اول داچه دَوصیت نه کیدلو په صورت کښې په وارثانو کښې نابالغه او غائب څوک نه وی ځکه چه دَ هغوی دَمال نه تبرع جائز نه ده. دویم داچه په قطار یا دائره کښې به مسکینان وی. مالدار ته ورکولو سره ذمه نه فارغیږی. دریم داچه دغه مسکین به حقیقتاً مالک جوړ وې صرف زبانی تملیک به نه کوي.

**کما صرح به ابن عابدین فی منة الجلیل ص ۲۲۵ حیث قال ویجب ان یدفعها حقیقة لاتحیلاً ملاحظاً ان الفقیر اذا ابی عن الهبة الی الوصی کان له ذلک ولایجبر علی الهبة، انتهیٰ﴿۱﴾**

او که داحیله په اشهرحج یعنی دَحج په میاشتو کښې اوشوه نو په دغه تهولو قبض کونکو باندې به باقاعده حج فرض شی بل ته بخلو سره حج دَدوی دَذمې نه نه ساقطیږی. نو په دې مروجه حیلو کښې ددې شرطونو او خاص طورسره دَ دریم شرط خیال نه ساتلې کیږی. لهذا په دې مروجه حیلې سره دَمړی ذمه نه فارغیږی. نوم ئې دَحیله اسقاط دې او په حقیقت حیله دَ استحصال ده. په اهلَ علم باندې ضروری دی چه ددې مفاسدو اصلاح اوکړی یا ددې حیلې مخ نیوې اوکړی چه عوام دَخوش فهمئ او خوش ظنئ نه بچ شی. ﴿۲﴾ .وهو الموفق.

## په حیله اسقاط کښې دقران تاوُهل دَقرآن په بې عزتئ کښې نه راځی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په ښار کښې چه کومه حیله اسقاط کیږی په هغې کښې قران پاک هم کیښودلې کیږی. ماددې نه منع کړل خو فریق مخالف وائی چه داطریقه دَحضرت عمر ﷺ نه ثابت ده.

---

**﴿۱﴾(رسائل ابن عابدین ص ۲۲۵ جلد ۱ منة الجلیل لبیان اسقاط ما علی اللمة من کثیر وقلیل)**

**﴿۲﴾ مفتی کفایت الله فرمانی!** واضحه دې وی چه دَمذکوره عبارتونو نه ښکاره معلومه شوه چه دا فعل اسقاط دَوارث په ذمه واجب او ضروری نه دی بلکه محض تبرع ده. او دَمړی دَذمې فارغ کولو دپاره یوه حیله ده. که دا ضروری یاسنت اوکړلې شی نو ناجائز اوبدعت به وی لکه چه دَرسم نمبر۳ په بیان کښې دَطحطاوی دَعبارت نه صراحةً معلومه شوې. دغه شان داهم ضروری ده چه دَمړی دَوصیت نه کولو په صورت کښې چه ترڅو تهول وارثان بالغ اوحاضر نه وی دَمیراث نه به څه مقدار په اسقاط کښې نه ورکولې کیږی. او دَثلث په وصیت کښې زائد علی الثلث او دَثلث نه په کم وصیت کښې زائد علی الوصیت به هم نشی ورکولې، که چرته ورکړی نو هغه به ئې ضامن وی. (کفایت المفتی ص١٥٦ جلد٤ ازمجموعه دلیل الخیرات فی ترک المنکرات)،

ماپه جواب کښې راهِ سنت. کتاب دَحضرت ابوالزاهد سرفرازخان صفدر دامت برکاتهم پیش کړو لیکن هغوی وئیل چه مونږ دَ اردو کتابونه نه منو. نو که تاسو دَ عربی کتاب حواله رااولیږئ چه مخالف جماعت شکست اوخوری نو څه به ډیر مشکوریم؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مقبول الرحمن ضلع هزاره.

**الجواب:** قرآن هم مالِ متقوم دې لهذا دَدې اخستل خرڅول او ددې صدقه کول او هبه کول ټول هرڅه جائز دی نه په دې کارونو کښې اهانت شته اونه اهانت دَچامقصود وی. لهذا دَمصحف په ذریعې سره اسقاط کول منع نه دی. لکه څنګه چه ئې دَاسقاط په مال کښې کیښودل هم ضروری نه دی. (۱) .فقط.

## دَ غریب مسکین مړی دَطرفنه حیله اسقاط جائز ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو غریب مسکین عاجزه مړ شو څه مال ئې نیشته او وارثان ئې هم فقیران دی او دَمړی په ذمه باندې مونځونه روژې هم دی چه دَهغې دَفدیې ادا کولو نه عاجزه دی. اوس بعضې علماؤ فرمائی چه دَده دَطرفنه دې حیله اسقاط اوکړیشی او بعضې وائی چه داجائزنه ده. تفیصلی جواب راکړئ چه خدشات لرې شی. واجرکم علی الله

المستفتی: فیض الله متعلم حقانیه..... ۷/جون ۱۹۷۰ء.

**الجواب:** په مذکوره صورت کښې حیله جائز ده خو چه دَحیلې کولو په وخت کښې حقیقتاً تملیک مراد وی. حیلةً مراد نه وی.

---

(۱) دَقران دَاجزاء تاوهل هم دَبعضې روایتونو نه ثابت دی او په دې سره توسل بالمصحف مقصود دی. اوتوسل بالمصحف ثابت دی. قال علیه الصلاة والسلام اللهم ارحمنی بالقران العظیم، اولکه څنګه چه په فتاوی سمرقندیه کښې دَحضرت عمر رضی الله عنه نه دَقران دَ اجزاؤ دوران ثابت دی. نودغه شان واقدی هم په فتوح الشام. کښې ذکر کړې دی. فقال اخبره ابوعاصم عن ابن جریج عن ابن شهاب عن ابی سلمة عن ابی موسی قال فعل عمر رضی الله عنه ای دوران اجزاء القرآن. (ازمرتب).

اعلم ان للحیل انواعا منها ان تکون لتحلیل الحرام کحیلة اصحاب السبت وهی حرام البتة، ومنها ان تکون لدفع المضرة کحیلة یوسف علیه السلام لا بقاء اخیه لئلا یصیبه اخوته مضرة عند العود وهی جائزة لعدم الانکار علیها، ومنها ان تکون لتفریغ الذمة بلا حرج کحیلة ایوب علیه السلام وکذا حیلة النبی ﷺ للزانی الغیر المحصن، وحیلة الاسقاط من قبیل الاخیر لانه لم یمکنه الاداء لعجزه ولا الاسقاط لفقره فلا بد من الحیلة تعاونا بالمسلم وصرح بجوازها الفقهاء ولم یصرح بعدم جوازه احد من الفقهاء والاحناف فلیراجع الی ردالمحتار ص۶۸۶ جلد ا ﴿۱﴾ والهندیه ص ۱۳۲ جلد ا ﴿۲﴾ والطحطاوی ص۲۶۳ ﴿۳﴾ والبحر ص ۹۱ جلد ۲ ﴿۴﴾ وهکذا فی غیر واحد من کتب الفتاویٰ . فقط

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: فیستقرض قیمتها ویدفعها للفقیر ثم یستوهبها ویتسلمها منه لتتم الهبة ثم یدفعها لذلک الفقیر او لفقیر اخر. (ردالمحتار ص ۵۴۲ جلد ا مطلب فی اسقاط الصلاة عن المیت باب قضاء الفوائت)

﴿۲﴾ وفی الهندیه : اذا مات الرجل وعلیه صلوٰت فائتة فاوصی بان تعطی کفارة صلوٰته یعطی لکل صلاة نصف صاع من بر وللوتر نصف صاع ولصوم یوم نصف صاع من ثلث ماله وان لم یترک مالا یستقرض ورثته نصف صاع ویدفع الی مسکین ثم یتصدق المسکین علی بعض ورثته ثم یتصدق ثم وثم حتی یتم لکل صلاة ما ذکرنا کذا فی الخلاصة.
(فتاویٰ عالمگیریه ص ۱۲۵ جلد ا الباب الحادی عشر فی قضاء الفوائت)

﴿۳﴾ قال العلامة الطحطاوی: وان لم یف ما اوصی به المیت عما علیه اولم یکف ثلث ماله اولم یوص بشیئ واراد احد التبرع بقلیل لا یکفی فحیلته لا براء ذمة المیت عن جمیع ما علیه ان یدفع ذلک المقدار الیسیر بعد تقدیره لشیئ من صیام او صلاة او نحوه ویعطیه للفقیر بقصد اسقاط ما یرد عن المیت فیسقط عن المیت بقدره ثم بعد قبضه یهبه الفقیر للولی او للاجنبی ویقبضه لتتم الهبة وتملک ثم یدفعه الموهوب له للفقیر ...... وهکذا یفعل مراراً حتی یسقط ماکان یظنه علی المیت من صلاة وصیام ونحوهما مما ذکرناه من الواجبات. (الطحطاویٰ علی المراقی الفلاح ص ۴۳۹ فصل فی اسقاط الصلاة والصوم)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: اذا مات الرجل...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ مړی دَ طرفنه فدیه او اسقاط باقاعده جائز دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ فدیې او اسقاط په مینځ کښې څه فرق دې او دا دکوم آیت یا حدیث نه ثابت دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ نورمحمد پیش امام مصری بانډه

نوشهره...... ۱۹۶۹ء/۵/۵.

**الجواب:** دَفدیې او اسقاط مطلب دا دې چه دَهرمونځ او هرې روژې نه به دَصدقة الفطر په مقدار بدل ورکړې. (۱) او دا فدیه دَ روژې متعلق عبارةً او دَمونځ متعلق دلالةً ثابت ده. او دَحیله اسقاط نه قرآن او حدیث ساکت دی. لیکن دَقران او حدیث سره دَمنافی نه کیدلو په وجه باندې فقهائې کرامو جائز کړې ده. خو چه کله دَ قاعدې مطابق وی او عدم جواز دَهیچا مذهب نه دې. (۲) وهو الموفق

(بقیه حاشیه) وعلیه صلوات فائتة اواوصی بان یعطی کفارة صلاته یعطی لکل صلاه نصف صاع من بر وللوتر نصف صاع ولصوم یوم نصف صاع وانما یعطی من ثلث ماله وان لم یترک مالا تستقرض ورثته نصف صاع ویدفع الی المسکین ثم یتصدق المسکین علی بعض ورثته ثم یتصدق ثم وثم حتی یتم لکل صلاة ما ذکرنا.
(البحر الرائق ص ۹۰، ۹۱ جلد۲ باب قضاء الفوائت)

﴿۱﴾ وفی الهندیه : اذا مات الرجل وعلیه صلوات فائتة فاوصی بان تعطی کفارة صلواته یعطی لکل صلاة نصف صاع من بر وللوتر نصف صاع ولصوم یوم نصف صاع من ثلث ماله وان لم یترک مالا یستقرض ورثته نصف صاع ویدفع الی مسکین ثم یتصدق المسکین علی بعض ورثته ثم یتصدق ثم وثم حتی یتم لکل صلاة ما ذکرنا کذا فی الخلاصة.
(فتاویٰ عالمگیریه ص ۱۲۵ جلد ۱ الباب الحادی عشر فی قضاء الفوائت)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: ثم اعلم انه اذا وصی بفدیة الصوم یحکم بالجواز قطعا لانه منصوص علیه واما اذا لم یوص متطوع بها الوارث فقد قال محمد فی زیادات انه یجزئه ان شاء الله تعالیٰ فعلق الاجزاء بالمشیئة لعدم النص وکذا علقه بالمشیئة فیما اذا اوصی بفدیة الصلاة لانهم الحقوها بالصوم احتیاطاً.
(ردالمحتار ص ۵۴۱ جلد ۱ مطلب فی اسقاط الصلاة عن المیت باب قضاء الفوائت)

## دَ قبض نه پس فقیربال بچه دار ته دَ فديې واپسی او قصداً دَ قضا شوو مونځونو فديه

**سوال**: علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی.(١).که يو بال بچه دار غريب سړې يا ښځه دَغربت په حالت کښې مړه شی.اودَمونځونو وغيره فديې فقيران قبولې کړی او دَقبلولو نه پس ئې واپس کړی نو آيا داجائز دی يا نه؟
(٢).يو مسلمان سره دَپوهې قصداً عمداً دَمونځ روژې وغيره ادائيګی نه کوی نو آيا دَمرګ نه پس دَهغه دپاره فديه ورکول جائز دی؟ بينوا توجروا.
المستفتی:ماسترسميع الرحمن ګمبت مردان...١٩/جمادی الثانی ١٤٠٢هـ.
**الجواب**:(١)دا واپسی صحيح ده(١).(٢).دَجمهورو په نزد عمداً دَقضاشوؤ مونځونو او روژې فديه ورکول صحيح دی.(٢) خلافالابن تيميه وغيره وهوالموفق

## باقاعده طور سره حيله اسقاط مشروع ده بدعت نه ده

**سوال**:علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ ځائې کښې حيله اسقاط کيږی چه دَمونځونو وغيره فديه وی.ددې باره کښې دَفتاوی رشيديه او احسن الفتاوی وغيره نه معلوميږی چه مذکوره حيله په خيرالقرون کښې نه وه. ددينه علاوه دَپاکستان دَعلماؤکراچئ ولاهور وغيره ديوبنديان، بريليان، اواهل حديث ټول اکثريه رسالو او اشتهاراتو کښې بيانونه ورکوی، چه ددې عمل دَقران اوحديث.عملِ صحابه اودَقرون ثلاثه نه څه ثبوت نيشته.

---

﴿١﴾قال ابن شحنة: ويجوز الرجوع فی الهبة عندنا وان کان مکروها اذا کان ذلک بتراضيهما او بحکم الحاکم لقوله ﷺ الواهب احق بهبته ما لم يثب عنها ای ما لم يعوض ...... وهب الموهوب له لآخر لم رجع الواهب الاول له ان يرجع ايضاً (لسان الحکام فی معرفة الاحکام) (معين الحکام ص ٢٧٣ نوع فی الرجوع عن الهبة)
﴿٢﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولو مات وعليه صلوات فائتة واوصی بالکفارة يعطی لکل صلاة نصف صاع من بر کالفطرة . قال ابن عابدين: (قوله يعطی) بالبناء للمجهول ای يعطی عنه وليه ای من له ولاية التصرف فی ماله بوصاية او وراثة فيلزمه ذلک من الثلث اذا اوصی. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ٥٤١ جلد ١ باب قضاء الفوائت)

او دَ کوم عمل چه ثبوت نه وی نوهغه ثواب گڼل او التزام کول بدعت او واجب الاجتناب وی لهذا بنده عرض کوی چه تاسو هم دې باره کښې څه اولیکئ او په دې بې مثله اجر کښې حصه واخلئ؟ ولاجرالآخرة اکبر.

المستفتی: عبدالرزاق اله ډنډ ډهیری ملاکنډ ایجنسی... ۱۰ فروری ۱۹۷۵ء.

**الجواب**: دا خبره دې واضحه وی چه بدعت دَهغه څیز نوم دې چه په خیرالقرون کښې نه بنفسه موجود وی او نه باصله موجود وی. او بیاهغه دین گڼلې کیږی. او چونکه دا حیله خوباصله راغلې ده. کمافی الاشباه. لهذا حیله اسقاط به بدعت نه وی. کما ورد فی القرآن فی حق ایوب علیه السلام ووردفی الترمذی فی حق الانصاری الغیرالمحصن، ددې وجې نه ټولو فقهائې کرامو دیته جائز وئیلې دی. فلیراجع الی باب قضاء الفوائت فی ردالمحتار والبحروالاشباه والنظائروخلاصة الفتاوی والهندیه وفتح القدیر وغیره. خلافاللطائفة السلفیة النجدیة، البته ددې حیلې دپاره څوشرائط هم دی چه دَهغې رعایت اولحاظ کول ضروری دی.

**منها ما ذکره العلامه ابن عابدین فی رسائله: ویجب الاحتراز من ان یلاحظ الوصی عند دفع الصرة للفقیر الهزل او الحیلة بل یجب ان یدفعها حقیقة لا تحیلا، ملاحظا: ان الفقیر اذا ابی عن الهبة الی الوصی کان له ذلک ولا یجبر علی الهبة انتهیٰ. مافی منة الجلیل ص ۲۲۵ جلد ۱**

چونکه په مروجه حیله کښې دا شرط مفقود دې لهذا دا حیله به دَذمې دَفارغ کیدلو دپاره بې کاره وی. فافهم، وهوالموفق.

## په فدیو کښې حیله مروجه دَ مړی دَ ذمې فارغ کیدلو دپاره کافی نه ده

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَحیله اسقاط څه حکم دې چه کوم مړې مسکین وی او دَهغه دپاره حیله او کړیشی او دَفدیې مقدار برابر کړیشی نود شریعت په دې کښې څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولاناعبدالحلیم تخت بهائی مردان...... ۱۹۸۹ء/۲/۲.

**الجواب**: حیله اسقاط بذات خود جائزه دَقران، حدیث او فقه حنفی نه ددې مشروعیت دَرو ښانه ورځ پَشان ثابت دې البته ددې دَمشروعیت دپاره څه شرائط دی چه دَهغې لحاظ کول ډیر زیات ضروری دی. منها التملیک الحقیقی للمسکین والاجتناب عن الهزل والتملیک اللسانی کماصرح به فی رسائل ابن عابدین.(٢) خو چونکه په مروجه حیله کښې دا شرائط مفقود دی، لهذا مروجه حیله اسقاط دَمړی دَذمې دَفراغت دپاره بې کاره ده په اهلِ علم باندې لازم دی چه ددې مفاسدو اصلاح اوکړی یا ددې حیلې مخ نیوی اوکړی یعنی بغیر حیلې دې فدیه تقسیم کړی. وهوالموفق.

## دَ حیله اسقاط نه پس دَفدیې دَمال نه دَ وارثانو خیرات کول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو مړی دَ زر روپو دَخرچ کولو وصیت کړې وی لیکن بالغ وارثان خپل مینځ کښې مشوره اوکړی چه مونږ به دې مړی دپاره درې سوه روپۍ په فدیه کښې ورکړو. دَتدفین په ورځ دَحیله مروّجه په بنیاد یو څو کسان کیناستل چه په هغې کښې اکثر مالداران وی او په مروجه حیله کښې تملیک حقیقی هم مفقود معلومیږی دَمال دَ تاؤهلو په وخت کښې دَمال آخرنې قبض کَونکې دَمړی وارث نه اووائی چه دا مال تقسیم کړه او صدقه کړه. دَقابض خیال دې چه دا خو دَ آخرنی قابض ملک جوړیږی او دَفدیې معامله ختمه شوه نو آیا وارثان ددینه خیرات کولې شی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حضرت مولانافضل مولاصاحب دلبوړی

مدرس دارالعلوم حقانیه_٢٧/ربیع الاول ١۴٠٢ھ

**الجواب**. مروجه حیله دَ شرط نه موجود کیدلو په وجه دَ ذمې فارغ کیدلو دپاره

---

**﴿١﴾** قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: فیستقرض قیمتها ویدفعها للفقیر ثم یستوهبها منه ویتسلمها منه لتتم الهبة ثم یدفعها لذلک الفقیر او لفقیر آخر.

(ردالمحتار ص ۵۴٢ جلد ١ باب قضاء الفوائت)

**﴿٢﴾** ( رسائل ابن عابدین منة الجلیل لبیان اسقاط ما علی الذمة من کثیر وقلیل ص ٢٢۵ جلد ١ )

بې کاره ده لیکن داوارث ددې مخصوص مال بهرحال مالک دې. امامن ابتداء لعدم صحة تملیک للغیرلاجل الهزل وامابتملیک القابض الاخیرعلی تقدیرالجـــد.
پس داوارث ددې مخصوص مال په رسمي یاغیر رسمي طریقه سره دَخیرات کولو مجازدې. وهوالموفق

## دَ اسقاط یا حیله اسقاط د پاره قبرستان ته څیزونه وړل نه مطلوب دی او نه ممنوع دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که دَحیله اسقاط دپاره چرته قبرستان ته اجناس یعنی (مختلف څیزونه) یوسی یا هلته تقسیم نه شی آیا دا صحیح دی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولوی عبدالعلی زیارت بلوچستان........ ۱۹۸۴ء/۱۰/۲.

**الجواب:** باقاعده طورسره دَاسقاط یا حیله اسقاط دپاره اجناس وغیره قبرستان ته وړل اوهلته تقسیم کول نه مطلوب شرعی دی اونه ممنوعِ شرعی دی چه کله دَ مفاسدو نه خالی وی. اوپه مصلحتونو باندې مشتمل وی. مثلاً په مصارفو باندې په باعزت طریقې سره په تقسیم کښې آسانی وی نوپه طریقِ اولی به ممنوع نه وی.
**لانه اهون من الذهاب الی ارباب الاموال لحصول الاموال منهم للمدارس وغیرها لخلوه عن صورة السوال. وهوالموفق**

## دَ قضائې عمری حدیث موضوعی او مردود دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَقضائې عمری مونځ چه هغې ته بعضې علماء بدعت وائی آیا ددې مونځ په شریعت کښې څه ثبوت شته یا نه؟ اوکوم حدیث چه په دلیل کښې پیش کوی ددې حدیث درجه څه ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی: سعیدالرحمن مدرسه عربیه رائے ونډضلع لاهور..۱۹۸۸ء/۷/۲۰

**الجواب:** دامونځ چه دَمبتدعینو په نزد د قضائې عمرئ سره نوم لری. مکروه او بدعتِ قبیحه دې نه دَقران پاک نه دَدې مشروعیت ثابت دې او نه دَحدیث نه

واما حدیث من قضی صلوٰة من الفرائض فی آخر جمعه فی شهر رمضان کان ذلک جابراً لکل صلوٰة فائتة الیٰ سبعین فقال القاری فی الموضوعات الکبیر ص ٧٤ انه باطل قطعا لانه مناقض للاجماع علی ان شیئا من العبادات لا یقوم مقام فائتة سنوات، ثم لا عبرة بنقل النهایة ولا بقیة شراح الهدایة فانهم لیسوا من المحدثین ولا اسندو الحدیث الی احد من المخرجین، انتهیٰ﴿١﴾.
اونه د فقهې په کتابونو کښې موجود دي:

واما روی عن ابی حنیفة انه قضی صلوٰة عمره فلیس المراد منه هذا بل هو قضاء الفوائت علی قدرالفوائت علی الزعمیة، وصرح الشامی فی ردالمحتار ان هذه الروایة لم تصح عنه فلیراجع الی ردالمحتار ص ٤٩٠ جلد ١﴿٢﴾،
بلکه دمونځ دَحنفیه دَقواعدو نه هم مخالف دي.

من عدم اقتداء المفترض بالمتفل وبمفترض وقت آخر ﴿٣﴾ وعدم جواز الاذان عند ادائها فی المساجد ﴿٤﴾. وهوالموفق

## دَ قضاء عمرئ دَ مونځ هیڅ ثبوت نشته

سوال: علمائي دين دي مسئلي باره کښې څه فرمائی چه دَرمضان په آخرنئ جمعه کښې دَقضاعمرئ مونځ په شریعت کښې څه حیثیت لری. بعضې علماء دې باره کښې پوره دلیلونه بیانوی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: شمس الحق متعلم حقانیه.......٢٨/نومبر١٩٧٤ء.

---

﴿١﴾(الموضوعات الکبریٰ لملا علی قاری ص ٢٤٢ رقم الحدیث : ٩٥٣)
﴿٢﴾(ردالمحتار ص ٥١٦ جلد ١ قبیل مطلب فی الصلاة علی الدابة باب الوتروالنوافل)
﴿٣﴾قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: ای وفسد اقتداء المفترض بامام متنفل او بامام یصلی فرضاً غیر فرض المقتدی الخ . (البحر الرائق ص ٣٦٠جلد ١ باب الامامة)
﴿٤﴾قال العلامة ابن نجیم رحمه الله فالاذان للفائتة فی المسجد اولی بالمنع .
(البحر الرائق ص ٢٦٢ جلد ١ باب الاذان)

**الجواب**: دا مونځ نه د قرآن او حدیث نه ثابت دې او نه د فقهائې کرامو نه مروی دې.

**والاحادیث الواردة فیها موضوعة کما صرح به العلی القاری﴿۱﴾ وغیره﴿۲﴾ وماروی ان الامام اباحنیفة قضی صلوٰة عمره فعلی تقدیر الثبوت معناه قضاء صلواة جمیع العمر احتیاطا لاما فهمه المتعبدون، بل هی مخالفة عن تصریحات الفقهاء لان فیها یوذن للفوائت عند الاداء فی المساجد وفیها عدم اتحاد صلوٰة الامام مع الماموم وایضا هی مخالفة عن حدیث لاکفارة لها الا ذلک، ثم هی مهلکة للعوام لانهم یعتقدون کفایتها کما لا یخفیٰ. وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ قال الملا علی القاری رحمه الله: حدیث من قضی صلاة من الفرائض فی آخر جمعة من شهر رمضان کان ذلک جابرا لکل صلاة فائتة فی عمره الی سبعین سنة، باطل قطعا لانه مناقض للاجماع علی ان شیئا من العبادات لا یقوم مقام فائتة سنوات ثم لا عبرة بنقل النهایة ولا ببقیة شراح الهدایة فانهم لیسوا من المحدثین ولا اسندوا الحدیث الی احد من المخرجین. (الموضوعات الکبریٰ ص ۲۴۲ رقم حدیث: ۹۵۳)

﴿۲﴾ قال العلامه عبد الحی اللکهنوی: وذکره الشوکانی فی الفوائد المجموعة فی الاحادیث الموضوعة بلفظ من صلی فی آخر جمعة من رمضان خمس الصلوات المفروضة فی الیوم واللیلة قضت عنه ما اخل به من صلوات سنة، وقال هذا موضوع بلا شک ولم اجده فی شیئ من الکتب التی جمع مصنفوها فیها الاحادیث الموضوعة ولکن اشتهر عند جماعة من المتفقهة بمدینة صنعاء فی عصرنا هذا وصار کثیر منهم یفعلون ذلک ولا ادری من وضع لهم فقبح الله الکذا بین انتهیٰ وقال العلامة الدهلوی فی رسالة العجالة النافعة عند ذکر قرائن الوضع الخامس ان یکون مخالفاً لمقتضی العقل و تکذبه القواعد الشرعیة مثل القضاء العمری ونحو ذلک انتهیٰ.

(مجموعه سبع رسائل ص۵۳ الاثار المرفوعه فی الاخبار الموضوعة)

وقال الشاه عبد العزیز المحدث الدهلوی: الخامس ان یکون الحدیث مخالفا لمقتضی العقل والنقل وتکذبه القواعد الشرعیة مثل حدیث قضاء العمری ونحوه.

(العجالة النافعه ص ۳۰ بیان قرائن وضع الحدیث)

## دَ قضائي عمرى دلائل بې اصله او دَاحنافو دَ اصولو خلاف دى

**سوال**: ماقولكم ايها العلماء الكرام فى صلوٰة يصيلها الناس فى اخرجمعة من رمضان على صورة قضاء خمس صلوات جماعة باذان واقامة لكل واحد منها ويسمونها بالقضاء العمرى، فيبدء ون بصلوة الفجر ثم بالظهر وهكذا الى العشاء ثم فى آخرها يصلون الوتر بجماعة ويعتقدون بان القضاء على هذه الهيئة تكون جابرة لمافات منهم فى العمر او فى سبعين سنة من الصلوة، وانها جبيرة لكل ما نقص منهم فى صلوة العمر. هل لهٰذه الصلواة اصل فى الشريعة ام هى بدعة مخترعة فى الدين؟ وهل يصح تمسكهم لجوازها بدلائل ذكروها فى الرسائل؟(١) الاول ماروى ان النبى ﷺ قال من قضى خمس صلوة فى آخر جمعة من رمضان باذان واقامة كان جابرا لما فاته فى سبعين سنة،فان هذا الحديث قد نقله صاحب النهاية فيعلم منه انه ثابت فيصح الاستدلال به وان كان ضعيفا، فان الضعيف من الاحاديث يحتج به فى فضائل الاعمال على ما هو المصرح فى كتب الفن،(٢) والدليل الثانى انه لو سلم ان الحديث موضوع لكن يصح الاحتجاج به لما فيه من الترغيب الى الصلوٰة والعمل بالموضوع جائز فى الترغيب وكذا الوضع على ما يعلم من ظاهر قوله عليه السلام من كذب على الخ فانه كلمة على تشعر بالضرر فيعلم منه ان الممنوع هو الكذب الذى فيه ضرر على الدين فانه كذب عليه عليه السلام لا مافيه نفع للدين فانه كذب له لا كذب عليه. (٣)الدليل الثالث: ان كثيرا من الاحبار والرهبان الذين لهم زهد فى الدنيا ورغبة فى الاخرة والتقوىٰ والانابة الى الله قد فعلوها وواظبوا عليها فينبغى لنا ان نتبعهم فيها لقوله تعالىٰ

واتبع سبیل من اناب الخ(الاية) .(۴) الدليل الرابع: ان النبی ﷺ كان شغل عن اربع صلوات يوم الخندق فقضاهن مرتبة فی وقت العشاء وفی حديث اخر صلوا كما رأيتمونی اصلی رواه احمد وكذا ما وقع له عليه السلام فی ليلة التعريس يدل على جواز هن فان فيهاقد فاتت منه صلوة الفجر فقضاها بعد ما طلعت الشمس بالجماعة باذان واقامة كما رواه مالک فی موطاه مرسلاً. (۵)الدليل الخامس: ان هذه الصلوة قد ذكرها الفقهاء فی معتبرات كتب الفقه كالبحر والخلاصة والظهيرية وقاضی خان والدرالمختار وحاشية ردالمحتار وفی فتاویٰ نورالهدیٰ ايضاً فيعلم منه ان لها اصلا فی الشريعة وثبوتا فی المذهب لا سيما وقد ذكروا ان اباحنيفة قد فعلها وقضى صلوات عمره هل يصح التمسک بهذه الدلائل ام لا؟ بينوا توجروا

المستفتی: شمس الحق متعلم خقانیه ....۱۴ جنوری ۱۹۷۵ء

**جواب**: (الف) لا اصل لهذه الصلوة بل هو مخالف عن الاصول المروية عن الاحناف مثل عدم التأذين عند القضاء فی المسجد كما فی البحر ﴿۱﴾ ولعدم صحة اقتداء المفترض بالمتنفل اوالمفترض لوقت آخر كما فی البحروغيره ﴿۲﴾. وعدم جواز الاقتداء فی النوافل على سبيل التداعی فی غير التراويح والوتر انه مكروه بالمواظبة ﴿۳﴾. (ب) ليس بهم دليل بل هو امر مخترع.

﴿۱﴾قال العلامة ابن نجيم رحمه الله: فالاذان للفائتة فی المسجد اولٰی بالمنع. (البحر الرائق ص ۲۶۲ جلد ۱ باب الاذان)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجيم رحمه الله: ای وفسد اقتداء المفترض بامام متنفل او بامام يصلی فرضا غير فرض المقتدی الخ . (البحر الرائق ص ۳۶۰ جلد ۱ باب الامامة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجيم رحمه الله: ولو صلوا الوتر......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

(۲) ہذا موضوع والموضوع لا یصح الاستدلال به لا فی الفضائل ولا فی غیره کما فی شرح النخبة وغیره ﴿۱﴾ والکذب والاختلاق حرام مطلقا لعموم المحرم، وقال رسول اللهﷺ من حدث عنی بحدیث یری انه کذب فهو احد الکاذبین(مسلم)﴿۲﴾ وفی روایة من قال عن مالم اقله الحدیث وهو لمام . (۳) لیس بدلیل مالم ینقل ولم یقرر. (۴) دال علی القضاء دون الصلوٰة المسماة بالقضاء العمری. (۵) جاز قضاء صلوٰة جمیع العمر احتیاطا فی روایة مرجوحة ولم یجز صلوٰة القضاء العمری البتة. والثابت عن العبارات الامر الاول دون الثانی وللتفصیل مقام آخر. وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) بجماعة فی غیر رمضان فهو صحیح مکروه کالتطوع فی غیر رمضان بجماعة وقیده فی الکافی بان یکون علی سبیل التداعی اما لو اقتدی واحد بواحد او اثنان بواحد لا یکره واذا اقتدی ثلاثة بواحد اختلفوا فیه وان اقتدی اربعة بواحد کره اتفاقا.

(البحر الرائق ص ۷۰ جلد۲ باب الوتر والنوافل)

﴿۱﴾ قال العلامة اللکهنوی : اعلم انه قد صرح الفقهاء والمحدثین باجمعهم فی کتبهم بانه تحرم روایة الموضوع وذکره ونقله والعمل بمفاده مع اعتقادثبوته الا مع التنبیه علی انه موضوع ویحرم التساهل فیه سواء کان فی الاحکام اوالقصص او الترغیب والترهیب او غیر ذلک ویحرم التقلید فی ذکره و نقله الامقرونا ببیان وضعه بخلاف الحدیث الضعیف الخ...... قلت قد ثبت من هذه الروایات ان الوضع علی النبیﷺ ونسبة مالم یقله الیه حرام مطلقا ومستوجب لعذاب النار سواء کان ذلک فی الحلال اوالحرام او ترغیب او ترهیب اوغیر ذلک فبطل ظن بعض الوضاعین الجهلة ان الکذب علیهﷺ للترغیب والترهیب یجوز لانه کذب له لا علیه.

(مجوعه سبع رسائل للکهنوی ص ۹۰، تا ۹۸ الآثار المرفوعة فی الاخبار الموضوعة)

﴿۲﴾ (الصحیح المسلم ص ۶ جلد ۱ باب وجوب الروایة عن الثقات وترک الکذابین والتحذیر من الکذب علی رسول اللهﷺ)

## دَ بې اودسه ادا کړې شوو مونځونوباره کښې
## دَ معزول امام اطلاع او دَ قضاء کولو حکم

**سوال:** علمائي دين دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ دَجمات نه یو امام معزول کړې شو دَهغه په ځائې بل امام جوړ کړې شو نودې معزول امام اووئیل چه ماتاسو ته دوه مونځونه بغیر اودسه کړی دی اوماته معلوم نه دی چه هغه کوم مونځونه وو. اوس به مقتدیان حضرات څه کوی اودکومو مونځونو ادا به کوی. ځکه چه څه دَخاص وخت دَمونځونو یقین نیشته دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: متعلم جامعه حقانیه....۱۹۸۷ء/۲/۱۴.

**جواب:** جاز ان لا یعتمد علی قول هذا الفاسق نعم اذا کان متورعا فجاز الاعتماد کما فی الهندیه ص ۹۱ جلد ۱ فلیراجع ، فالورع ان یقضی صلوٰة یومین ﴿۱﴾ فافهم. وهوالموفق

﴿۱﴾ وفی الفتاویٰ الهندیه: لو قال صلیت بکم المدة علی غیر وضوء وهو ماجن لا یقبل قوله وان لم یکن کذلک واحتمل انه قال علی وجه التورع والاحتیاط اعادوا صلاتهم. (فتاویٰ عالمگیریه ص۸۷ جلد ۱ الفصل الثالث فی بیان من یصلح اماما لغیره)

# باب الاستسقاء

## د باران د پاره سورت يسين ويئل اود اذان کولوطريقه مباح ده مستحب نه ده

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د باران دپاره چه د استسقاء کوم مونځ مشهوردې آيا ددينه علاوه نورې طريقې هم ثابت دی؟ زمونږ خائې کښې د بارانِ رحمت دپاره لاندينۍ طريقه اختيارولې شی.هغه دا چه د ماسخوتن د مانځه نه پس د جمات امام يا بل سړې سورت يسين د اول نه شروع کړی د اولنی مبين پورې ئې تلاوت کړی دهغې نه پس يو سړې د امام خوا کښې اودريږی اذان کوی، دهغې نه پس دجمات په جنوب مغرب طرف کښې اذان کولې شی، بيا بعد اذان جنوب مشرق ګوټ کښې اذان کولې شی،دغه شان شمال مشرق او بيا شمال مغرب ګوټ کښې اذان کولې شی،ددې نه پس امام چه په دريم ځل سورت يسين ابتداء نه دويم مبين پورې اووائی اوپه مذکوره طريقې سره پنځه کسان اذان کوی،دغه شان بيا دريم مبين پورې غرض د سورت يسين تر آخرنی مبين پورې دا اذانونه اوتلاوت کيږی.دهغې نه پس دعا کولې شی،د تپوس لائق کار دادې چه آيا مذکوره طريقه شرعاً صحيح اوجائزده؟ بينوا توجروا

المستفتی:مولوی اورنګزيب کريليان هری پور ايبټ آباد.. ۱۹۸۴/ ۲/ ۷ء

**الجواب**: که دا عمل د عملياتو په ارادې سره کوی نو نه مطلوب دې اونه ممنوع دې(۱) اوکه د مستحباتو نه د کيدلوپه نيت ئې کوی نو بدعت دې(۲)

---

**(۱)** يدل عليه حديث مسلم :عن عوف مالک الا شجعی قال لنا نرقی فی الجاهلية فقلنا يا رسول الله کيف ترى فی ذلک فقال اعرضوا علی رقا کم لاباس بالرقیٰ مالم يکن فيه شرک.(الصحيح المسلم ص ۲۲۴ جلد ۲ باب جواز اخذ الاجرة علی الرقية)

**(۲)** قال العلامه ابن نجيم :ولان ذکر الله تعالیٰ اذا ......... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

بهرحال د وسائل مشروعه باوجود نور خودساخته وسائل په کار راوستل د مسلمانانو شایان شان نه دی.وهوالموفق

## صلوٰة استسقاء باجماعت کول د صاحبینو په نزد سنت مؤکده دي

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په مشکوة باب الاستسقاء کښې دعبدالله بن زيد رضي الله عنه نه روايت دې.

**قال خرج رسول الله صلى الله عليه وسلم با لناس الى المصلى يستقى فصلى بهم ركعتين جهر فيهما بالقراء ة واستقبل القبلة يدعوا ورفع يديه وحول رداء ه حين استقبل القبلة متفق عليه**

اوس سوال دادې چه د استسقاء مونځ به په جماعت سره اداکولې شی یا ځان ځانله؟ لهذا د فقه حنفی په رنړا کښې د استسقاء څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالستارتخت بهائی ضلع مردان ...ذیقعده ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد باندې باجماعت مونځ کول سنت مؤکده نه دې.

**کمااشار اليه صاحب الهدايه بقوله فعله مرة وترکه اخرىٰ .وصرح به ابن الهمام وغيره﴿۱﴾ اود صاحبينو په نزد سنت موکده دی:وهو مختار الطحاوی وقال الشيخ عبدالحق الدهلوی وعليه الفتوىٰ﴿۲﴾وهو الموفق.**

---

(بقيه حاشيه)قصد به التخصيص بوقت دون وقت اوبشئ دون شئ لم يکن مشروعا حيث لم يرد الشرع به لا نه خلاف المشروع.(البحرالرائق ص ۱۵۹ جلد ۱ باب العيدين )

﴿۱﴾قال العلامه مرغينانى: وقال يصلى الامام ركعتين لما روى ان النبى صلى الله عليه وسلم صلى فيه ركعتين کصلاة العيد روا ه ابن عباس قلنا فعله مرة وترکه اخرىٰ فلم يکن سنة .قال ابن الهمام :قوله ورسو ل الله صلى الله عليه وسلم استسقىٰ ولم تروعنه الصلاة يعنى فى ذلک الاستسقاء فلايرد انه غير صحيح کما قال الامام الزيلعى المخرج ولو تعدىٰ بصره الى قدر سطرحتى رأى قوله فى جوابهما قلنا فعله مرة وترکه اخرىٰ فلم يکن سنةلم يحمله على النفى مطلقا وانمايکون سنة ما واظب عليه الخ(هدايه فتح القدير ص ۵۸ جلد ۲ باب الاستسقاء)

﴿۲﴾وفى المنهاج: اعلم ان الصلوٰة فيه سنة مؤکدة......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## په صلوة الاستسقاء کښې مفتی به قول د صاحبینو دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د استسقاء په مونځ کښې د جماعت په باره کښې دامام ابوحنیفه اوصحابینو (رحمهم الله) په مینځ کښې اختلاف دې، په دې کښې مفتی به قول کوم یو دې، د معتمد کتابونو په حوالې سره د مُفتی به قول نشاندهی اوکړئ؟ بینوا تؤجروا

المستفتی: مولوی احمد صاحب بشام سوات.....۱۹۷۷ء۱۹/۱۰/۱

**الجواب:** امام طحاوی رحمه الله په شرح معانی الاثار کښې د صاحبینو مذهب غوره کړې دې اوشیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله فرمائی:

**على قولهما الفتوىٰ عندالحنفية كما فى حاشية المشكواة باب الاستسقاء.﴿۱﴾وفى ردالمحتار ص ۷۹۱ جلد ۱ واختار القدورى قول محمد لانه عليه السلام فعل ذلك نهر وعليه الفتوى كما فى شرح دررالبحار.﴿۲﴾فافهم.وهوالموفق**

---

**(بقيه حاشيه) عند مالك والشافعى واحمد وابى يوسف و محمد فيصلى الامام ركعتين بجماعة يجهر فيهما بالقراءة واختاره الطحاوى وقال الشيخ الدهلوى وعليه الفتوىٰ والوجه فيه ان النبى صلى الله عليه وسلم عند الخروج له لم يرجع بغير صلاة الجماعة .وقال ابو حنيفة الصلوٰة فيه ليست بمسنونة كما فى مختصر القدورى و مراده انها ليست بسنة موكدة بدليل تعليل الهداية حيث قال فعله مرة وتركه اخرىٰ فلم يكن سنة.**

**(منهاج السنن شرح جامع السنن ص۸۸ جلد ۳ باب ماجاء فى صلوٰة الاستسقاء)**

**﴿۱﴾قال العلامه الشيخ زينة المحدثين مولانا نصير الدين الغورغشتوى: ونحن لا نمنعه ولكن نقول اذا اجتمع الناس للاستسقاء وخرجوا الى المصلى فلا ينبغى لهم الرجوع بغير صلاة الجماعة...... ولهذا اختار الطحاوى قول الصاحبن وقال الشيخ الدهلوى على قولهما الفتوىٰ عند الحنفية.**

**(هامش غورغشتوى على مشكواة المصابيح ص ۱۳۳ جلد ۱ باب الاستسقاء)**

**﴿۲﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۶۲۳ جلد ۱ قبيل هل يستجاب دعاء الكافر باب الاستسقاء**

## د مسنون طریقهٔ استسقاء په موجودګئ کښې د مشتبه طریقې نه بچ کیدل پکاردی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ د علاقې په خلقو کښې د استسقاء دپاره دا اصول دی چه ټول خلق جمع شی او ذکرشروع کړی، دغه شان یو مولوی صاحب وعظ هم کوی. اوبیا دا خلق په اجتماعی طریقې سره د یو کلی نه بل کلی ته ځی. او اعلان کوی چه ددې کلی خلق هم مونږسره استسقاء اوکړئ دې دوران کښې څه غیبت او بې کاره مجلس نه وی صرف دالله تعالی ذکرکولې شی.اوس بعضې علماء فرمائی چه دا بدعت دې، اوبعضې وائی چه ددې د بدعت کیدلو وجه داده چه د خلقو دخوراک انتظام کلی والا کوی او باران غوښتلو والا خو خوراک نه غواړی،ددې شرعی حیثیت واضح کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: ولی محمد خان زی کلې بلوچستان.....١٣٩٣،١\٦\١٢

**الجواب**: چه کله د علماؤ په راهنمایئ کښې په مسنون طریقې سره استسقاء کول ممکن وی(١) نوپه دې مشتبه کارکښې د پریوتلو هیڅ ضرورت نشته.
**نعم لا یقال انها بدعة مالم یدخلوها فی الدین لان البدعة الا حداث فی الدین .قال رسول الله ﷺ من احدث فی امرنا هذا مالیس منه فهورد اوکما قال علیه الصلاة والسلام﴿٢﴾.وهوالموفق**

## په استسقاء کښې دوه رکعته باجماعت کول مفتی به قول دې

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د صلوة الاستسقاء په

﴿١﴾قال الحصکفی: ویستحب للامام ان یا مرهم بصیام ثلاثة ایام قبل الخروج وبالتوبة ثم یخرج بهم فی الرابع مشاة فی ثیاب غسیلة او مرقعة متذللین متواضعین خاشعین لله ناکسین رؤسهم ویقدمون الصدقة فی کل یوم قبل خروجهم ویجددون التوبة ویستغفرون للمسلمین ویستسقون بالضعفة.والشیوخ والعجائز والصبیان ویعدون الا طفال عن امهاتهم الخ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٦٢٣ جلد ١ باب الا ستسقاء)

﴿٢﴾(مشکواة المصابیح ص٢٧ جلد ١ باب الاعتصام بالکتاب والسنة)

باره کښې بعضې خلق وائی چه څلور رکعته کول پکاردی. دوه رکعته اول ځانله او بیا دوه رکعته باجماعت، ځکه چه په دې کښې احتیاط دې او بعضې وائی چه صرف دوه رکعته باجماعت ادا کول پکاردی، په دې کښې کوم یو قول صحیح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نا معلوم ........

**الجواب**: چونکه مفتی به قول د صاحبینو مذهب دې، لهذا دوه رکعته باجماعت کول پکاردی.

(فی الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۷۹۱ جلد ۱) **وقالا تفعل کالعید ای یصلی بهم رکعتین بجماعة یجهر فیهما بالقراء ة بلا اذان ولا اقامة ثم یخطب الخ﴿۱﴾وقال مولانا (نصیرالدین الغرغشتوی)فی حاشیة المشکواة ولکن نقول اذا اجتمع الناس للاستسقاء وخرجواالی المصلی فلا ینبغی لهم الرجوع بغیر صلاة الجماعة ولهذا اختار الطحاوی قول صاحبین وقال الشیخ الدهلوی علی قولهما الفتویٰ عند الحنیفة﴿۲﴾. وهوالموفق.**

**﴿۱﴾(الدرالمختار مع ردالحتار ص ۶۲۳ جلد ۱ :مطلب هل یستجاب دعاء الکافر باب الاستسقاء)**

**﴿۲﴾وفی منهاج السنن : اعلم ان الصلوة فیه سنة موکدة عند مالک والشافعی واحمد وابی یوسف و محمد فیصلی الامام رکعتین بجماعة یجهر فیهما با لقراء ة واختاره الطحاوی وقال الشیخ الدهلوی وعلیه الفتویٰ والوجه فیه ان النبیﷺ عند الخروج له لم یرجع بغیر صلوٰة الجماعة .وقال ابو حنیفة الصلوٰة فیه لیست بمسنونة کما فی مختصر القدوری. ومراده انها لیست بسنة مؤ کدة بد لیل تعلیل الهدایة حیث قال فعله مرة وترکه اخریٰ فلم یکن سنة .وصرح المحقق ابن امیر الحاج فی الحلیة وغیره ان ابا حنیفة قائل بالجواز .وبالجملة ان الاستسقاء عند ابی حنیفة هو الدعاء والاستغفار لقوله تعالیٰ فقلت استغفروا ربکم انه کان غفاراً یرسل السماء علیکم مدراراً . حیث علق نزول المطر بالاستغفار دون الصلوٰة .فکان الاصل فیه الدعاء والاستغفار دون الصلوٰة وللناس ان یصلوا جماعة اووحدانا ویقتصروا علی الدعاء من غیر صلاة .ویؤید ه مارواه سعید بن منصور فی سننه ان عمر خرج یوما یستسقی فلم یزد علی الاستغفار فقالوا مارءینا ک......**(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## په استسقاء کښې باجماعت مونځ کول بدعت نه دي مشروع دي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه استسقاء کښې باجماعت مونځ ثابت دې یا نه؟ او ائمه دین د استسقاء باجماعت مونځ باره کښې څۀ رائې لری؟ دلته یو مولوی صاحب باجماعت استسقاء ته بدعت او کولو والا ته بدعتی وائی، تفصیل ئې اولیکئ ډیره مهربانی به وی؟

واجرکم علی اللّٰه

المستفتی: نامعلوم.....

**الجواب:** مفتی به قول دادې چه مونځ به باجماعت کولې شی ﴿۱﴾ او بیا روستو به خطبه وی او د خطبې په ضمن کښې به تحویل رداء (څادر اړول) کیږی.

**قال مولانا فی حاشیة المشکواة وللصاحبین ومن وافقهما ان یقولوا ثبت فی هذه الاحادیث الدعاء عن رسول ﷺ ونحن لانمنعه ولکن نقول اذا اجتمع الناس للاستسقاء وخرجو االی المصلی فلا ینبغی لهم الرجوع بغیر صلوٰة الجماعة فانه لم یثبت عن النبی ﷺ فی الصورة الرجوع بغیر صلوٰة الجماعة لهذا اختارا الطحاوی قول الصاحبین وقال الشیخ الدهلوی علی قولهما الفتویٰ عند الحنیفة﴿۲﴾.**

**وهوالموفق**

---

(بقیه حاشیه)استسقیت فقال طلبت الغیث بمجا دیح السماء اللذی یستزل به المطر. والمجادیح الا نواء کما فی القاموس .وکذا یؤیده ما رواه ابن ابی شیبةعنه الا کتفاء بالاستغفار وقداحتج البدر العینی بنحوستةعشر حدیثا بالمذهب ابی حنیفة فی علم سنیة الصلوة فیه.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ص۸۸ جلد ۳ باب ماجاء فی صلوٰة الا ستسقاء)

﴿۱﴾قال العلامه ابن عابدین رحمه الله :وقال محمد یصلی الامام أو نائبه رکعتین کما فی الجمعة ثم یخطب أی یسن له ذلک والاصح أن أبا یوسف مع محمد نهر.

(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص۶۲۳ جلد ۱ : باب الاستسقاء )

﴿۲﴾(حاشیه غورغشتیه علی مشکواة المصابیح ص۱۴۴ جلد۱ باب الاستسقاء )

## د استسقاء د پاره یو عمل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مارتونګ مولانا صاحب د باران رحمت دپاره دا وظیفه ښائی چه د مونځ نه پس به ئې په سرتور سر دا لوستل.(وهو الذی ینزل الغیث من بعد ما قنطوا و ینشر رحمته، وهو الولی الحمید) او روستو خلقو به په جهرسره آمین وئیل. نوما هم د مولانا صاحب د ارشاداتو مطابق دا وظیفه اوکړه دباران د طلب دپاره، نو یو سړی راته اووئیل چه دا وظیفه په سر تور سر جمات کښې کول ممنوع دی او تکبردې نو آیا واقعی دا وظیفه ممنوع ده او تکبردې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحکیم شاه امام مسجد معیارمردان....۱۲\۷\۱۹۷۴

**الجواب:** که داوظیفه بطورعمل اوکړې شی نو دعدم ایذاء په شرط صحیح ده(۱) **ولعل هذا هو مراد الشیخ الجامع .والشرط فی جواز العملیات هو عدم التصادم بالسنة لا ثبوتها بخصوصها بالسنة والدلیل علیه ما فی حدیث عوف بن مالک مرفوعا اعرضوا علی رقاکم لابأس بالرقیٰ ما لم یکن فیه شرک (رواه مسلم بحواله مشکواة ص۳۸۸ جلدا کتاب الطب والرقیٰ)﴿۲﴾.وهو الموفق**

## د استسقاء د مونځ د پاره دریو ورځو نه زیات وتل ثابت نه دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د استسقاء د مونځ دپاره خلق درې ورځو پورې اوځی او وائی چه د دریو ورځو نه زیات وتل جائز نه دی. آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم........

---

**﴿۱﴾قال العلامه ابن عابدین: وفی حاشیة الحموی عن الامام الشعرانی اجمع العلماء سلفاً وخلفا علی استجاب ذکر الجماعة فی المساجد وغیره الا ان یشو ش جهر هم علی نائم او مصل او قارئ الخ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۴۸۸جلد ۱ مطلب رفع الصوت بالذکر)**

**﴿۲﴾(مشکواة المصابیح ص۳۸۸ جلد ۱ : کتاب الطب والرقی :الفصل الا ول)**



**الجواب**: درې ورځو پورې وتل د فقهاؤ نه منقول دی زیات نه ﴿١﴾ وهو الموفق

## د استسقاء په مونځ کښې د څادر اُلټه کولو حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه داستسقاء په مونځ کښې دڅادر اُلټه کولو څه حکم دې؟ اوصحیح طریقه ئې څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید عمرخان هنګو

**الجواب**: په استسقاء کښې څادر اُلټه کول صرف دامام دپاره مستحب دی. دمونځ نه پس قلب رداء داسې کوی چه د څادر اوچته حصه لاندې راشی او لاندینئ حصه بره شی اوچه ښی کس ته او ګس ښی طرفته شی. کما فی ردالمحتار باب الاستسقاء ﴿٢﴾ وهوالموفق

## د استسقاء په مونځ کښې اړولې لاسونو سره د دعا غوښتلو حکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ کلی کښې زمونږ امام صاحب د استسقاء دعا غوښتلو دوران کښې لاسونه اُلټه کړل او دعا ئې اوغوښتله. آیا دا جائزدی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.........

---

﴿١﴾ قال الحصکفی: ویخرجون لثلاثة ایام لانه لم ینقل اکثر منها متابعات. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ٦٢٣ جلد ١ باب الاستسقاء)

﴿٢﴾ قال العلامه ابن عابدین: (قوله خلافا لمحمد) فانه یقول یقلب الامام رداءه اذا مضی صدر من خطبته فان کان مربعا جعل اعلاه اسفله واسفله اعلاه وان کان مدوراً جعل الایمن علی الایسر والایسر علی الایمن وان کان قباء جعل البطانة خارجا والظهارة داخلا حلیه وعن ابی یوسف روایتان واختار القدوری قول محمد لانه علیه الصلاة والسلام فعل ذلک نهر وعلیه الفتویٰ کما فی شرح درر البحار قال فی النهر واما القوم فلا یقلبون اردیتهم عند کافة العلماء خلافا لمالک. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ٦٢٣ جلد ١ باب الاستسقاء)

**الجواب**: داهم جائز دی، رواه ابوداؤد (۱) وهوٰ الموفق

## د صلوة الاستسقاء د پاره صحرا ته وتل بهتر دی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د استسقاء مونځ کوم ځائې کول پکاردی؟ آیا صحرا طرف ته وتل ضروری دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: سلطان علی خان بنوں

**الجواب**: صحرا طرف ته وتل بهتر دی (شامی)(۲) وهوالموفق

---

**(۱) عن انس ان النبی ﷺ کان یستسقی هکذا یعنی ومد یدیه وجعل بطونهما مما یلی الارض حتی رایت بیاض ابطیه. (سنن ابی داؤد ص ۱۷۲ جلد ۱ باب رفع الیدین فی الاستسقاء)**

**(۲) قال العلامه ابن عابدین: (قوله ویخرجون) ای الی الصحراء کما فی الینا بیع اسمعیل وهذا فی غیر اهل المساجد الثلاثة.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۶۲۴ جلد ۱ باب الاستسقاء)**

# باب سجود السهو

## چه د اولنی رکعت نه پس امام په قعده کینی او فتح اخستلوسره پاڅی نود سجده سهو څه حکم دي؟

**سوال**: علمائي دين دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دوه يا څلور رکعته فرض مونځ کښې امام د اولنی رکعت د دويمې سجدې نه پس په قعده باندې کيناستلو. او مقتديان ټول اودريدل او د مُکبر په فتحه باندې امام د قعدې نه قيام ته لاړلو، اوس به امام سجده سهو کوی يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: ماسترحزب الرحيم..... ۱۹۷۷ء۱۹۱۹۱

**الجواب**: که دا قعده (د اولنی رکعت نه پس) اوږده وی د جلسهٔ استراحت د مقدار نه زياته وی سجده سهو لازم ده ګنې لازم به نه وی.

**كمافی ردالمحتار ص۳۱۵ جلد ا وكذا القعدة فی آخر الركعة الاولیٰ او الثالثة فيجب تركها ويلزم من فعلها ايضاً تاخير القيام الی الثانيه او الرابعة عن محله وهذا اذا كانت القعدة طويلة اما الجلسة الخفيفة التی استحبها الشافعی فتركها غير واجب عندنا بل هو الافضل ﴿۱﴾ فافهم. وهوالموفق**

## د مسبوق د پاره د مانبام بقيه دوه رکعتونو په مينځ کښې قعده نه کولوسره سجده سهو ضروری ده

**سوال**: علمائي دين دي مسئلې باره کښې څه فرمائی چه يو سړې د مانبام په مونځ کښې خاص په هغه وخت کښې شامل شو چه امام دوه رکعته کړی وو. دا سړې به دصاحبينو د مذهب مطابق خپل باقی مونځ داسې پوره کوی چه دسلام نه پس مسبوق يو رکعت اوکړی قعده به کوی، او د تشهد نه پس به دخپل باقی رکعت دپاره پاڅی او د امام اعظم رحمه الله په مذهب باندې به د باقی

---

**﴿۱﴾ (ردالمحتار ص۳۴۷ جلد ا باب صفة الصلاة قبيل مطلب مهم فی تحقيق متابعة الامام)**

دوارو رکعتونو په مینځ کښې قعده نه کوی. اوس سوال دادې که یو سړې همیشه دپاره د صاحبینو په مذهب باندې عمل کوی لیکن چرته یو وخت کښې په اولنی رکعت باندې سهواً اودریدلو یعنی چه قعده ئې هیره شوه نو دې صورت کښې د سجده سهو څۀ حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی صاحبزاده محمد صالح ډوډهیرصوابی.... ۱۵\۱۲\۱۹۸۴ء

**الجواب:** چونکه علامه شامی وغیره دامام محمد رحمه الله قول صحیح ګرځولې دې کما فی ردالمحتار ص٤١٩ جلد١(١) اعتماد دامام محمد رحمه الله په قول باندې دې.نو په مذکوره صورت کښې به سجده سهو کول ضروری وی.وهوالموفق

## د پنځم رکعت نه چه تشهد د پاره واپس شی او سجده سهو اونه کړی نومونځ واجب الاعاده دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د آخری تشهد په ځائې امام د پنځم رکعت دپاره اودریږی اومقتدی ورته فتحه ورکړی اوامام سمدستی د تشهد دپاره واپس شی اوسجده سهو هم هیره کړی نوپه دې صورت کښې مونځ کیږی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی عبدالرؤف شین باغ خورد اټک... ۵\۱۹\۱۹۹۰ء

**الجواب:** دا مونځ واجب الاعاده دې.په صورت مسئوله کښې سجده سهو لازمیږی.رد المختار وغیره، (٢) وهوالموفق

---

﴿١﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله: والمسبوق من سبقه الامام بها او ببعضها وهو منفرد ...... ويقضى اول صلاته فى حق قراة وآخرها فى حق تشهد فمدرک رکعة من غير فجر ياتى بركعتين بفاتحة وسورة وتشهد بينهما وبرابعة الرباعى بفاتحة فقط ولا يقعد قبلها . قال الشامى( تحت قوله ويقضى اول صلاته فى حق قراة) وفى الفيض عن المستصفى لو ادركه فى ركعة الرباعى يقضى ركعتين بفاتحة وسورة ثم يتشهد ثم ياتى بالثلاثة بفاتحة خاصة عند ابى حنيفة وقال ركعة بفاتحة وسورة وتشهد ثم ركعتين اولاهما بفاتحة وسورة وثانيتهما بفاتحة خاصة وظاهر كلامهم اعتماد قول محمد .
(فتاوىٰ شاميه ص ٣٤١ جلد ١ باب الامامة مطلب فى المسبوق والمدرک واللاحق)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصكفى رحمه الله: وتعاد وجوبا...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

**په مونځ کښې بغیروجې نه قصداً سجده سهو کولوسره مونځ کښې نقصان نه راځي**

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که یو سړې بغیر ضرورته یعنی بغیر د سهو اونسیان نه قصداً عمداً سجده سهو اوکړی نوآیا مونځ به صحیح وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی حاجی محمد قاسم عزیز بټهی روډ نوشهره صدر... ۱۷\۱۱\۱۹۹۰ء

**الجواب**: دا سړې به د سلام اړولو سره د مونځ نه اوځی او مونځ به ئې پوره شې نوبې ځایه سجده سهو کولو سره دده مونځ ته نقصان نه رسیږی. وهوالموفق

**سجده سهو هیره شی نو دمونځ اعاده واجب ده اود مونځ دواړه سجدې فرض دی**

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه (۱) په یو مونځ گذار باندې سجده سهو لازم شوې ده لیکن سجده سهو ترې هیره شوه سلام ئې اوگرځولو. دجمات نه بهر اووتلو خبرې اترې ئې اوکړې ناڅاپه ورته یاد شو چه سجده سهو ئې پریخې ده. نواوس د مونځ اعاده واجب ده که نه؟
(۲) په مونځ کښې یوه سجده فرض ده یا دواړه فرض دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاضی جبرائیل غورزئی پایان کوهاټ.... ۲۴\شعبان ۱۴۰۹ھ

**الجواب**: (۱) په ده باندې اعاده واجب ده فرض نه ده.

**لانه ترک الواجب وهی سجده السهو کما فی ردالمحتار ص ۳۰۹ جلد ۱ باب السهو، وهل تجب الاعاده بترک سجود السهو لعذر کما لو نسیه والذی یظهر الوجوب کما هو مقتضی اطلاق الشارح لان النقصان لم ینجبر بجابر**

**(بقیه حاشیه) فی العمد والسهو ان لم یسجد له وان لم یعدها یکون فاسقا آثما و کذا کل صلاة ادیت مع کراهة التحریم تجب اعادتها.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص ۳۳۶،۳۳۷ جلد ۱ کل صلاة ادیت مع کراهة التحریم تجب اعادتها باب صفة الصلاة)**

وان لم یالم بترکه فلیتامل ﴿۱﴾.
(۲) په ټولو معتبرات فقه کښې لیکلی دی چه دواړه سجدې فرض دی.﴿۲﴾ فلیراجع. وهو الموفق

## په نفل مونځ کښې سجده سهو،آخری قعدې نه د پاڅیدلو او د نابالغه مونځ کونکی مخې ته د تیریدلو مسئلې

**سوال:** علمائې دین لاندینو مسئلو باره کښې څه فرمائی:
(۱) په نفل مونځ کښې سجده سهو لازمیږی یا نه؟
(۲) چه د مونځ په سنتو کښې داسې الفاظ اووئیلې شی چه دهغې په معنی کښې تغیرفاحش واقع شی نو مونځ فاسدیږی یا نه؟
(۳) آخری قعده کښې تشهد لوستلونه پس په هیره سره اودریدلو اود رکوع کولونه مخکښې ورته یاد شی نو دوباره به په قعده کښې تشهد لولی یا نه؟
(۴) د نابالغه مونځ کونکی مخې ته تیریدل جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا
المستفتی:امان الله بډھ بیرپشاور....۱۹۸۹ء\۱۳\۳۰

**الجواب:** (۱) دسهوې اوسجده سهوې حکم په فرض اونفل مونځ کښې یوشان دې.﴿۳﴾ (۲) د مونځ په مفسداتو کښې تفاوت نه وی.﴿۴﴾ (۳) درود شریف نه به شروع کوی.﴿۵﴾

---

﴿۱﴾(ردالمحتار ص۳۳۷جلد ۱ باب صفة الصلاة مطلب واجبات الصلاة)
﴿۲﴾ وقال فی الهندیه: (ومنها السجود) السجود الثانی فرض کالاول باجماع الامة (فتاوىٰ هندیه ص ۷۰ جلد ۱ الباب الرابع فی صفة الصلاة )
﴿۳﴾قال العلامة الحصکفی رحمه الله: والسهو فی صلاة العید والجمعة والمکتوبة والتطوع سواء. (الدر المختارعلی هامش ردالمحتار ص۵۵۲جلد ۱ باب سجود السهو)
﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: السنة فی تسبیح الرکوع سبحان ربی العظیم الا ان کان لا یحسن الظاء فیبدل به الکریم لئلا یجری علی لسانه العزیم فتفسد به الصلاة کذا فی شرح درر البحار فلیحفظ. (ردالمحتار ص۳۶۵ جلد ۱ مطلب فی اطالة الرکوع للجائی باب صفة الصلاة)
﴿۵﴾قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله عادسلم) ای عاد للجلوس لما مر ان مادون الرکعة محل للرفض وفیه اشارة الی انه لا یعید التشهد وبه صرح فی البحر.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۵۵۳جلد ۱ باب سجود السهو)

(۴) ممنوع دی.(۱) وهو الموفق

## که سجده پاتې شی او رکوع کښې یاده شی نوڅه به کوی؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که د مونځ ګذار نه یوه سجده پاتې شی او رکوع ته اورسیدو چه ورته یاد شو، نوآیا هغه رکوع اوکړی او قومه اوکړی بیا درې سجدې اوکړی او په آخره کښې سجده سهو اوکړی او یا ددې د اداکولو څه طریقه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق ای۲۳۲۱ راولپنډی....۱۳\۱۱\۱۹۷۲ء

**الجواب:** که رکوع کښې یاد زاتلو سره سجدې ته د رکوع نه لاړشی نوبیا هم څه حرج نشته.(فی القول الاصح) (ردالمحتار ص۴۳۱ جلد۱) (۲) وهوالموفق

## د سجده سهوکونکی امام د اولنی سلام سره د مسبوق اودریدل د واجبو پریخودل دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مسبوق د امام د اولنی سلام شروع کولو سره اودریږی (برابره خبره ده که دامام په سجده سهو کولو باندې واپس راشی اوپه ده باندې سجده سهو لازم نه وی نو رانشی نو دده اولنی سلام ګرځولو سره د باقی مونځ دپاره) اودریدل خلاف سنت دی یا خلاف واجب؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق محله قطب الدین راولپنډی ....۱۳\۱۱\۱۹۷۲

---

(۱) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وان اثم المار لحدیث البزار لو یعلم المار ماذا علیه من الوزر لو قف اربعین خریفا فی ذلک المرور. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص۴۷۰ جلد ۱ لا تفسد باب مایفسد الصلاة وما یکره فیها)

(۲) قال العلامه ابن عابدین رحمه الله: لو ترک سجدة من رکعة لم تذکرها فیما بعدها من قیام او رکوع او سجود فانه یقضیها و لا یقضی مافعله قبل قضائها مما هو بعد رکعتها من قیام او رکوع او سجود بل یلزمه سجود السهو فقط.

(ردالمحتارهامش الدرالمختارص ۴۳۱ جلد ۱ باب صفة الصلاة)

**الجواب**: په ترکِ واجب کښې مبتلا شوې دې (ردالمختار ص۵۵۹ جلد۱)**(۱)** چه کله بغیر ضرورته وی. وهوالموفق

## د اخترونو په مونځونو کښې د کثرت جماعت په وجه د سجده سهو نه کولوحکم

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه داخترونو په مونځ کښې تکبیرات زوائد چه واجب هم دی، داپه دویم رکعت کښې اونه وائی او رکوع ته لاړشی. نودې صورت کښې سجده سهو واجب شوې ده یا نه؟ اوکه سجده سهو اونکړی نو مونځ فاسد شو یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری محمد افضل فاروقی واه کینټ....۱۲\اگست۱۹۸۴ء

**الجواب**: په دې امام سجده سهود واجب وه لیکن د اختر مونځ کیدلو په وجه ساقط ده. (شامی) **(۲)** وهوالموفق

## په سجده سهو کښې به یوطرف ته سلام گرځوی یا دواړو طرفونو ته؟

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که یو سړې دسجده سهو دپاره دواړو طرفونو ته سلام اوگرځوی نوآیا مونځ به صحیح وی؟ حال داچه مفتی اعظم هندوستان مفتی کفایت الله صاحب دعدم جواز اوحضرت تهانوی صاحب د جواز قائل دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمداسماعیل شریک موقوف علیه دارالعلوم حقانیه.۱۴\شوال ۱۴۰۵ھ

---

**﴿۱﴾** قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله وکره تحریما) ای قیامه بعد قعود امامه قدر التشهد لو جوب متابعته فی السلام. (ردالمحتار ص ۴۴۲ جلد ۱ مطلب فیما لو اتی بالرکوع او السجود او بهما مع الامام او قبله او بعده باب الامامة)

**﴿۲﴾** قال العلامه حصکفی: والسهو فی صلوة العید والجمعة والمکتوبة والتطوع سواء والمختار عند المتاخرین عدمه فی الاولین لدفع الفتنة کمافی جمعة البحر واقرة المصنف وبه جزم فی الدرر، قال ابن عابدین شامی: الظاهر ان الجمع الکثیر فیما سواهما کذلک کما بحثه بعضهم وکذا بحثه الرحمتی الخ. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص ۵۵۲ جلد ۱ باب سجود السهو)

**الجواب:** صاحب دهدايې دواړو طرفونو ته سلام ګرځول مختار کړی دی. لیکن جمهور علماء صرف یو طرف ته سلام ګرځول مختار کړی دی. (کما فی ردالمحتار ص۵۱۸ جلد۱ فلیراجع) (۱)

**نوټ:** په دې حکم کښې د مقتدی او منفرد وغیره فرق منقول نه دې وهو الموفق

## په وتروکښې د فاتحې نه پس د قنوت د پاره لاسونه اوچت کړل نو سورت ونیل وریاد شو او سورت ئې اولوستلو نوسجده سهو واجب نه ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که وتر کونکې دریم رکعت کښې سورت فاتحه اولولی او بیا لاسونه اوچتوی چه الله اکبر اووائی. بیا ورته ضم د سورت یاد شی او سورت اولولی او بیا لاسونه اوچت کړی او قنوت شروع کړی نو دې صورت کښې به سجده سهو واجب وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: تنګ اسلاف اصلاح الدین ډی آئی خان. یکم ربیع الاول۱۴۰۲ھ

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله واحد) هذا قول الجمهور منهم شيخ الاسلام وفخر الاسلام وقال في الكافي انه الصواب وعليه الجمهور واليه اشار في الاصل الا ان مختار فخرالاسلام كونه تلقاء وجهه من غير انحراف وقيل يأتي بالتسليمتين وهو اختيار شمس الائمة وصدر الاسلام اخي فخرالاسلام وصححه في الهداية والظهيرية والمفيد والينا بيع كذا في شرح المنية قال في البحر وعزاه اى الثاني وفي البدائع الى عامتهم فقد تعارض النقل عن الجمهور (قوله عن يمينه) احتراز عما اختاره فخرالاسلام من اصحاب القول الاول كما علمته وفي الحلية اختار الكرخي وفخر الاسلام وشيخ الاسلام وصاحب الايضاح ان يسلم تسليمة واحدة ونص في المحيط على انه الاصوب وفي الكافي على انه الصواب قال فخرالاسلام وينبغي على هذا ان لا ينحرف في هذا السلام يعني فيكون سلامه مرة واحدة تلقاء وجهه وغيره من اهل هذا القول على انه يسلم مرة واحدة عن يمينه خاصة ، والحاصل ان القائلين بالتسليمة الواحدة قائلون بانها عن اليمين الا فخرالاسلام منهم فانه يقول انها تلقاء وجهه وهو المصرح به في شروح الهدايه ايضا كالمعراج والعناية والفتح.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ص۵۴۵ جلد۱ باب سجود السهو)

**الجواب:** په صورتِ مسئوله کښې د قواعدو مطابق سجده سهو نه واجبیږی.(۱) وهوالموفق

## که په نفلو او تراویح کښې د دوه رکعته نیت اوکړو اوڅلورئې اداکړل نوسجده سهو واجب نه ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوحافظ قرآن د دوه رکعته نیت اوکړو اوڅلور رکعته ئې اداکړل اوپه آخرکښې ئې سجده سهو اوکړه آیا دا مونځ اوشو؟ دغه شان د څلورو رکعتو نیت کولو نه بغیر څلور رکعته کول صحیح دی یانه؟ اوسجده سهو وغیره واجب ده یانه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سبزعلی باجوړایجنسی....۱۵\شوال ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** په نفلو او تراویح کښې د دوه رکعتو اوڅلور رکعتو دنیت حکم یوشان دې، دا مخالفت څه نقصان ورکونکې مخالفت نه دې.(فلیراجع الی شرح الکبیر ص۳٤۰، ۳٤۱) (۲) وهوالموفق

---

(۱) سجده سهو په یو رکن کښې په دومره تاخیرکولوسره واجب کیږی چه په هغې کښې مسنون طریقې سره د مونځ ورکوټې رکن مثلاً سجده یا رکوع اداشی اوپه صورتِ مسئوله کښې صرف د ,,الله اکبر،، په اندازې وئیلو وخت لګیدلې دې چه په مسنون سجده یا رکوع باندې د خرچ کیدلو والا وخت نه ډیرکم دې،لهذا په دې تقدیم اوتاخیرکښې سجده سهو واجب نه ده.

**قال العلامه سید احمد الطحطاوی: ومن الواجب تقدیم الفاتحة علی السورة وان لا یؤخر السورة عنها بمقدار اداء رکن وقال فی آخر الباب ولم یبنوا قدر الرکن وعلی قیاس ما تقدم ان یعتبر الرکن مع سنته وهو مقدر بثلاث تسبیحات.**

**(الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص۲٦۰،۲٧٤ باب سجود السهو)**

**(۲) قال العلامه ابراهیم الحلبی: وان شرع فی التطوع بنیة الاربع ای بنیة ان یصلی اربع رکعات ثم قطع ای افسدها شرع فیه قبل اتمام شفع لایلزمه الا شفع ای الاقضاء شفع عند ابی حنیفة ومحمد خلافاً لابی یوسف فان عنده یلزمه قضاء اربع فی روایة وانما قیدنا بقبل اتمام شفع لانه لو افسد بعد اتمامه فان کان قبل القیام الی الثالثة یلزمه شفع واحد عنده وعندهما لا یلزم شیئ وان کان بعد القیام الیها لزمه قضاء شفع اتفاقا والاصل ان کل رکعتین من النفل صلاة علی حدة والقیام الی الثالثة کتحریمة مبتدأة اتفاقا.**

**(غنیة المستملی المعروف بالکبیری ص۳٧٧ فصل فی النوافل)**

## چه آخری قعده پریږدی او دوه(۲) رکعته ورسره ختم کړی نو سجده سهو کول ضروری دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې دَڅلور رکعته فرض مونځ نیت اوتړی بیا آخری قعده هیره کړی او پاڅی اوبیا دوه رکعته نور ورسره یوځائې اومونځ پوره کړی آیا داسې کول به صحیح وی؟ اودَ سجده سهو څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی:محمد عظیم ،عبدالخیلی لکی مروت...۱۹/مارچ ۱۹۸۴ء.

**الجواب:** دامونځ صحیح دې او سجده سهو کول ضروری دی.﴿ ۱ ﴾ .(ماخوذ ازشرح کبیری ص ۳۷۸).اودا شپږ واړه رکعتونه ټول په ټوله نفل دی.البته که دې سړی په څلورم رکعت باندې قعده قصداً پریخې وی نو سجهده سهوه پرې واجب نه ده.﴿ ۲ ﴾ . وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحلبی: وان سها عن القعدة الاخیرة فی ذوات الاربع وقام الی الخامسة یعود الی القعدة مالم یسجد للخامسة لانها فرض فرفض لاجلها عند التمکن من اصلاحها ماهو محل الـرّفض وهو مادون الرکعة ویتشهد ویسلم ویسجد للسهو لتاخیر القعدة وان قید الرکعة الخامسة بالسجدة بطل فرضه وتحولت صلوته نفلا عند ابی حنیفة وابی یوسف...... وعلیه ان یضم الیها ای الی الخامسة رکعة سادسة عندهما خلافا لمحمد لیصیر متنفلا بست رکعات لان التنفل بالوتر غیر مشروع عندنا......ویسجد للسهو وهو قول بعض المشائخ وفی النهایة والاصح انه لا یسجد وکذا قال ابن الهمام الصحیح انه لا یسجد لان النقصان بالفساد لا ینجبربالسجود وقد یقال الفساد لصفة الفریضة لا لاصل الصلاة فینجبر النقصان الواقع فی اصلها لترک الواجب سهواً بالسجود.(غنیةالمستملی المعروف بالکبیری ص۴۳۳ فصل فی سجود السهو)

﴿۲﴾ قال العلامه شرنبلالی: ولا یسجد فی الترک العمد للسهو لان سجود السهو عرف جابراً للفائت سهو او شرعا والعمد اقویٰ فلا یجب سجود السهو عنه ولانه متعمد فیستحق التغلیظ بالاعادة ثم بین ضعف القول بالسجود لما ترک عمدا بصیغة التمریض بقولنا قیل ......سئل فخر الاسلام البدیعی کیف یجب العمد؟ قال ذلک سجود العذر لاسجودالسهو کذا فی شرح المقدسی عن الولوالجی. (امداد الفتاح شرح نورالایضاح ص ۵۱۱ مطلب فی سجود العذر للعمد فی مواضع)

## دَ مغرب او وترو قضا احتیاطاً څلور څلور رکعته کولوصورت کښې سجده سهو کول خلافِ قاعده دی

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې خلق دَنامعلومه مغرب او وترو مونځونو قضا کوی او دَ دريو په ځائې څلورر کعته ادا کوی نو آخره کښې بعضې خلق سجده سهو کوی.آيا دا سجده سهو صحيح ده؟ بينوا توجروا.

المستفتی:عبدالرحيم جلبئ صوابی.

**الجواب:** که دا سجده سهو چرته په معتمد کتاب باندې حمل نه وی نو دا سجده دَقصداً کيدلو په وجه خلافِ قاعده ده.(١).وهوالموفق.

---

**﴿١﴾ قال العلامة الشرنبلالی:ولايسجد فی الترک العمد للسهو، لان سجود السهو عرف جابراً للفائت سهو او شرعا والعمد اقویٰ فلاينوب سجود السهو عنه ولانه متعمد فيستحق التغليظ بالاعادة.**

**(امداد الفتاح شرح نورالايضاح ص ٥١١ مطلب فی سجود العذر للعمد)**

# باب صلوة الـــمریض

## دَ معذور د پاره دَ مخکښې اودس نه پس قطره نه وتلو په صورت کښې دغې اودس سره بل مونځ کول

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَبنده نه تللو راتللو وخت کښې یا دَخپوپه سر کیناستلو وخت کښې دَمتیازو قطرې غورځیږی،نو په دې وجه دَهرمونځ دپاره نورې اودس کووم،لیکن کله کله داسې اوشی چه دَیو مونځ نه بل مونځ پورې څه قطره نه اوځی.نوچه کله ماته دا یقین وی چه څۀ قطره نه ده .وتلې نو په دې اولنی اودس سره دَبل وخت مونځ کولې شم یانه؟ بینوا توجروا.

المستفتی:فیض الوهاب کاکاخیل اضاخیل پایانوشهره...۲۲/۲/۱۹۸۹ء.

**الجواب**:چه کله دَاودس کولونه پس قطره اونه اوځی نو په دې اودس سره بل مونځ کولې شي.(۱) اوکه ته یو نیم انچ پلنه او شپږ انچې اوږده کپړه دآله تناسل نه تاؤ کړې او یو درمیانی شان غوټه ورته ورکړې نو تاته به ډیر ارام ملاؤشی.وهوالموفق.

## دَ بلااختیاره قهقه کونکی امام اقتداء جائز نه ده

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې دَدیرشو ، څلویښتو کالونه دَامامت فرائض اداکوی.دَڅه مودې نه په مونځ کښې بلا اختیاره اوبې وجه قهقهه یا ضحک راځی.نوآیادده امامت جائز دې؟ او دده دَ انفرادی مونځ څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی:جهانزیب خان گهاس منډی ډی آئی خان......۷/شوال ۱۴۰۱هـ.

---

**﴿۱﴾ وینقضه خروج کل خارج نجس بالفتح ویکسر منه ای من المتوضی الحی معتادا اولا من السبیلین اولا الی ما یطهر بالبناء للمفعول ای یلحقه ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**

**الجواب:** بې اختیاره قهقهه یا ضحک کونکې معذوره نه دې (۱). الاقی قول للشافعیه لم یرتضی به الحافظ ابن حجر فی شرح البخاری (۲). دَده پسې اقتداء کول جائز نه دی مناسب دا دی چه داسې کس مختصر مونځ کوی چه دَشیطان غالب راتللو نه مخکښې مخکښې مونځ ختم وی. وهو الموفق.

## په لاسو خپو دَ شل کس دَ مونځ طریقه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَایکسیډنټ په وجه

---

(بقیه حاشیه) حکم التطهیر ثم المراد من السبیلین مجرد الظهور من اضافة الصفة الی الموصوف ای الظهور المجرد عن السیلان فلو نزل البول الی قصبة الذکر لا ینقض لعدم ظهوره. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۹۹، ۱۰۰ جلد ۱ مطلب نواقض الوضوء)

﴿۱﴾ قال العلامه عبد الرحمن الجزری: الحنفیة قالوا: القهقهة فی الصلاة تنقض الوضوء وقد وردت فی ذلک احادیث منها ما رواه الطبرانی عن ابی موسیٰ قال: بینما رسول اللهﷺ یصلی بالناس اذ دخل رجل فتردی فی حفرة کانت فی المسجد وکان فی بصره ضرر فضحک کثیر من القوم وهم فی الصلاة، فامر رسول اللهﷺ من ضحک ان یعید الوضوء ویعید الصلاة، والقهقهة هی ان یضحک بصوت یسمعه من بجواره فاذا وقع منه ذلک انتقض الوضوء ولو لم یطل زمن القهقهة، بخلاف ما اذا ضحک بصوت یسمعه هو وحده ولا یسمعه من بجواره فان وضوءه لا ینتقض بذلک بل تبطل به الصلاة وانما ینتقض الوضوء بالقهقهة اذا کان المصلی بالغا ذکراً کان او امرأة عامداً کان او ناسیاً الخ.

(الفقه علی المذاهب الاربعة ص ۸۳ جلد ۱ مبحث نواقض الوضوء)

﴿۲﴾ قال الحافظ بن الحجر العسقلانی: قوله (وقال جابر) هذا التعلیق وصله سعید بن منصور والدارقطنی وغیرهما وهو صحیح من قول جابر واخرجه الدارقطنی من طرق اخریٰ مرفوعا لکن ضعفها والمخالف فی ذلک ابراهیم النخعی والاوزاعی والثوری وابو حنیفة واصحابه قالوا: ینقض الضحک اذا وقع داخل الصلاة لا خارجها قال ابن المنذر: اجمعوا علی انه لا ینقض خارج الصلاة، واختلفوا اذا وقع فیها فخالف من قال به القیاس الجلی وتمسکوا بحدیث لا یصح وحاشا اصحاب...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

زما دا حال شوي چه دَنامه نه لا ندې بالکل بې دمه شوې یم .دَهغه وخت نه دَپائپ په ذریعې متیازې ویستلې کیږی.دَلاس په ذریعې ډوډئ اوبه پخپله خوړلې څکلې نه شم،په ډډه باندې هم پخپله نه شم اوړیدلې.دَمتیازو دَنالئ سره ۲۴ گهنټې پائپ لگیدلې وی.او پائپ بیاپه بوتل کښې پروت وی یو څاڅکی سره بوتل ډ کیږی.نودې صورت کښې به زما دَ مونځ څه کیږی.اوپه کومې طریقې سره مونځ کووم.په وزن کښې دَ والدینونه درونډ یم اَاوړیدلو په وخت کښې درې کسان لگیا وی،په بل چاسره استنجاء او اودس کول هم ډیرزیات گران کار دې تیمم هم نه شم کولې.اوداهم وائی چه قبلې طرف ته دَمخ کولو به څه کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: سعید سلطان بام خیل صوابی .... ۱۹۸۴ء/۲/۴.

**الجواب**:ته بغیر اودسه مونځ کولې شې.﴿۱﴾ .اوکه ممکن وی نو دکټ خپې قبلې طرف ته کړئ اویاقبله ته په اشارې سره مونځ کوئ.﴿۲﴾ .وهوالموفق.

---

(بقیه حاشیه) رسول اللهﷺ الذین هم خیر القرون ان یضحکوا بین یدی الله تعالیٰ خلف رسول اللهﷺ انتهیٰ، علی انهم لم یأخلوا بعموم الخبر المروی فی الضحک بل خصوه بالقهقهة. (فتح الباری شرح صحیح البخاری ص۵۲۲ جلد۱ باب من لم یرا الوضوء الا من المخرجین)

﴿۱﴾قال العلامة الحصکفی: والمحصور فاقد الماء والتراب.....وکذا العاجز عنهما لمرض یؤخرها عنده وقالا یتشبه بالمصلین وجوبا به یفتی والیه صح رجوعه ای الامام کما فی الفیض وفیه ایضا مقطوع الیدین والرجلین اذا کان بوجهه جراحة یصلی بغیر طهارة ولا یتیمم ولا یعید علی الاصح. (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص۱۸۵ جلد۱ مطلب فاقد الطهورین باب التیمم)

﴿۲﴾قال العلامة الحصکفی: من تعذر علیه القیام ای کله لمرض حقیقی وحده ان یلحقه بالقیام ضرر به یفتی قبلها او فیها ای الفریضة او حکمی بان خاف زیادته او بطُ برئه بقیامه او دوران رأسه اووجد لقیامه الماً شدیداً او کان لو صلی قائما سلس بوله، صلی قاعداً ولو مستندا الی وسادة اوانسان فانه یلزمه ذلک علی المختار کیف شاء علی المذهب لان المرض اسقط عنه الارکان فالهیئات اولیٰ، وایضا وان تعذر القعود ولو حکما او ما مستلقیا علی ظهره ورجلاه نحو القبلة غیر انه ینصب رکبتیه لکراهة مد الرجل الی القبلة ویرفع رأسه یسیرا لیصیرا وجهه الیها.

(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص ۵۵۹،،۵۶۲ باب صلاة المریض)

# باب سجود التلاوة

## دَ لوئي کور په مختلفو حصوکښې دَسجدې دَ آیت دَ تلاوت کولو حکم

**سوال:** حضرت مولانا مفتی محمدفریدصاحب صدر دارالافتاء دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! که یو سړې دَجمات په دننه حصه کښې یو آیت سجده تلاوت کړی بیاهم دغه آیت دَجمات په بهرنئ یا پورتنئ حصه کښې یا دَجمات په صحن کښې بیا اووائی نوپه ده باندې یوه سجده تلاوت واجب ده.لیکن چه شرقاً غرباً څلویښتو لاسونه یا دَهغې نه لویه کمره وی یا دکشتئ اوریل په ډبه کښې (چله کله کشتئ اودَ ریل ډبه څلویښت لاسونه یادَهغې نه زیات وی) هلته دَغه آیت سجده باربار اووائی نودوه سجدې به واجب کیږی.آیا دا مسئله صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی:اکرام الحق نشترآبادراولپنډی....۳/جون ۱۹۷۰ء.

**الجواب:** دامسئله صحیح ده.(صرح به العلامة الشامی ص۷۲۷و۷۲٦،جلد۱) لیکن دَڅلویښتو لاسونو حدمقررکول دلته منصوص نه دی.دامقدار دَمونځ کونکی مخې ته دَتیریدلو په مسئله کښې مراد دې.(۱) (ردالمحتار ص ۵۹۳ جلد ۱) پس په سجده تلاوت دَورکوټی یا غټ جمات او کور فرق نشته اوکه ډیر زیات غټ ځائې وی لکه شاهی مسجد نوهلته به متعدده سجدې واجب وی.(۲) وهوالموفق.

---

(۱) قال ابن عابدین: (قوله ومسجد صغیر) هو اقل من ستین ذراعا وقیل من اربعین وهو المختار کما اشار الیه فی الجواهر قهستانی.

(ردالمختار هامش الدرالمختار ص۲٦۹ جلد۱ باب مایفسد الصلاة وما یکره فیها)

(۲) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله بخلاف زوایا مسجد) ای ولو کبیر علی الاوجه وکذا البیت وفی الخانیة والخلاصة الا اذا کانت الدار کبیرة کدارالسلطان.

(ردالمختار هامش الدرالمختار ص۵۷۳ جلد۱ باب سجود التلاوة)

## چه په تراویح کښې آیت سجده اولولی اوسجده اونکړی نو آیا دا د مونځ په سجدې سره ادا کیږی

**سوال**: علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې په تراویح کښې دَسجدې آیت اولولی اوسجده اونکړی او وائی چه دَرکعت دَسجدو سره ادا شوه نوآیا دا ادا صحیح ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی:فضل ربی باړه شیخان ۱۳ رمضان ۱۴۱۰هـ

**الجواب**: چه کله دَسجده تلاوت آیت لوستلونه پس متصل یا دوه درې آیتونو لوستلو نه پس تداخل اوکړې نو مشروع دی.(شامی) (۱) وهوالموفق

## بغیر اودسه سجده تلاوت جائز نه ده

**سوال**: علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه سجده تلاوت بغیر اودس نه جائز ده یا نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی:مولوی عنایت الله خوازه خیله سوات.......۱۳۸۹هـ ء

(۱)واضحه دې وی چه سجده تلاوت صلا تیه دَمونځ نه بهر نشی ادا کولې هم په مونځ کښې به ادا کیدې شی که مونځ ګزارې مستقل سجده نه کوی اوپه رکوع او سجده تلاوت کښې تدخل کوی نو هم جائز دی البته دې دپاره نیت ضروری دې دَنیت نه بغیر به په رکوع کښې سجده تلاوت جائز نه وی.په درمختار کښې دی وتؤدی برکوع صلاة اذا كان الركوع على الفور من قراءة آية او آيتين وكذاالثلاث على الظاهر كما فى البحران نواه اى كون الركوع لسجود التلاوة على الراجع. (الدرالمختارص ۵۷۱ جلد ۱ باب سجودالتلاوة)او دَدې نه داهم معلومه شوه چه دآیت سجده لوستلو نه پس رکوع کولو ته درې آیاتو لوستلونه زیاته فاصله نه وی ګنې بیاپه رکوع کښې نیت صحیح نه دې

**قال حسن بن عمار: ويجزى عنها اى عن سجدة التلاوة ركوع الصلاة ان نواها اى نوى ادائها فيه' وفيه او انقطاعه بان يقرأ اكثرمن آيتين بعد آية السجدة بالاجماع. (مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى ص ۲۶۳ باب سجود التلاوة)**

ناجائز ده.

**الجواب:** سجده تلاوت بغیر اودسه ناجائز ده.
**قال فی البدائع واما شرائط الجواز فکل ما هو شرط جواز الصلوة من من طهارة الحدث وهی الوضوء والغسل وطهارة النجس وهی طهارة البدن والثوب ومکان السجود والقیام والقعود فهو شرط جواز السجدة لانها جزء من اجزاء الصلوٰة فکانت معتبرة بسجدات الصلوٰة انتهٰی.** ﴿۱﴾ (ص ۱۸۶ جلد ۱)

دغه شان دا شاذ مذهب دې چه دَابن عمراو امام شعبی رضی الله عنهما نه مروی دې لهذا په دې باندې عمل کول اولویه لار پریخودل نه دَعقل تقاضاده او نه دَشریعت.قال العلامة العینی فی عمدة القاری لم یوافق ابن عمراحدعلی جواز السجود بغیروضوء الاالشعبی ص۵۰۹ جلد۳،بلکه دَابن عمررضی الله تعالی عنهما نه دَدې قول معارض قول موجود دې چه هغې ته ترجیح ورکول مذهبِ منصور دې.قال البدر العینی فی العمده ص۵۰۹ جلد۳روی باسناد صحیح عن اللیث عن نافع عن ابن عمررضی الله عنهما قال لا یسجدالرجل الاوهو طاهر،په دې مسئله کښې دَ مودودی صاحب دَقول هیڅ اعتبار نشته.فافهم.

## ریډیو یا ټیلی ویژن په ذریعې سره دَسجده تلاوت آیت اوریدل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو سړې دَ ریډیو ټیلی ویژن په ذریعې سره دَسجدې آیت واوری نو په ده باندې سجده تلاوت واجب ده یا نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فقیرمتعلم بهرت بنوں رمضان المبارک..........۱۳۸۹ھ

**الجواب:** چونکه د ریډیو وغیره ذریعې سره عکس اوریدلې شی﴿۲﴾ لهٰذا د

---

﴿۱﴾ **(بدائع الصنائع ص ۱۸۶ جلد ۱ فصل فی شرائط جواز السجدات)**
﴿۲﴾دَ ریډیو ټی وی په ذریعې سره ریکارډ شوی تلاوت باندې دَعدمِ وجوب سجده حکم اتفاقی دې البته په دې کښې اختلاف چه ددې په ذریعې سره اصل آواز اوریدلې کیږی یا عکس دې.نو دَاصل کیدلو په صورت کښې به براهِ راست تلاوت کیدلو په وجه به دبعضو په نزد سجده تلاوت واجب وی لیکن راجح داده چه دا اصل آواز نه دې﴿بقیه حاشیه به بل مخ﴾

ریډیو وغیره ذریعې سره د سجدهٔ تلاوت په اوریدلو سجده نه واجبیږی.
**یدل علیه مافی الدرالمختار ﴿۱﴾ ولا تجب بسماعه من الصدیٰ والطیر (هامش ردالمختار ص۵۱۷ جلد ۱) وهوالموفق**

## په لاؤډ سپیکر د سجدې آیت اوریدلو سره سجده کول پکاردی

**سوال:** څه فرمائي علمائي دین دې مسئلې باره کښې چه د لاؤډ سپیکر په ذریعه د سجدې آیت اوریدلو سره سجدهٔ تلاوت کول پکاردی یا نه؟ ځکه چه دا آواز خود تلاوت کونکی آواز نه دې بلکه د لاؤډ سپیکر په ذریعې سره اوریدلې کیږی چه دا دآواز رسولو یوه آله ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله........ ۲۴ اکتوبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** دَ لاؤډ سپیکرباره کښې اختلاف دې چه ددې په ذریعې سره اصلی آواز رسولې شی یا عکس. نو احوط سجده کول دی. ﴿۲﴾ البته دَاقتداء دَ صحت دپاره دَمکان اتحاد یا اتصال دَصفونو شرط دې چه په دې مسؤله صورت کښې نیشته دې. وهوالموفق.

---

﴿بقیه حاشیه دتیرمخ﴾ دَمولانا مفتی شفیع رحمه الله مرتب شوې رساله "آلات جدیده کے شرعی احکام" کښې آله مکبرالصوت په باره کښې چه کوم تحقیقات شوې دی دَهغې خلاصه داده چه دَزېږ نه کیدلو والا تموج کښې په نورو ذریعو سره آواز پیدا کیدلې شی. چه دَځو واسطونه تیریږی دَریډیو مشین په ذریعې (دَبرقی تیز رفتارئ په وجه) په یو وخت اوریدلې کیږی. اودَنوې سائنس ماهران پخپله هم په دې کښې مختلف دی. بعضې ورته اصلی آواز وائی اوبعضې ورته مصنوعی وائی. بهرحال ددې تحقیقاتوپه رنړا کښې راجح داده چه دا اصل آواز نه دې ځکه چه دَوجوب سجده دپاره ضروری دی چه دَتلاوت کولو والا ئې پخپله واورې او ژبه پرې متحرکه شی چه هغه دَریډیو اوټی وی په صورت کښې متحقق نه دې. لهذا دَریډیو یا ټی وی په ذریعې سره به سجده تلاوت واجب نه وی. البته دَاختلاف په وجه باندې احتیاط په سجده کولو کښې دې که تلاوت کونکې براه راست وی. (ازمرتب).

**﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمختار ص۵۲۹ جلد ۱ باب سجود التلاوة)**

﴿۲﴾ د لاؤډسپیکرپه ذریعې سره چه کوم آواز کیږی په دې کښې راجح ﴿بقیه حاشیه به بل مخ﴾

## په لاؤډسپیکر باندې دَ سجده تلاوت آیت اوریدل

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه لاؤډ سپیکر په ذریعې سره دَسجده تلاوت آیت اوریدلو سره سجده واجب کیږی یا نه ؟ بینوا توجروا
المستفتی عبدالله...... ۲۴/اکتوبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** په ټولو اوریدونکو باندې به سجده واجب وی ځکه چه دا بظاهر دَمتکلم آواز دې ځکه چه دَ آذان اوریدلو سره اجابت بالقدم واجب کیږی. وهوالموفق.

## سجده تلاوت آیت په قلاره وئیل بهتر دی

**سوال:** (۱) که یو سړې دَسجده تلاوت آیت په اوچت آواز سره اووائی نو په اوریدونکو باندې به سجده واجب کیږی یا نه ؟ (۲) دَسجده تلاوت آیت په اوچت آواز وئیل پکار دی یا په قلاره آواز؟ بینوا توجروا.
المستفتی شاه اسماعیل مرزا ضلع اټک...........۱۵/جمادی الاول ۱۳۹۹ھ.

**الجواب:** (۱) واجب ده. هدایه (۲) په دې کښې توسع ده البته دَمصلحت په طور سره په قلاره آواز وئیل بهتر دی. (۲).وهوالموفق.

---

(بقیه حاشیه د تیرمخ) دامعلومیږی چه دادَمتکلم اصل آواز دې وجه داده چه دې کښې آواز اوچتولو دپاره ذریعې کمې استعمالیږی او دَفنی ماهرینوپه دې کښې اختلاف دې ه دا اصل آواز دې یا عکس لیکن اکثرماهرینو رائې داده چه دا بعینه دَمتکلم هغه آواز ې کوم چه دده دژبې نه ا وځی دَتفصیل دپاره آلاتِ جدیده کے شرعی احکام کتاب ولانامفتی محمد شفیع صاحب اوګورئ پس دې صورت کښې سجده تلاوت ؤډ سپیکرپه ذریعې سره اوریدلو سره واجب کیږی.(ازمرتب)

ا﴾ قال المرغینانی: والسجدة واجبة فی هذه المواضع علی التالی والسامع سواء قصد ماع القرآن اولم یقصد لقوله علیه السلام السجدة علی من سمعها وعلی من تلاها وهی ة ایجاب وهو غیرمقید بالقصد.
ایه علی صدر فتح القدیر ص۴٦۵، ٦٦٧ جلد ۱ باب سجود التلاوة)
﴾ قال ابن عابدین الشامی: (قوله واستحسن اخفاؤها) ..(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ عصر او فجر مونځ نه پس سجده تلاوت جائز ده

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ صلاة العصر او صلاة الفجر نه پس سجده تلاوت جائز ده یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمدازرم تبوک سعودیه عربیه......١٤٠١/٧/٧هـ

**الجواب**: جائز ده.(١) .وهوالموفق.

## آیا په یو مجلس کښې متعدد آیات سجده په تلاوت سره به متعدد سجدات واجب کیږی

**سوال**: علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو کس په یومجلس کښې دَسجده تلاوت مختلف آیتونه اولولی نویوه سجده به کول وی یا دَهر آیت دپاره به ځان ځانته سجده تلاوت ادا کول وی؟ بینوا توجروا.

المستفتی:فضل واحد پشه سالارزی باجوړ............١٩٨٤ء/١١/٧.

**الجواب**:آیتونوپه مقدار برابرسجدې کول ضروری دی.( ٢) .(شامی) بخلاف ماذا کرر آیة واحدة.وهوالموفق.

---

(بقیه حاشیه دتیرمخ) لانه لوجهر بها لصار موجبا علیهم شیئا ربما یتکاسلون عن ادائه فیقعون فی المعصیة فان کانوا متهئین جهربها بحرعن البدائع قال فی المحیط بشرط ان یقع فی قلبه ان لایشق علیهم اداء السجدة فان وقع اخفاها وینبغی انه اذا لم یعلم بحالهم ان یخفیها نهر.
(ردالمحتارهامش الدرالمختار ص٥٢٦ جلد ١ باب سجود التلاوة)

﴿١﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: لایکره قضاء فائتة ولو وترا اوسجدة تلاوة؛ وقال ابن عابدین: (قوله وسجدة تلاوة) لوجوبها بایجابه تعالیٰ لایفعل العبد کما علمته فلم تکن فی معنی النفل. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ص٢٧٦ جلد ١ مطلب یشترط العلم بدخول الوقت)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله ولو.... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ ټیپ رِیکارډنه سجده تلاوت اودَ ګانوبجانو اوریدلو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَټیپ ریکارډنه دَسجده تلاوت دآیت اوریدلو څه حکم دې ؟ که په دې سره سجده تلاوت نه واجب کیږی نو بیاګانې اوریدل ولې ناجائز دی چه داهم دَهغې په ذریعې سره وی که نه ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: ماسترعبدالمطلب.

**الجواب:** دَټیپ په ذریعې سره په تلاوت اوریدلوسره سجده تلاوت نه واجب کیږی. لان المسموع عکس الصوت لااصله.﴿۱﴾ اودَټیپ نه ګانې اوریدل جائزنه دی.لتساوی العکس بالاصل فی المناط ویشیرالیه حدیث کانه ینظر الیها رواه ابوداؤد ﴿۲﴾.وهوالموفق.

## دَ سجدهٔ تلاوت دَ لازم کیدلو راز

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په قرآن مجید کښې

---

**(بقیه حاشیه) کررها فی مجلسین تکررت) الاصل انه لایتکررالوجوب الا باحد امورثلاثة اختلاف التلاوة او السماع او المجلس اما الاولان فالمراد بهما اختلاف المتلو والمسموع حتی لو تلا سجدات القرآن کلها او سمعها فی مجلس اومجالس وجبت کلها.**

**(ردالمحتار هامش الدر المختار ص۵۷۳ جلد ۱ باب سجود التلاوة)**

**﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی رحمه الله: لاتجب بسماعه من الصدی والطیر' قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله من الصدی) هومایجیبک مثل صوتک فی الجبال والصحاری ونحوهما کما فی الصحاح.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ص ۵٦۹ باب سجودالتلاوة)**

**﴿۲﴾ عن ابن مسعود قال قال رسول الله ﷺ لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها کانه ینظر الیها' متفق علیه.(مشکوٰة المصابیح ٢٦٨جلد ۱ باب النظر الی المخطوطة)**

چه دَسجدو دآیتونو دی.په مونځ کښې یا دَمونځ نه بهر ددې په وئیلو یا اوریدلو سره سجده ولې لازمیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم.....

**الجــواب**: پیغمبر علیه السلام او صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین په دې ځایونو کښې سجده کړې ده.نو په دې ځایونو کښې سجده کول ضروری دی اودغه شان دغې ځایونو کښې دَمسلمانانو نه عبارتاً یا اشارتاً دَسجده کولو مطالبه وی.﴿۱﴾ .فقط.

---

﴿۱﴾ قال العلامه ابن الهمام: ومما يدل على الوجوب ان الله تعالىٰ وبخ من ترک السجود بقوله فما لهم لايؤمنون واذا قرئ عليهم القرآن لا يسجدون والتوبيخ لايكون الا بترک الواجب ولان آيات السجدة كلها دالة على الوجوب السجدة اعتزل الشيطان يبكى يقول يا ويله امر ابن آدم بالسجود فسجد فله الجنة وامرت بالسجود فابيت فلى النار والاصل ان الحكيم اذا حكى عن غير الحكم كلاما ولم يعقبه بالانكار كان دليل صحته فهٰذا ظاهر فى الوجوب مع ان آى السجدة تفيده ايضاً لانه ثلاثة اقسام قسم فيه الامر الصريح به وقسم تضمن حكاية استنكاف الكفرة حيث امروا به وقسم فيه حكاية فعل الانبياء السجود وكل من الامتثال والاقتداء ومخالفة الكفرة واجب الا ان يدل دليل فى معين على عدم لزومه لكن دلالتها فيه ظنية فكان الثابت الوجود لا الفرض والاتفاق على ان ثبوتها على المكلفين مقيد بالتلاوة لا مطلقا فلزم كذٰلک.

(فتح القدير ص٤٦٥، ٤٦٦ جلد ١ باب سجود التلاوة)

# مســائل شتــی

په دې عنوان کښې هغه مسئلې جمع کړې شوې دی چه حضرت مفتی صاحب دامت برکاته لیکلې اوپه سه ماهی (درې میاشتئ) الفرید کښې شائع شوې دی.دَسه ماهی الفرید جلد ۴شماره: ۱ ،نه تر جلد ۵ شماره ۴ پورې مسئلې جمع کولې شی او دَ مسائل شتی په عنوان سره دَفتاوی سره شامل کولې شی.(ازمرتب)

## دَمستوراتو په تبلیغی جماعت کښې دَمعتبر شرطونو سره وتل مصلحت دې

**سوال**: دَمستوراتو تبلیغ سنت دې یا بدعت؟

**الجواب**: په موجوده زمانه کښې دَمستوراتو تبلیغ دپاره وتل بدعت دې،په خیرالقرون کښې دامعمول نه وو.په خیرالقرون کښې به مستورات صرف دَجمات،حج او جهادی خدمت دپاره باقاعده وتلې.دَتبلیغ دپاره نه.البته په دې شرالقرون کښې دَمستوراتو باقاعده وتل بدعتِ سئیه نه دې بلکه مصلحت دې چه کله دَاصلاح او دین تربیت امید وی اودَمعتبروشرطونو نه مخالف نه وی یعنی دَخاوندانو یامحارمو رفاقت،دکورنی حقوقو عدم تعطل دَتعطر او زینت والا لباس نه اجتناب وی او سړو سره عدمِ اختلاط وی گنې نوبیاناجائز دی. وهوالموفق.

## دَ تبلیغی جماعت دَ مصطلح گشت حکم

**سوال**: تبلیغی خلق چه کوم مصطلح گشت کوی دې.ته دَصحابه کرامورضی الله عنهم اجمعین کاروائی آیا دا صحیح دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: دا ګشت دَتبلیغی حضراتو اصطلاح ده مونږ ته ددې اباحت معلوم دې ددې دَ سنتیت یا استحباب اصل راته نه دې معلوم.وهوالموفق.

## دَ یو نه زیاتو ښځو په ربع یا ثمن کښې حصې

**سوال**: ښځه دَخاوندنه ربع(څلورمه) یا ثمن (اتمه) حصه میراث اخلی نوکه دَیوسړی دوه یا درې یا څلور ښځې وی هغوی ته به څومره حصې ورکولې کیږی؟ بینوا توجروا.

**الجواب**:دا ربعې یا ثمن به په ټولو ښځوعلی قدرالرؤس تقسیمیږی.

**کما فی الهندیة (ص ٤٥٠ جلد٦) والزوجات والواحدة یشترکن فی الربع والثمن وعلیه الاجماع ﴿١﴾ وفی معین الحکام (ص ٤٢٤) واحدة او اکثریشترکن فی ذلک ﴿٢﴾ وهوالموفق**

## دَ پیر مونځ کول او دَ مریدورته شاته نه ببوزې وهل مکروه نه دی

**سوال**: یوپیرصاحب مونځ کوی او مرید ورته دَ شاته نه لاسوولا پکې (ببوزې) وهی دا مکروه دی یا مشروع؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: داطریقه مکروه نه ده.

**بدلیل ما روی ابوداؤد فی باب المحرم یظلل عن ام الحصن حدثته قالت حججنا مع النبی ﷺ حجة الوداع فرأیت اسامة وبلالاً واحدهما اخذ بخطام ناقة النبی ﷺ والاخر رافع ثوبه یستره من الحر حتی رمی جمرة العقبة.﴿٣﴾.**

---

**﴿١﴾ (فتاوٰی عالمگیریه ص ٤٥٠ جلد ١ الباب الثانی فی ذوی الفروض قبیل الفروض المقدرة فی کتاب الله)**

**﴿٢﴾ (لسان الحکام فی معرفة الاحکام الملحقة بمعین الحکام ص ٤٢٤ الفصل التاسع والعشرون)**

**﴿٣﴾ (سنن ابی داؤد ص ٢٦١ جلد ١ باب فی المحرم یظلل کتاب الحج)**

## دَ سجده سهونه کيدلو په صورت کښې دَمونځ اعاده واجب ده.

**سوال**: که يو مونځ ګذارې سجده سهو اونکړی نو دَمونځ اعاده واجب ده يانه؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: په دې سرې باندې دَمونځ اعاده واجب ده. کمافی شرح التنوير علی هامش ردالمحتار ص ٣٠٦ جلد١ وتعاد وجوباً فی العمدوالسهوان لم يسجدله وان لم يعدها يکون فاسقا آثماً.

## دَ ښځو علاج په خاوندانو باندې واجب شرعی نه دې

**سوال**: ښځو دپاره خوراک جامې اومکان ورکول واجبِ شرعی دی ليکن دَهغوی علاجونه کول هم واجب شرعی دی يا نه ؟ بينوا توجروا.

**الجواب**: په دې زمانه کښې ښځې محبوبات جوړې شوې دی نو دَهغوی دوائی کول مُروت او عرفی واجب دی ،واجب شرعی نه دی. په دې باندې دائمه اربعاؤ اجماع ده چه علاج واجب شرعی نه دې. کمافی الهنديه ص ٣٥٥ جلد٥،مرض اورمدفلم يعالج حتیٰ مات لا ياثم کذافی الملتقط خلافاً للمتجددين.

## دَ مطلقه مغلظه غيرمدخول بها بغيردَحلالې نه په دويم ځل دَ نکاح کولو عجيبه مسئله

وفی المشکلات من طلق امرئته الغير المدخولة بها ثلاثا فله ان يتزوج بها بلا تحليل واما قوله تعالیٰ فان طلقها فلا تحل له من بعد حتی تنکح زوجاً غيره ففی حق المدخول بها (معين الحکام ص٣٢٩)(١) ويؤيده قوله تعالیٰ الطلاق مرتان ای طلاق المرءة المدخول بها مرتان بدليل قوله تعالیٰ فامساك بمعروف او تسريح باحسان، لان الامساك بمعروف لا يمکن فی غير المدخول بها، فقوله تعالیٰ فان طلقها فلا تحل له

(١) ( لسان الحکام الملحقة بمعين الحکام ص ٣٢٩ نوع فی الخلع )

له من بعد فهو فی حق المدخول بها. لاکن ما فی المشکلات مخالف عن آثار الصحابة والتابعین رضی الله تعالیٰ عنهم.

## په ختم تراویح کښې حافظ ته رقم ورکول

**سوال:** حافظ چه کله په تراویح کښې ختم اوکړی نو هغه ته پیسې ورکول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** چونکه دا رقم دَتلاوت معاوضه نه ده کوم چه ممنوع ده.بلکه دَامامت معاوضه اخستلې شې نوپه ختم کښې حافظ دپاره دَپیسو اخستل ممنوع کیدل هندی مسئله ده حنفی مسئله نه ده.

## په مونځ کښې دَ سجده تلاوت آیت وئیل اوپه رکوع کښې ئې ادا کول

**سوال:** سجده تلاوت په رکوع کښې ادا کولې شی یا نه ؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** سجده تلاوت دَمونځ په رکوع کښې ادا کیږی دَمونځ نه بهر نه.

وهو الراجح کما فی البدائع (ص ١٨٩ جلد١) الرکوع خارج الصلاة لا یجزءه قیاسا واستحسانا لان الرکوع خارج الصلاة لم یجعل قربة فلا ینوب مناب القربة.

## دَ مسافر وطن اقامت نه هره هفته وطن اصلی ته دَتللو راتللو مسئله

**سوال:** یو سړې چه کله دَخپل ځائې نه سل کلومیتره لرې په یو ښار کښې دَعلم یا ملازمت دپاره لاړشی.اودَیو مې میاشتې اقامت کولو نه پس هرهفته خپل ځائې ته راځی نوداسړې به په دې ښار کښې قصرکوی که اتمام به کوی؟ بینوا توجروا

**الجواب:** دَدې سړې چه په دې ښار کښې څومره مودې پورې رهائش وی اودَپریخودلو اراده ئې نه وی نو داسړې به اتمام کوی قصربه نه کوی.کما اشار الیه صاحب البحر (ص١٣٦ جلد٢) بقوله ببقاء الثقل، کوطن الاقامة یبقی ببقاء الثقل وان اقام بموضع آخر واشار الیه صاحب البدائع فی بیان انتقاض وطن

الاقامة بالسفر. انه اعرض عن التوطن به حیث قال (ص۱۰۴ جلد۱) فصار معرضا عن التوطن به فصار ناقضا له. اوپه مسؤله صورت کښې ذا اعراض موجود نه دې

**د اخترونو په اولنی رکعت کښې چه تکبیرات هیرشی چرته به ادا کولې شی**

**سوال:** چه کله د اخترپه اولنی رکعت تکبیرات هیرشی نوکوم ځائې کښې به ادا کولې شی؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** که بعضې فاتحې یاټولې فاتحې نه پس یادشول نوتکبیرات به اووائی اوفاتحه به د اول نه اولولی اوکه دفاتحې اوسورت نه پس یادشی نوهغه وخت به ئې تکبیرات اولولی اوفاتحه دې (بیا) نه وائی.

کما فی الحلبی الکبیر (۵۷۳) نسی التکبیر فی الاولیٰ حتی قرء بعض الفاتحة او کلها ثم تذکر یکبر ویعید الفاتحة واذا تذکر بعد ما قرء الفاتحة والسورة یکبر ولا یعید القراءة لانها تمت وصحت بالکتاب والسنة.

**پلار خوئی لره عاق کول دمیراث نه مانع نه دی**

**سوال:** چه کله پلار دخپل ځوئی نه خفه شی اوهغه عاق کړی دجائیداد نه ئې محروم کړی نو شرعاً داځوئې محروم کیږی یا نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** داځوئې شرعاً نه محروم کیږی. دمیراث موانع څلور کارونه دی رق. قتل. اختلاف دین او دار. اوعقوق یعنی. نافرمانی دمانعاتونه نه دې. ارث. ثابتول او ساقط کول زمونږ په خوښه باندې مبنی نه ده بلکه دا جبری اوغیراختیاری څیزدې. قال الله تبارک وتعالی آباء کم وابناءکم لاتدرون ایهم اقرب لکم نفعا (۱). وقال صاحب تنقیح الفتاوی (ص٥٤ جلد۲) الارث جبری لایسقط بالاسقاط. که پلار خپل جائیداد خرچ کوی یا ئې چاته هبه کړی نو دا عاق شوې (ځوئې) به پخپله محروم شی.

(۱) (سورة النساء پاره: ۴ رکوع: ۱۳ آیت: ۱۱)

**آزاد سړي یا ښځه د تښتیدلو په صورت کښې دښغوی قتل کول ګناهِ کبیره ده**

**سوال:** چه کله یو آزاد سړي او ښځه په رضامندئ سره بل کلی ته اوتښتي اودَجینئ اولیاء دوی لره قتل کړي نو شرعاً دا جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** عرفاً دا غیرت دي لیکن شرعاً دا ګناهِ کبیره ده.دا اولیاء دَخپل مستحب حق تلفئ په وجه باندې دَ حرامِ قطعي په جرم کښې مبتلا کیږي. وهوالموفق.

**په دشمن باندې دَ خود کش حملو حکم**

**سوال:** یو مسلمان دَخپل ځان پورې بم اوتړی او په دشمن حمله اوکړي چه دَدشمن ډیرزیاته تباهي اوشي.داجائز دی یا ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** داعرفاً جائز دی نفساني جذبه ده خوشرعاً داخودکشي ده.په خیرالقرون کښې دا اقدام نه دې واقع شوې. وهوالموفق.

**دَ واده نه مخکښې دَ خاوند په مړکیدلو باندې منکوحې ته ټول مهر ورکولې شي**

**سوال:** چه کله دَمنکوحې خاوند دَ واده کولو نه مخکښې مړ شو نو منکوحې ته به څومره مهر ورکولې شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** دې منکوحې ته به ټول مهر ورکولې شي.

کما فی الهندیة ص۳۰۳ جلد۱ والمهر یتاکد باحد معان ثلاثة الدخول والخلوة الصحیحة وموت احد الزوجین، وفی الدرالمختار علی صدر ردالمختار ص ۱۰۲ جلد۲ باب المهر، ویتاکد عند وطی او خلوة صحت من الزوج او موت احدهما.

**دَ قربانئ څرمن یادَهغې قیمت په جوماتونو یا مدرسو باندې لګول.**

**سوال:** دَقربانئ څرمنې یادَهغې قیمت په جوماتونو یامدرسو باندې لګول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: دالګول دَهندی مشائخو په نیزد ناجائزدی.لماف الهندیه ص ۳۰۱ جلد۵ ولایبیعه بالدراهم لینفق علی نفسه اوعیاله ولو باعها بالدراهم یتصدق بها.یعنی ددې تصدق دې اوتصدق تملیک ته وئیلې شی اودَافغانی مشائخو په نیزدالګول جائز دی. کماف الزیلعی ولو باعها بالدراهم لیتصدق بها جاز لانه قربة کالتصدق ، هندیه ص۳۰۱جلد۵. یعنی دَقیمت تقرب به کولې شی.او قربت دَخیرکار ته وئیلې شی اباحت وی که تملیک وی.ولم یقل لانه تصدق ایضاً.اوجمات اومدرسې ته دَقیم اومهتمم په وساطت سره تملیک صحیح دې کماف الهندیه ص ٤٦٠ جلد۲ولوقال وهبت داری للمسجد واعطیتها له صح ویکون تملیکاً فیشترط التسلیم. دغه شان حاجیان همیشه په لاکونو هدٰیې ذبحه کوی اوپه غوښه اوڅرمنو باندې اباحت کوی نه تملیک وعلیه التعامل.

## دَ جماعة النساء شرعی حیثیت او دَ احنافو مذهب.

**سوال**: دَمستوراتو جمات جائز دې یا ناجائز؟ چه کله ښځه امام وی او دَصف په مینځ کښې ولاړه وی؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: دَمستوراتودَجماعت متعلق دَحدیث ام ورقه ،حدیث عائشه او، حدیث ام سلمة رضی الله عنهم نه جواز ثابت دې.والیه یمیل الشافعی واهل الحدیث ومن دان دینهم خلافالنا وللمالک،اودې احادیثوته احنافو اوموالک منسوخ وائی لیکن ناسخ ئې معلوم نه دې.الاان یرادبالنسخ مایریده الامام الطحاوی فی شرح معانی الاثارای متروک العمل،وهو وجه وجیه، او اکثر محققین مشائخ فرمائی چه اوس دَدوی جماعت مکروه تحریمی دې، یعنی دَهغوی دَظهوراوکورونو دَوتلو په وجې سره ، چه غالباً دَمنکراتو نه خالی نه وی، واشیرالیه فی حدیث عائشة(رواه البخاری)لوادرک رسول الله ﷺ ما

احدث النساء لمنعهن.(۱). اوبعضي متاخرين علماء دَوقتى ضرورت په بناء باندي دَمنکراتو انکار کوی لیکن دَهغوی جماعت ته جائز خلافِ اولی وائی.ولنعم قول المشائخ المحققين.

## دَ مشتری بائع نه په قرض څه اخستل او بیا په بائع باندي دَ خرڅولو مسئله

**سوال**: چه کله یو مشتری دَبائع نه یو څیز په قرض باندي واخلی اودَقیمت ادا کولو نه مخکښي ئي په بائع باندي دَمخکښی قیمت نه په کم قیمت باندي خرڅ کړی نوآیا داجائز دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب**:دامعامله ناجائز ده کمافی الهدایه لاثرعائشة رواه احمد وعبدالرزاق والدارقطنی ( ۳۷).وکمافی الهندیه (ص۱۲۲جلد۳). اوکه دا اولني مشتری ئي په دویم مشتری باندي خرڅ کړی اودغه مشتری ئي په بائع باندي په کم قیمت خرڅ کړی نو دا جائز دی (هندیه ص۱۳۲جلد۳) اوکه داڅیزارزان شی او دَارزانئ په وجه ئي بائع دَمخکښی قیمت نه په کم سره واخلی نو دا ناجائز دی.(هندیه ص۱۳۲جلد۳).

## دَ اتقوا مواضع التهم حدیث سند

**سوال**: دَ اتقوا مواضع التهم حدیث دکوم ځائي نه ثابت دي اوسندئي څنګه دي؟

**الجواب**:دا حدیث امام غزالی رحمه الله په احیاء باب شرح عجائب القلب کښي ذکر کړي دي.حیث قال منع الشرع من التعرض للتهم فقال علیه السلام اتقوا مواضع التهم، لیکن په تخریج عراقی کښي دی لم اجدله الصلاً،اورامام سیوطی موضوعات کبیرص۱٦ ) باندي لیکی.هوقول عمر رضي الله عنه من سلک مسلک التهم اتهم،نودا اثردي مرفوع ثابت نه دي.(۲).

(۱) (صحیح البخاری ص۱۲۰ جلد۱ باب خروج النساء الی المساجد باللیل والغلس)

(۲) (وایضا رواه الامام البخاری فی الادب المفرد فی النسخة القدیمة، وایضا رواه صاحب التشرف جلد۱ ص۹۲)

## مسبوق لره د تشهد نه پس دامام د سلام نه مخکښې قیام کول

سوال: څه کله مسبوق دامام دسلام نه مخکښې دتشهد پوره کولو نه پس قیام کوی دا جائز دی که ناجائز؟

الجواب: د تشهد پوره کولو نه مخکښې قیام ناجائز دې او روستو جائز دی کما فی الهندیة (ص۹۱ جلد۱) وكذا اذا خاف المسبوق ان يمر الناس بين يديه لو انتظر سلام الامام، قام الى قضاء ماسبق قبل فراغه كذا في الوجيز للكردرى، ولو قام في غيرها من المواضع المارة بعد قدر التشهد صح ويكره تحريماً. وان قام قبل ان يقعد قدر التشهد لم يجز.

## د امام دریم رکعت د پاره اودریدلو نه پس د مقتدی تشهد پوره کول

سوال: څه کله دمقتدی دتشهد پوره کولو نه مخکښې امام دریم رکعت ته اودریږی یا سلام واړوی نو مقتدی به تشهد پوره کوی یا نه؟

الجواب: دامقتدی به تشهد پوره کوی او اتمام نه کول هم کافی دی. کما فی الهندیه (ص ۹۰ جلد۱) فالمختاران يتم التشهد كذافي الغياثية وان لم يتم اجزءه.

## د فرائضو او سنتونه پس دعا کول د فعل رسول صلى الله عليه وسلم نه ثابت نه دی

سوال: دکومو فرضونه پس چه سنت وی دهغې نه پس یا مخکښې دعا کول د فعل رسول صلی الله علیه وسلم نه ثابت دی یا نه؟

الجواب: داسې مونږونو کښې چه دهغې نه پس سنت وی دعا کول دفعل رسول نه ثابت نه دی نه دسنتونه پس او نه دسنتو نه مخکښې. داحادیثو بیخ نه رسیدل دفقهاء مجتهدینو کار دې داهل ظاهرو او دهغوی دهم مسلکو کار نه دې وهو الموفق

## د یو کس چاته د ټولو حقوقو معاف کولو

## سره د نامعلومه حقوقو د معاف کولو مسئله

سوال: که یو سړې چاته اووائی چه ماته ته خپل ټولو حقوق معاف کړې دی نو

په دې سره داسې حقوق هم معاف كيږى چه دَهغې دې سرې ته علم نه وى؟

**الجواب:** د امام ابويوسفؒ په نيز داسې حقوق هم معاف كيږى اوهم دا قول مفتى به دې (شرح فقه الاكبرلملاعلى قارى ص١٢٧).

## دَ مرداې چرګې اګئ (انډې) او د مردارې چيلئ پئ حلال دى

**سوال:** دَمردارې چرګې نه چه كوسې انډې رااوځى او دَ مردارې چيلئ نه چه كوم پئ حاصل شوې وى هغه حلال دى يا حرام؟

**الجواب:** دا انډې او پئ حلال دى (هنديه ص ٣٣٩جلد٥) (١).

## د ذكر په وخت كښې د اسم ذات تكرار مشروع دې

**سوال:** د اسمِ ذات تكرارمشروع دې يا مكروه؟

**الجواب:** دَ اسم ذات تكرارمشروع دې په احاديثوكښې دَ اسم ذات تكرارراغلې دې كما فى رواية البخارى (ص٤٠٨ جلد١) قال من يمنعك منى فقال الله الله ثلاثا وكما فى رواية مسلم (ص٨٤ جلد١) لا تقوم الساعة حتى لايقال فى الارض الله الله (مشكوٰة ص٤٨٠) وهٰكذا فى الطبرانى الصغير وغيره، اودَ اهل لسان په نيز دا دَحذف په وجې سره جمله وى.

## په طلب العلم فريضة على كل مسلم حديث كښې دَ مسلمة لفظ ثبوت

**سوال:** طلب العلم فريضة على كل مسلم ومسلمة داحديث دكوم ځائې نه ثابت دې؟

**الجواب:** داحديث نصربن محمدبن ابراهيم سمرقندى په بستان العارفين (ص٣) كښې ذكر كړې دې.

---

(١) وفى الهنديه: البيضة اذا خرجت من دجاجة ميتة اكلت وكذا اللبن الخارج من ضرع الشاة الميتة كذا فى السراجيه.

(فتاوىٰ عالمگيريه ص ٣٣٩ جلد٥ الباب الحادى عشر فى الكراهة فى الاكل)

عن ابی روق عن علی بن ابی طالب ان النبی ﷺ قال لی طلب العلم فریضة علی کل مسلم ومسلمة وفی خبر آخر اطلبوا العلم ولو بالصین فان طلب العلم فریضة علی کل مسلم ومسلمة،اوپه مرقات (ص۲۸۴ جلد ۱) کښې دی ومسلمة کما فی روایة.

## دَ یو شیخ نه دَ بیعت په صورت کښې دَبل شیخ نه بیعت کول

**سوال:** که یو سړي دَیوشیخ نه بیعت اوکړی نو دَبل شیخ نه بیعت کولې شی یا نه؟

**الجواب:** کولی شی کمافی تنقیح الفتاوی الحامدیه (ص۳۶۹جلد۲) رجل من الصوفیة اخذالعهد علی رجل ثم اختارالرجل شیخا آخرواخذعلیه العهد فهل العهد الاول لازم ام الثانی،الجواب :لایلزمه العهد الاول ولا الثانی ولااصل لذلک.اهل فن چه کوم قیدونه ذکرکړی دی هغه دَمصلحت په طور دی.

## په دسترخوان باندې ټول قسمونه په یو ځائې کیښودل بهتر دی

**سوال:** په دسترخوان باندې ټول څیزونه دَخوراک په یو ځائې کیښودې کیږی یا یوبل پسې؟

**الجواب:** ټول هرڅه په یوځائې کیښودل بهتردی.دَسلفواوعربوهم داطریقه وه او دَیوبل پسې کیښودل دَرومیانو معمول دې.کمافی تنقیح الفتاوی الحامدیه (ص۳۵۹جلد۲).(۱).

## دَ سرنه ګیرچاپیره عمامه تاوول او دَ مینځ خالی پریخودلو حکم

**سوال:** که یو مونځ ګذاري عمامه دَسرنه ګیرچاپیره اوتړی او مینځ خالی پریږدی نو په مونځ کښې داسې جائز دی یا نه؟

(۱) قال العلامه محمد امین: کانت سنة السلف ان یقدموا جملة الالوان دفعة لیاکل کل ما یشتهید. فثبت بهذا ان تقدیم الالوان جملة من سنة السلف کما هو عادة العرب وما یفعله الاروام من تقدیم الالوان واحدا بعد واحد الخ. (الفتاوی تنقیح الحامدیه ص۳۵۹ جلد۲ مسائل شتی)

**الجواب**:دا اعتجاردي اودَحدیث په بناء مکروه ده. کمافی الطحطاوی(ص ٢٨٤) فقوله وترک وسطه مکشوفا والمراد انه مکشوف عن العمامة لامشکوف اصلاً۔

## په پخوانی مقبره باندې دَ زراعت او تعمیر حکم

**سوال**: په پخوانئ مقبره باندې زراعت اوتعمیرجائز دي یا نه؟

**الجواب**: په پخوانئ مقبره باندي رزاعت اوتعمیرکول جائز دی. کمافی الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار ص ٦٢جلد١،کماجاز زرعه والبناء علیه اذابلی وصارتراباً.

## په میراث کښې دَ وارث مړی طرفته په دوه نسبتونو سره کیدل

**سوال**: چه کله مړی ته یو وارث په دوه نسبتو سره منسوب وی نودَهغې څه کیفیت دی؟

**الجواب**:که په دې نسبتونوکښې یو دبل دپاره حاجب نه وی نو په دواړو نسبتونوسره به میراث اخلی ګنې نوصرف دحاجب په نسبت سره به میراث اخلی.
کما فی البزازیه علی هامش الهندیه (ص۴۷۲ جلد۶) من یدلی الی المیت بنسبین ان کان احدهما لا یحجب الاخر ورث بهما جمیعا وان کان یحجب ورث بالحاجب، قلت کما اذا تزوجت بابن عمها فانه یرث عنها النصف بالفرضیة والباقی بالعصوبة.

## دَ چیندخ دَ متیازو حکم

**سوال**: دَ چیندخ متیازې پاکې دی یا نه ؟

**الجواب**:کوم چیندخ چه بحری(دریابی) وی دَهغه متیازې بذاتِ خود ناپاکې دی لیکن دَمجبورئ په وجه به دا اوبه ناپاکې نه وی.اوکوم چیندخ چه

داوچې وی هغه به هم ناپاکې نه وی لیکن کوم کښې چه وینه وی هغه به ناپاک وی کمایدل علیه مافی ردالمختارباب المیاه (۱).

## د دریابی او اوچې د مار د پاکۍ او ناپاکۍ حکم

**سوال** دریابی او اوچې والا مار چه کله په اوبو کښې مړ شی نو دا اوبه پاکې دی یا ناپاکې؟

**الجواب** د دریابی مار اوبه پاکې دی او د اوچې والا کښې که چرته وینه وی نو ناپاکې دی گنې نو پاکې دی (ردالمحتار)

## په اوبوکښې د چرمخکۍ په مړه کیدلو سره د اوبو حکم

**سوال** که چرمخکۍ په اوبو کښې مړه شی نو اوبه پاکې دی یا ناپاکې؟

**الجواب** په چرمخکۍ کښې چونکه وینه نشته نو دَ قواعدو په رڼړا کښې دا اوبه پاکې دی (۲).

## د اختر د مونځ نه پس دَ مصافحې حکم

**سوال**: دَ اختر دَمونځ نه پس مصافحه کول جائز دی یا ناجائز؟

**الجواب**: دَاختر دَمونځ نه پس دَمصافحې متعلق بعضې علماء فرمائی چه. لاباس بــه او بعض وائی چه جائز ده. اوبعضې فرمائی چه مکروه ده. وبعضې فرمائی:

---

۱) قال ابن عابدین: (قوله فیفسد فی الاصح) وعلیه فما جزم به فی الهدایه من عدم الافساد ضفدع البری وصححه فی السراج محمول علی ما لادم له سائل کما فی البحر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۱۳۶ جلد۱ باب المیاه مطلب حکم سائر المانعات کالماء فی الاصح)

۲) قال الحصکفی: وان مات فیه ای الماء غیر دموی کزنبور وعقرب وبق ای بعوض، قال ابن عابدین: (قوله غیر دموی) المراد ما لادم له سائل لما فی القهستانی ان المعتبر عدم السیلان لا عدم الدم حتی لو وجد حیوان له دم جامد لا ینجس القول وکذا دم القملة والبرغوث فانه غیرسائل. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ص۱۳۵ جلد۱ باب المیاه)

بدعة مکروهة کما فی ردالمحتار (ص٥٥٧ جلد١) قوله والتهنئة وانما قال ذلك لانه لم یحفظ فیها شیئ عن ابی حنیفة واصحابه وذکر فی القنیة انه لم ینقل عن اصحابنا کراهة وعن مالك انه کرهها وعن الاوزاعی انها بدعة وقال المحقق ابن امیرالحاج بل الاشبه انها جائزة مستحبة فی الجملة ثم ساق آثارا باسانید صحیحة عن الصحابة فی فعل ذلك ثم ذلك والمتعامل فی البلاد الشامیة والمصریة عید مبارك علیك ونحوه الخ،

نو دَدې اختلاف په وجه په دیکښې تشدد (سختی) مناسب نه دی.

## دَ غاښ ټکولو یا ورته دَ کوَر (ټوپئ) اچولو په صورت کښې دَ غسل حکم

**سوال:** په غاښ دَسوری کیدلو په وجه باندې دَمصالحې نه ډک کړی یا ورته کوَر واچوی نودَغسل په وخت به څه حکم وی؟

**الجواب:** دَغسل په وخت کښې دا ډکوالې او کوَر په لرې کولو کښې ښکاره حرج (گرانی) ده لهذا دا لرې کول معاف دی. ویؤیده ما رواه احمد فی مسنده ان عثمان بن عفان ضبب اسنانه بذهب (١).

## په یوه ورځ کښې سحر او ماښام میاشت لیدل

**سوال:** آیا هم په یوه ورځ کښې سحر او ماښام میاشت لیدلې کیدې شی؟

**الجواب:** شریعت والو په نیز داکیدلې شی. خلافاً للحکماء. اودَشیخینو په نیز دامیاشت دَآئنده شپې وی.

کما فی رد المحتار ص٣٩٢ جلد٢ اما اذا رؤی یوم التاسع

(١) قال الحصکفی: ولا یشد سنه المتحرك بذهب بل بفضة وجوزهما محمد. قال ابن عابدین: ای جوز الذهب والفضة ای جوز الشد بهما واما ابویوسف فقیل معه وقیل مع الامام. (الدرالمختار مع ردالمحتار ص٢٥٥ جلد١ کتاب الحظر والاباحة)

والعشرین قبل الشمس ثم رؤی لیلة الثلاثین بعد الغروب وشهدت بینة شـرعیة بذلك فان الحاكم یحكم برؤیته لیلا كما هو نص الحدیث ولا یلتفـت الی قـول المنجمین انه لا تمكن رؤیته صباحا ثم مساء فی یوم واحد (قبیل مطلب فی اختلاف المطالع) وفی البدائع (ص۸۲ جلد۲) والاصل عندهما انه لا یعتبر فی رؤیة الهلال قبل الزوال ولا بعده وانما العبرة لرؤیته قبل غروب الشمس.

## د پاکستانیانو د پاره دَ سعودی عرب په رؤیت هلال باندې اعتماد کول

**سوال:** که پاکستانی رویتِ هلال کمیټی دَسعودی عرب په رویت هلال کمیټئ اعتماد اوکړی او دَرمضان او اختر حکم په هغې ورکړی نو آیا دا جائز دی؟

**الجواب:** چونکه سعودی عرب دَپاکستان نه بلدِبعید دې نو د راجح قول په بناء باندې دا اعتماد صحیح نه دې.

قال صاحب البدائع ص۸۳ جلد۲ هٰذا (ای قضاء صوم یـوم) اذا كانـت لمسافة بین البلدین قریبة لا تختلف فیها المطالع فاما اذا كانت بعیدة فلا یلـزم حد البلدین حكم الآخر لان مطالع البلاد عند المسافة الفاحشة تختلف فیعتبر اهل كل بلد مطالع بلدهم دون البلد الآخر، قلت وعند العمل علی موافقة رب یلزم فوات التراویح فی اللیلة الاولیٰ وارتكاب التراویح فی لیلة العید.

## دَ حافظ یو ځل ختم کولو نه پس دوباره ختم کول

چه کوم حافظ یو قوم ته په تراویح کښې ختم اوکړی نو بل قوم ته په ځل کولې شی یا نه؟

: ختم کولې شی روی بعض اهل العلم عن کنز الفتاوٰی رجل ام قوما اویح وختم فیها ثم ام قوما آخرین له ثواب الفضیلة ولهم ثواب الختم. ة الفتاوٰی ص۲۲۴ جلد۱ عن خزانة الروایات)

## په سفر کښې به دَ ویرې په وخت کښې سنن راتبه پریخودلې شي او دَ قرار په وخت کښې به ادا کولې شي

**سوال:** دَتبلیغی جماعت یوحنفی سړې وائی چه په سفرکښې سننِ راتبه نیشته. ایاداصحیح دی؟

**الجواب:** داسړې دَفقه حنفی اونوروحدیثونو نه بې خبره ده. په سفرکښې به دَویرې په وخت کښې سنت پریخودې کیږی او دَقرارپه وخت کښې به ادا کیږی. کما فی الهندیه: والمختار انه لا یاتی بها فی حال الخوف ویاتی بها فی حال القرار والامن هٰکذا فی الوجیز للکردری، (هندیه ص۱۳۹ جلد۱)

او دَ ابوداؤد شریف په لیلة التعریس والا حدیث کښې دی. قال رسول الله ﷺ من کان منکم یرکع رکعتی الفجر فلیرکعهما فقام من کان یرکعهما ومن لم یرکعهما فرکعهما، (باب فی من نام عن صلاة اونسیها ص۷۰ جلد۱)

او دَ ترمذی په ابواب السفرکښې دی عن ابن عمر صلیت مع النبی ﷺ فی الحضر والسفر فصلیت معه فی الحضر الظهر اربعا وبعدها رکعتین وصلیت معه فی السفر الظهر رکعتین وبعدها رکعتین (ص۷۲ جلد۱)

په تبلیغی جماعت کښې چه کله عرب یا اهل حدیث څی نوډیرځلې داسې واقعات واقع کیږی. داعوام دَفقهائې احناف نه بدګمانه کوی.

## دَ مشتری دَ ثَمَن ورکولو نه مخکښې په بائع باندې په کم ثمن خرڅول جائز نه دی

**سوال:** چه کله یو سړې دَدوکاندار نه یو څیز واخلی اوبیائې په دغه دوکاندار په لږقیمت خرڅ کړی داجائز دی یا ناجائز دی؟

**الجواب:** دامشتری ئې دَثمن ورکولو نه مخکښې په کم ثمن باندې په دې بائع نشی خرڅولې. کما فی الهدایه ص۵۷ جلد۳ ومن اشتریٰ جاریة بالف درهم حالة

اونسیئة فقبضها ثم باعها من البائع بخمس ماة قبل ان ینقد الثمن لا یجوز البیع لقول عائشة لتلك المراة وقد باعت بست مائة بعد ما اشترت بثمان ماة بئس ما شریت واشتریت رواه احمد وعبد الرزاق والدارقطنی، فلیراجع الی الدرایة والزیلعی. البته دثمن دقبض کولونه پس په کم ثمن سره خرخول جائز دی. (کمافی الهندیه ص۱۳۲ جلد۳).

## پُکئ(هوا بغیرآواز نه) چه بدبوئی پکښې نه وی اودس ماتونکې ده یانه؟

**سوال**: یوسړې وائی چه دکومې پُسکئ سره بدبوئی نه وی نوهغه اودس ماتونکې نه ده دا دمعدې نه نه راځی. دادُبُر دَحلقې پیداوار دې آیا دا صحیح ده؟

**الجواب**: په دې سره اودس ختمیږی په حدیث کښې دی. لا وضوء الامن صوت او ریح، رواه الترمذی ای حتی یتیقن الحدث کما فی المعالم، وفی الخلاصة مناط النقض العلم بکونه من الاعلیٰ فلا نقض مع الاشتباه، فمن کان اطروشا ای اصم او اخشم ای لایجد الریح فینتقض طهارته اذا تیقن وقوع الحدث منه.

## دَ تعزیت د پاره دَ مستوراتو جمع کیدل اوکیناستل ممنوع دی

**سوال**: دَمړی دَتعزیت دپاره سړی خوجمع کیږی خوآیا دَتعزیت دپاره زنانه هم جمع کیدلې شی؟

**الجواب**: دزنانو دپاره تعزیت ته جمع کیدل اوکیناستل منع دی. کمافی ردالمحتار ص ۶۰۴ جلد۱ الجلوس فی المصیة ثلاثة ایام للرجال جاءت الرخصة فیه لا تجلس النساء قطعا.

## دَ علاج په ذریعه دَ حیض جاری کول یا بندول ممنوع نه دی

**سوال**: که مُرضعه (یئ ورکونکې ښځه) دَعدت پوره کولو دپاره په علاج او دوائی سره حیض جاری کړی یا روژه داره او احرام والا زنانه دَ روژې او طواف دپاره حیض بند کړی نو دا جائز دی یا نه ؟

**الجواب**: ردالمحتار ص۲۰۲ جلد۲ باب العدة کښې دی: قال فی السراج سئل بعض المشائخ عن المرضعة اذا لم ترحیضا فعالجته حتی رءت صفرة فی ایام الحیض قال هو حیض تنقضی به العدة، چه کله حیض جاری کول په علاج او دوائی سره جائز دی نو بندول ئې هم ممنوع نه دی.

## دَ استمناء بالکف حکم

**سوال**: استمناء بالکف جائز دی یا ناجائز؟

**الجواب**: استمناء دَتسکینِ شهوت یعنی شهوت دَآرام ورکولو دپاره معاف دی او دَ استجلابِ شهوت یعنی دَشهوت راوستلو دپاره منع دي. کمافی ردالمحتار ص ۳۹۹جلد۲.

## دَ نابالغه په قتل عمد کښې په نابالغه باندې قصاص نشته دیت واجب دي

**سوال**: که یو نابالغه یو نابالغ عمداً قتل کړی نو دیکښې قصاص واجب دي یا نه؟

**الجواب**: په دې کښې قصاص نشته دیت واجب دي. کمافی الهندیه ص ۳ جلد ٦ ولا قصاص فیما بین الصبیان وعمدالصبی وخطاه سواء عندنا حتی تجب الدیة فی الحالین فی ماله فی قتل العمد.

## دَ معتوه یا لیونی والدینو لره قتل کول دَ میراث نه مانع نه دی.

**سوال**: چه معتوه یا مجنون پلار قتل کړی نو په دې کښې دَمیراث نه محرومیدل شته یا نه؟

**الجواب**: په دې کښې کفاره او دَمیراث نه محروم کیدل نشته. کماق تنویر الابصار علی ردالمحتارص ٥٨٦ جلد٦ وعمدالصبی والمجنون خطالاکفارة ولا حرمان ارث.

## دَ ښینل کمپنۍ دَ کاروبار شرعی حیثیت

**سوال** دښینل کمپنۍ دَ کاروبار شرعی حیثیت څه دې؟ جائزدې یا ناجائز؟

**الجواب** په دې کاروبار کښې نه سود شته او نه رشوت. په دې کښې تجارت دې او دتجارت زیاتولو کامیابه طریقه ده. البته په دې کښې چه اخستونکی ته دقرضې ورکولو کوم رعایت ورکړې شوې دې په هغې کښې نیته نامعلومه ده چه دا فاسدونکې ده. (۱)

---

(۱) دښینل کمپنۍ دکاروبارپه طریقه کاربانديې مشتمله رساله مطالعه کولو نه پس دعدم جواز بولې فتاوې موملاحظه کړې نومعلومه شوه چه مستفتی حضراتو دَخپل فهم مطابق سوالونه کړې دی اوبیاهم په دغې بنیادباندې عدم جواز فتوې ورکړې شوې دی. بهرحال دکمپنۍ دَ دستور العمل رسالې مطابق لاندېنې تحقیق پیش کولې شی. او دا جواب به ترهغې وخته پورې وی ترڅو چه دکمپنۍ کاروباردَدې رسالې مطابق وی.

(۱) دَ کمپنۍ دَطرف نه په شائع شوی دستورالعمل باندې دَغور کولو نه معلومیږی چه کمپنی مشین خرڅوی اوبیع برابرکړې شی. بیاکه یوکس دکمپنۍ ډسټری بیوټر(تقسیم کولو والا ممبر) جوړیدل غواړی نوجوړیدلې شی دَدرستور په صفحه ۳باندې ئې لیکلې دی. (۱) دَ(پروډکټ) سامان اخستلو نه پس اوډسټری بیوټرشپ کارډملاویدلو نه پس یو سړې مخکښې تللې شی. (۲) ډسټری بیوټرصرف دکمپنۍ په مقرر شوې قیمت باندې سامان اخستلې شی. دمقررقیمت نه کم یا زیات باندې ئې نشی اخستلې. (۳) که ډسټری بیوټر اوغواړی نوسامان دَخرڅولو نه پس په اووه(۷) ورځوکښې دننه به خپلې(Direct up line) مشورې او رضامندۍ سرکمپنۍ ته واپس کولې شی. (۴)(xl) دکمپنۍ ذمه داری ده. چه هغه پروډکټ په صحیح حالت کښې اومکمل مهیاکړی اودَخرڅولو نه پس ورته خدمات هم حاصل کړی.

دَ کمپنۍ ددې طریقه نه معلومه شوه که یو سړې مشین واخلی نوپه هغه باندېدا لازم نه دی چه خامخابه بل خریدار هم راولی. بلکه که یو سړې ډسټری بیوټر جوړیدل غواړی اودکمپنۍ ممبرجوړشی اوکار کول غواړی. نوهغه ته به بونس ملاویږی کنې نه به ملاویږی ورته. نوچه کله داشرطونه ضروری نه دې لکه چه دَدې دَعبارتونو نه واضحه ده او دَ کمال عقدنه پس دَ ډسټری بیوټر جوړیدلو په صورت کښې شرائط هم کیښودلې شی نو دادَبیع دپاره ضرروالانه دی. قال التمرتاشی: ولابیع بشرط لایقتضیه (باقی حاشیه په راروانه صفحه)

﴿بقیه حاشیه﴾ العقد ولا یلائمه وفیه نفع لاحدهما اوالمبیع (تنویرالابصار علی صدر ردالمختار ص۸۵ جلد۵ باب بیع الفاسد) پس ددې بیع دعدم جواز هیڅ وجه نشته. وفی الهندیه: واما حکم البیع فثبوت الملك فی المبیع للمشتری وفی الثمن للبائع اذا کان البیع باتا (هندیه ص۳ ج۳)

(۲) هرکاروباری دَخپل کاروبار دپاره یو طریقۀ کار او انتظامی امور جوړوی.ترڅوچه په هغې کښې یوه خبره دَشریعت خلاف نه وی نوپه هغې کښې به دَعدم جواز فتوی نشی ورکولې ټولو ادارو ته اجازت دې چه خپل سامان په عام مارکیټ کښې یادَایجنټانو په ذریعه خرڅ کړی.په فقه السنة کښې دی.لان للمالك ان ینصرف فی ملکه کیف یشاء مالم یستلزم ذالك التصرف محرماً مما وردالشرع بتحریمه (فقه السنة ص۲۹۰ جلد۳) د البشری لارباب الفتوی په فصل فی الافتاء فی الحوادث الجدیده کښې دی: وبالجملة ان الاصل فی تشریعها التخریج من النصوص ویکفی فی اباحتها عدم تعارضها بالنصوص (البشری ص۴۸) اوامام شاه ولی الله په عقد الجید کښې فرمائی:وفی عمدة الاحکام من کشف البزدوی یستحب للمفتی الاخذ بالرخص تیسیراً علی العوام مثل التوضی بماء الحمام والصلاة فی الاماکن الطاهرة بدون المصلی....وینبغی للمفتی ان یاخذ بالایسر فی حق غیره خصوصاً فی حق الضعفاء لقوله علیه السلام لابی موسی الاشعری ومعاذ حین بعثهما الی الیمن یسرا ولا تعسرا (عقدالجید ص۷۳، ۷۴)

(۳) دَ کمپنۍ په دستور سره چه کوم څیزمخې ته راځی په هغې کښې ظاهری طورسره دَناجائزه قرض څه صورت په نظر نه راځی.البته چه مشتری کوم لږقیمت ورکوی اوباقی دَهغه په ذمه قرض وی نو دا یو صورت دې.لیکن زبانی طورسره دَایجنټانو نه معلوم شو او دَدستور نه هم معلومیږی چه دکمپنۍ دَطرف نه داشرط نه دې چه خامخابه ته ممبران جوړوې .بلکه دَډسټری بیوټر جوړیدلو په صورت کښې کمپنی خپل داقرض په بونس کښې پوره کوی.اوبنده دَبعضې ممبرانو نه زبانی طور داهم معلومه کړه که بالفرض داممبرنورکارنه کوی اونورممبران نه پیدا کوی نوبیاکمپنی داقرض څنګه وصول کوی نوهغوی اووئیل چه دکمپنۍ دَطرفنه یوکال پورې داقرض دده په ذمه باندې وی اودکال تیریدلو نه پس کمپنی دا رقم معاف کوی.دَبونس متعلق معلومات دَپروډکټ اصل قمیت وغیره په دستور کښې دې طریقه باندې بیان کړې شوې دې.

دَ پروډکټ ټول قیمت: ۹۹۸۰/۰۰ روپۍ . کسټم ډیوټی : ۱۹۸۰/۰۰ روپۍ

بنیادی ډسټری بیوشن BDA رقم: ۸۰۰۰/۰۰ روپۍ لاګت او دَ کمپنۍ منافع:۴۵ فیصد ، دَ ډسټری بیوټر دپاره.۵۵ فیصد.بس دلته چه ډسټری بیوټرکوم ﴿باقی حاشیه په راروانه صفحه﴾

(بقیه حاشیه) مشین خرڅوی نوکمپنی دهغه دبونس نه خپل قرض پوره کوی نوچه کوم اولنې بونس ملاویږی هغه په قرضه کښې حسابیږی.اودقرضې ختمیدلونه پس خپل بونس باقاعده طریقې وصول کوی لهذا دا نفع زائد علی القرض نه ده چه په کل قرض جرنفعاً کښې داخل شی بلکه باقاعده په قرضه کښې حسابیږی اودخدماتو په صله کښې بونس ملاویږی.

(۴) د دستور نه دا معلومیږی چه نه په دې کښې رشوت شته اونه جواری. ددستور په ص ۴ کښې دې چه که ډسټری بیوټر غواړی نو پروډکټ داخستلو نه پس په اوو(۷) ورخو کښې دننه دخپلې مشورې او رمضامندئ (direct upline) سره کمپنئ ته واپس کولې شی اوبیا آئنده درې میاشتو پورې ډسټری بیوټر نشی جوړیدلې.ددینه علاوه د دستور نه داهم معلومه شوه چه ډسټری بیوټر جوړیدل ددې مشتری خوښه ده که کار کول غواړی نو بونس به ورته ملاویږی او که کار کول نه غواړی نوپه دې باندې څه پابندی نشته.اودستور په ص۳ کښې دی چه ډسټری بیوټر صرف دکمپنئ په مقرر شوې قیمت باندې پروډکټ خرڅولې شی .دمقرره قیمت نه کم یا په زیاتې باندې ئې نشی خرڅولې.انتهی

پس دپروډکټ خپل مقررقیمت دې اوبیع دمشتری اوبائع په خوښه باندې منعقد کیږی.علامه ابن نجیم رحمه الله فرمائی:(قوله هو مبادلة المال بالمال بالتراضی) وفی فتح القدیر بانه اذا فقدالرضا لایسمی فی اللغة بیعاً بل غصباً ولو اعطاه شیئاً آخرمکانه وعرفه فی البدائع بانه مبادلة شئ مرغوب فیه بشئ مرغوب فیه وذلك قدیکون بالقول وقدیکون بالفعل فالاول الایجاب والقبول والثانی التعاطی (بحرالرائق ص۲۵۷ جلد۵) ددینه علاوه خبره داده چه دامشین په عام بازار کښې ارزان ملاویږی او دبعضې استفتاگانو نه معلومیږی چه دامشین په عام بازارونو کښې نه ملاویږی بهرحال کمپنی زیات قیمت اخلی نوپه دې کښې هم څه قباحت نشته.په فتاوی حقانیه کښې دی: ملخصاً،شریعت مقدسه په تجارت کښې دمال په منافعو کښې څه خاص حد نه دې مقرر کړې.دا د دواړو عاقدینو خپل مینځنئ معامله ده څنګه چه جوړه شوه هغه شان جائزه ده.لانه مبادلة المال بالمال بالرضا (دررالحکام) (فتاوی حقانیه ص۱۰۸ جلد۶) وددې گران قیمت په وجه دې باندې درشوت تعریف صادق نه راځی.په منهاج السنن کښې دی:

رشوة الوصله الی الحاجة بالمصانعة.... فالراشی من یعطی الذی یعینه علی الباطل والمرتشی الاخذ والرائش ی یسعی بینهما یستزید لهذا ویستنقص لهذا الخ (منهاج السنن شرح جامع السنن ص۷۰ جلد۵)

دجوارئ معنی هم په دې کښې نیشته ځکه چه کمپنی مخکښې دامشین په دغه معین ان قیمت باندې خرڅوی بیاکه چرته مشتری ډسټری (باقی حاشیه په راروانه صفحه)

(بقیه حاشیه) بیوتړ جوړیږی.نو کمپنی دَخپلو اصولو مطابق هغه ته بونس ورکوی او که دَ
کمپنۍ سره کار نه کوی نو هغه تـه هیڅ نه ملاویږی.اوهغـه ګران قیمت ددې مشین ثمن
وو.لهذا دَرقم ضائع کیدلو دلته هډو څه خطره نه معلومیږی.دَدستورالعمل پـه صـفحه ۳
کښې دی.دَپروډکټ اخستلو نه پس اودَډسټری بیوتړ شپ کارډ ملاویدلو نه پس یوسړې
مخکښې ترقی کولې شی.دَډسټری بیوټری دکمپنۍ پروډکټ دَنیټ په ذریعې سره خرڅول
نوې دوستانو د(xl) کیرئیر نه متعارف کول.اودَبونس نه لطف اندوز کیدل دی.
(۵).دَکمپنۍ دَجوړکړې شوو اصولونه معلومیږی چه څوک ممبرجوړشی هغه بـه نور دوه
کسان دَمشین اخستلو دپاره تیارکړی بیابـه مخکښې دا دوه کسان نور دوه دوه تیارکړی.
اوداټول ممبران به دَخپل نیټ خورولو دپاره باقاعده کار کوی.یعنی ۱ اولنې ممبربه هم پـه
دې کښې اولګی چه دَخپل ځان نه لاندې دوه ممبرانودپاره بـه نور ممبران پیداکړی ګنې نو
دده بونس به په خپل ځائې ولاړ وی.یعنی دا اولنې ممبرچه دې دې به پـه قلاره نه کینی بلکه
دَخپلو دوه ممبرانو دپاره بـه نور دوه دوه ممبران پیدا کول وی.ګنې کـه ددې اولنی ممبر پـه
نیټ کښې په دوه ممبرانو کښې یو ممبرداسې راغې چه دَخپل ځان دپاره اخستونکی پیدا نـه
کړی نوبیابه ددې حد پورې دغې سابقه ممبرانوته بونس ملاویږی.چه دَزیات بونس حقدار نـه
دی.لهذا ده دپاره دَخپل بیسک نیټ دَډاؤن لائن پوره نګرانی اودَهغې دپاره افراد تیارول
مستقل ذمـه داری ده.لکـه چـه دَدستور دَ ص۱۲ ، ۱۳نـه ظاهر ده.دَایډوانس ډسټری بیوتړ
جوړیدلو نه پس به ته دَخپل بیسک نیټ ډاؤن لائن نه فراموش کوی.ته دَخپل بیسک نیټ پـه
دوه مختلفـو ځانلـه لائنونو کـښې دوه ایډوانس ډسټری بیوتړضـرور جـوړکړه پـه دې وجـه
ضروری ده چه ته په خپل بیسک یونټ باندې پوره توجه اوساتې(مختصراً)
دَکمپنۍ ددې اصولونه(چه تفصیلی دی) معلومیږی چه دده نیټ کښې څومره ممبران جوړیږی
نوپه دې کښې هریو دَبل دپاره دَممبرجوړولو اوکمپنۍ دپاره دَګاهک (خریدار) پـه جوړولو
کښې معاون اوکارکولو والا وی.ګنې نودَممبرنه جوړیدلو پـه صورت کښې به دَبونس په شرح
کـښې ترقـی نـه کیږی.نوګویـا چـه داټـول ممبـران دکمپنۍ پـه کـار کـښې مـستقل متحـرک
دی.اودَخریدار جوړیدلو دپاره ذریعـه جوړیږی.پـس کـه کمپنی دَخپـل پیداوار ۵۵فیـصده
دَخپلو اصولو مطابق دې ممبرانـو تـه دَبـونس پـه شکل کښې ورکوی نوپـه دې کـښې هیڅ
قباحت نشته.ددینه عـلاوه چه څوک ممبرجوړیږی نودکمپنۍ کار دا دې چه مشین بـه اخلی
اودَممبرانو کـار دادې چه خریدار بـه جوړوی.اوکوم مـال چـه پـه منـافع کـښې پـاتې شـی
نودَمشین لاګت(خرچه) اودکمپنۍ منافع ۴۵ فیصدبه (باقی حاشیه په راروانه صفحه)

## که مختلف محلې او کورونه یوځائې شمارلې کیږی نو دا قریه کبیره (لوئې کلې) ده

**سوال:** په شمالی وزیرستان کښې دَخشالی په نوم یوځائې دې چه دَډیرو باندو او شاخونو په شکل کښې آباد دې چه په هغې کښې په سلګونو کورونه او زرګونو سړی او زنانه اوسیږی داځائې دَمصرشرعی(شرعی ښار) په حکم کښې دې یا واړه واړه څو کلی دی ؟په دې کښې دَجمعې اقامت صحیح دې یا نه؟

**الجواب:** حدیث لاجمعة ولا تشریق ولا فطر ولااضحی الافی مصر جامع .اونور صحیح حدیثونو په بناء باندې دَجمعې دَصحیح والی دپاره ښار یا لویه قصبه شرط دې. کمابین فی موضعه .لیکن دَښار دَصحیح والی دپاره دکورونو اتصال شرط نه دې، کماصرح به ابن حزم فی حق منازل المدینة المنورة فی عهدالنبی علیه السلام.

---

(بقیه حاشیه) پاتې شی.او ۵۵ فیصد به په ممبرانو باندې دَنیټ په ترتیب سره تقسیمیږی اوظاهری طور سره دَدستور نه معلومیږی چه ممبران دده په کاروبارکښې دَشریک په حیثیت سره کار کوی.اوپه دې باندې دَ شرکة الوجوه تعریف صادق راځی په هندیه کښې دی.فهو ان یشترکا ولیس لهما مال لکن لهما وجاهة عندالناس فیقولا اشترکنا علی ان نشتری بالنسیئة ونبیع بالنقد علی ان ما رزق الله سبحانه وتعالی من ربح فهو بیننا علی شرط کذا،کذا فی البدائع (هندیه ص۳۲۷ جلد۲).

(۲).دَدستور نه معلومیږی چه دکمپنئ دَطرفنه انعامونه په نیټ کښې یو خاص هدف ته دَرسیدلو په صورت کښې ملاویږی.اودلته په انعام کښې عمل هم دې.اوعوض هم معلوم دې. لهذا ددې خلاف شریعت کیدل نه معلومیږی.اکثرفقهاؤ دَانعام داتعریف کړې دې. التزام عوض معلوم علی عمل معین اومجهول عسرعمله (مغنی المحتاج، الفقه الاسلامی وادلته ص۷۸۳ جلد۴) اوپه تفسیرقرطبی کښې دی: الجعالة من العقود الجائزة التی یجوز ان یفسخه قبل الشروع وبعده اذا رضی باسقاط حقه ولیس للجاعل ان یفسخه اذا شرع المجعول له فی العمل (قرطبی ص۲۳۲ جلد۹) اودَ کمپنئ دَطرفنه دَانعام ضامن اوکفیل کیدل هم خلاف شریعت نه دی.ولمن جاء به حمل بعیر، وهذا من باب الجعالة وانا به زعیم، وهذا من باب الضمان والکفالة (تفسیرابن کثیر ص۶۳۰ جلد۲)

....... از مرتب .......

نوکه ټول خشالی یوځائې وی چه دَهغې کورونه اومحلې جدا جدا اوځانته وی نو دا ښار اولوئې کلې دې.په دې کښې دَجمعې قائمول صحیح دی.اوکه خشالی دَعلاقې نوم وی چه دَهغې بانډې ځان ځانته دی نوپه هغې کښې دَجمعې قائمول ظاهری طورسره صحیح نه دی.اوظاهری دَعرف نه شق اول معلومیږی.

## په تحکیم باندې دَاجرت ورکولو اخستلو حکم

**سوال:**که دَتحکیم دپاره متعددعلماء راجمع وی نوهغوی ته اجرت ورکول جائز دی یا ناجائز ؟

**الجواب:**زمونږ په نزد تحکیم باندې اجرت اخستل جائز نه دی لیکن چه کله تحکیم مفت نشی کیدلې نو بعضې علماء فرمائی چه دَخصمینوپه رضامندئ سره دَمحکمینودپاره اجرت اخستل چه هغوی په کتابونوکښې کتلوسره راجح قول اوښائی او جګړه ختمه شی نوداپه تعلیم اوتعلم باندې دَ اجرت اخستلو پشان ده دا ناجائز نه ده.فتامل.

## دَ مشترکه مال نه یو رور دپاره ویزه واخلی نوهلته دَ کړې شوې مزدورئ دَسرمایې حکم

**سوال:**هرکله چه رونړه یو ورورته دَمشترکه مال نه ویزا واخلی او ابوظهبی ته ئې اولیږی اوهغه هلته مزدوری کوی مال جمع کړی نوداما لونه به دَټولو رونړو وی یا به صرف ددې رور ملکیت وی؟

**الجواب:**چونکه ددې رونړو په مینځ کښې نه شرکت املاک شته اونه شرکتِ عقود.بلکه عوامی او پټهانی(یعنی دَپښتونولئ) شرکت دې.نوداما لونه به صرف دَدې رور وی مشترک به نه وی.البته په ویزا وغیره باندې خرچ شوې مال په حساب کښې وی.

## دَ کاغذی نوټونو یوبل باندې دَ خرڅولو حکم

**سوال:** که یو کس دَ زرو (۱۰۰۰) روپو نوټ دَ لس روپو په نوټ باندې واخلی نو آیا دا جائز دی؟

**الجواب:** دا دواړه نوټونه د کاغذ دی نه د سپینو زرو دی نه دَ سرو زرو. نو داتبادله کول شرعاً ناجائز او سود نه دې. او دَ ددې ذاتی قیمت معمولی دې او اعتباری او سرکاری قیمت ئې غیرمعمولی دې نو داتبادله به عرفی ممنوع وی شرعی ممنوع به نه وی. دغه شان دَ ډالر، ویزه، ټکټ او کاغذی کرنسی تبدلې په تفاضل سره به ممنوع عرفی وی ممنوع شرعی به نه وی. (۱).

---

(۱) مفتی نظام الدین الاعظمی فرمائی:

نوټ (کاغذی) نه کیلی دی او نه وزنی بلکه عددی دې نو ځکه په کمی زیاتی سره ئې بدلول جائز دې. فقط والله اعلم.

کتبه:

العبد نظام الدین عفی عنه

مفتی دارالعلوم دیوبند

الجواب صحیح
حبیب الرحمن عفاالله عنه

الجواب صحیح
محمد ظفیرالدین غفرله
کفیل الرحمن عثمانی.

منتخبات نظام الفتاوی ص۲۹۹ جلد ۱ کتاب المعاملات).




افادات

حضرت العلامہ مولانا حافظ محمد ابراهیم فانی مدظلہ العالی
مدرس دارالعلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک

مرتب : مولوی محمد سلیم سواتی

ناشر :

مکتبہ رشیدیہ

جی۔ٹی روڈ اکوڑہ خٹک ضلع نوشہرہ 0344-9084693